قُلْ مَا يَعْبَؤُا بِكُمْ رَبِّيْ لَوْلَا دُعَآؤُكُمْ
وُوايه | پرواه نهٔ كوى | ستاسو | زمارب | كهٔ چرے نهٔ وى عبادت ستاسو
(اے پيغمبره!) تهٔ ورته ووايه چه زمارب به ستاسو يوه ذره قدر له پرواه هم ونهٔ كړى كهٔ تاسو عبادت نهٔ كوئ
فَقَدْ كَذَّبْتُمْ فَسَوْفَ يَكُوْنُ لِزَامًا ۝٧٧ ع
پس بيشكه دروغ وګڼړل تاسو | پس زر دے چه وى به | (سزا) لازمه
پس تاسو دَ هغهٔ حكمونه دروغ وګڼړل نواوس به دَدے سزا لازمى وى

سُوْرَةُ الشُّعَرَآءِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ مِائَتَانِ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | وَسَبْعٌ وَّعِشْرُوْنَ اٰيَةً وَّاَحَدَ عَشَرَ رُكُوْعًا
سورة شعراء په مكه كښے نازل شو په | (شروع) دَ الله په نوم چه لوئے مهربان ډير زيات رحم كوونكے دے | دے كښے ٢٢٧ آيتونه او ١١ ركوع ګانړه دى
شروع كوم په نوم دَ الله چه لوئے مهربان دَ ډير زيات رحم خاوند دے

طٰسٓمّٓ ۝١ تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ الْمُبِيْنِ ۝٢ لَعَلَّكَ بَاخِعٌ نَّفْسَكَ
طٰسٓمّٓ | دا | آيتونه دى | دَ كتاب | روښانه | شايد تهٔ | هلاكوونكے يے | خپل ځان
ط، سين، ميم - دا دَ يو واضح كتاب آيتونه دى، دا سے ښكارى چه تهٔ به دَ دے خلقو په
اَلَّا يَكُوْنُوْا مُؤْمِنِيْنَ ۝٣ اِنْ نَّشَاْ نُنَزِّلْ عَلَيْهِمْ مِّنَ السَّمَآءِ اٰيَةً
چه دوى ايمان نهٔ راوړى | كهٔ چرے وغواړو مونږ | نو نازل به كړو | په دوى باندِ | له آسمان نه | څهٔ نخښه
نهٔ مسلمانيدو په سے خپل ځان باښيلے - كهٔ مونږ وغواړو نو په دوئ به دَ آسمان نه يوه لويه نخښه راكوزه كړو
فَظَلَّتْ اَعْنَاقُهُمْ لَهَا خٰضِعِيْنَ ۝٤ وَمَا يَاْتِيْهِمْ مِّنْ ذِكْرٍ
پس شى به | څټونه دَ دوى | هغې ته | ټيټ | او نهٔ | راځى دوى ته | څهٔ نصيحت
نو دَ دوئ څټونه به ورته ټيټ شى، او دوئ ته دَ رحمٰن خدائے له غاړے
مِّنَ الرَّحْمٰنِ مُحْدَثٍ اِلَّا كَانُوْا عَنْهُ مُعْرِضِيْنَ ۝٥ فَقَدْ كَذَّبُوْا
دَ (الله) رحمٰن دَ طرف نه | نوے | مګر | وى دوى | له هغې نه | مخ كرځوونكى | پس بيشكه دوى دروغ وګڼړل
نه هيڅ يو نوے نصيحت نهٔ دے راغلے چه دوئ ترے نه مخونه نهٔ وى اړولى - نو دوئ خو (قرآن)
فَسَيَاْتِيْهِمْ اَنْبٰٓؤُا مَا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ ۝٦ اَوَلَمْ يَرَوْا
نو زر به راشى دوى ته | خبرونه | دَ هغې خبرے | كومې يوړے چه دوى | خندا ګانے كولے | آيا نهٔ دى كتلى دوى
دروغ وګڼړلو خو ډير زر به ورته دَ هغې خبرو اصليت مخے ته راشى چه دوى به ورپورے خندا ګانے كولے، آيا دوئ
اِلَى الْاَرْضِ كَمْ اَنْۢبَتْنَا فِيْهَا مِنْ كُلِّ زَوْجٍ كَرِيْمٍ ۝٧ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ
زمكے طرف ته | چه څومره مونږ توكولى دى | په دے كښے | هر قسم څيزونه | ښهٔ | بيشكه په دے كښے
زمكے ته نهٔ ګوري چه مونږ په كښے څومره ښهٔ ښهٔ بوټى را زرغون كړى دى؟ يقيناً په دِے كښے (خلقو د
لَاٰيَةً ؕ وَمَا كَانَ اَكْثَرُهُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ۝٨ وَاِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ ۝٩ ع
نخښه ده | او نهٔ دى | اكثر په دوى كښے | ايمان راوړونكى | او بيشكه | ستا رب | هغه ډير غالب | مهربان دے
پاره) نخښه ده او په دے خلقو كښے اكثر كسان ايمان نهٔ راوړى او بيشكه چه ستا رب غالب مهربان دے

المنزل الخامس ٥

وَاِذْ نَادٰى رَبُّكَ مُوْسٰٓى اَنِ ائْتِ الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿١٠﴾

او هر کله چه | آواز وکړو | ستا رب | موسیٰ ته | چه راشه | دې | ظالمې ته

او هغه وخت (را یاد کړه چه) ستا رب موسیٰ ؑ ته آواز وکړو چه ته دې غه ظالمانو خلقو ته یعنې د فرعون قوم ته

قَوْمَ فِرْعَوْنَ ؕ اَلَا يَتَّقُوْنَ ﴿١١﴾ قَالَ رَبِّ اِنِّىْٓ اَخَافُ

قوم | د فرعون ته | آیا دوی پرهیزګاري نه کوي | ده ووئیل | اے زما ربه ! | بیشکه زه | ویریږم

ورشه ! آیا هغوی ځان د عذاب نه بچ نه ساتي ؟ موسیٰ ؑ ووئیل اے زما ربه ! زه د دے خبرے نه ویریږم

اَنْ يُّكَذِّبُوْنِ ﴿١٢﴾ ؕ وَيَضِيْقُ صَدْرِىْ وَلَا يَنْطَلِقُ لِسَانِىْ فَاَرْسِلْ

له دے نه چه دوی به ما دروغژن وګڼي | او تنګیږي | زما سینه (زړه) | او نه چلیږي | زما ژبه | پس (وحی) ولیږه

چه هغوی به ما دروغژن وګڼي او زما زړه به تنګیږي ، او زما ژبه نه چلیږي ، نو هارون ؑ ته هم

اِلٰى هٰرُوْنَ ﴿١٣﴾ وَلَهُمْ عَلَىَّ ذَنْۢبٌ فَاَخَافُ اَنْ يَّقْتُلُوْنِ ﴿١٤﴾ ۚ قَالَ كَلَّا ۚ

د هارون طرف ته (هم) | او د هغوی | زما په ذمه | یو ګناه ده | پس زه ویریږم | چه هغوی به ما ووژني | وے فرمائیل | هیڅکله نه

وحی ولیږه ، او زما په ذمه د هغوی یو الزام دے نو زه ویریږم چه قتل م نه کړي ، الله وفرمائیل چه هیڅکله نه

فَاذْهَبَا بِاٰيٰتِنَآ اِنَّا مَعَكُمْ مُّسْتَمِعُوْنَ ﴿١٥﴾ فَاْتِيَا فِرْعَوْنَ

پس لاړشئ تاسو دواړه | زمونږ د نخښو سره | بیشکه مونږ تاسو سره یو | اوریدونکي | پس لاړ شئ | فرعون ته

تاسو دواړه زما حکمونه یوسئ مونږ تاسو سره یو ، هر څه اورو ، نو تاسو دواړه فرعون ته ورشئ او ورته

فَقُوْلَآ اِنَّا رَسُوْلُ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿١٦﴾ ۙ اَنْ اَرْسِلْ

بیا ووایئ | چه بیشکه مونږ | رسولان یو | د ټولو جهانونو د رب | چه | ته ولیږه

ووایئ چه مونږ د رب العالمین رالیږلی شوی پیغمبران یو ، چه ته بنی اسرائیل مونږ سره

مَعَنَا بَنِىْٓ اِسْرَآءِيْلَ ﴿١٧﴾ ؕ قَالَ اَلَمْ نُرَبِّكَ فِيْنَا وَلِيْدًا

مونږ سره | بنی اسرائیل | ده ووئیل | آیا ته مونږ نه یئے پاللے | په خپل مینځ کښے | په وړوکوالي کښے

ولیږه (چه خپل وطن فلسطین ته لاړ شي) (فرعون) ووئیل چه آیا مونږ په وړوکوالي کښے ستا پالنه د لته نه ده کړے او ته

وَلَبِثْتَ فِيْنَا مِنْ عُمُرِكَ سِنِيْنَ ﴿١٨﴾ ۙ وَفَعَلْتَ فَعْلَتَكَ

او پاتے شوے ته | په مونږ کښے | له عمر خپل نه | ډیر کلونه | او وکړو تا | خپل (هغه) کار

د خپل عمر په څو څو کلونو کښے مونږ سره یو ځائے اوسیدلے یئے ۔ او هغه حرکت هم تا کړے وو (په کوم کښے چه زمونږ

الَّتِىْ فَعَلْتَ وَاَنْتَ مِنَ الْكٰفِرِيْنَ ﴿١٩﴾ قَالَ فَعَلْتُهَآ اِذًا

کوم چه | تا وکړو | او ته | له ناشکر ګزارونه یئے | ده ووئیل | ما هغه کار کړے وو | هغه وخت

سړے وژلے شوے وو) او ته ډیر ناشکره یئے ۔ (موسیٰ ؑ) ووئیل بیشکه ما هغه وخت دا حرکت کړے

وَّاَنَا مِنَ الضَّآلِّيْنَ ﴿٢٠﴾ ؕ فَفَرَرْتُ مِنْكُمْ لَمَّا خِفْتُكُمْ

او زه ؤم | له نا خبرو نه | نو زه وتښتیدم | له تاسو نه | هر کله چه زه وویریدم له تاسو نه

وو او ما نه غلطي شوے وه ۔ نو زه تاسو نه ویریدم او وتښتیدم ،

فَوَهَبَ لِيْ رَبِّيْ حُكْمًا وَّجَعَلَنِيْ مِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿٢١﴾

بیا عطا کړو ماته | زما رب | حکم (نبوت) | او زه ئے جوړ کړم | له رسولانو نه

بیا زما رب ماته دانائی وُ بخښله ، او زه ئے په پیغمبرانو کښے شامل کړم۔

وَتِلْكَ نِعْمَةٌ تَمُنُّهَا عَلَيَّ اَنْ عَبَّدْتَّ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ ﴿٢٢﴾

او دا | نعمت دے | چه احسان کوے ته دَ هغے | په ما باندِ | چه غلامان دِ کړل | بنی اسرائیل

او دا (زما دَ پرورش) احسان چه ته ئے په ما کوے (دَ دِے وجه دا دَه) چه تا بنی اسرائیل غلامان جوړ کړی دی۔

قَالَ فِرْعَوْنُ وَمَا رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿٢٣﴾ قَالَ رَبُّ السَّمٰوٰتِ

ووئیل | فرعون | او څۀ دے | (هغه) دَ ټولو جهانونو رب ؟ | دۀ ووئیل | رب دے | دَ آسمانونو

فرعون ووئیل چه پروردګار عالم څوک دے ؟ موسیٰ جواب ورکړو چه هغه دَ آسمانونو او دَ زمکے

وَالْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا ۭ اِنْ كُنْتُمْ مُّوْقِنِيْنَ ﴿٢٤﴾ قَالَ لِمَنْ

او دَ زمکے | او څۀ چه | دَ دِے په مینځ کښے دی | که چرے تاسو یئ | یقین کوونکی | (فرعون) ووئیل | هغه چا ته چه

او دَ مینځ ترمینځ ټولو څیزونو پالونکے دے که ستاسو یقین وی۔ - فرعون خپل ګیرچاپیر (ناستو دلباریانو)

حَوْلَهٗٓ اَلَا تَسْتَمِعُوْنَ ﴿٢٥﴾ قَالَ رَبُّكُمْ وَرَبُّ اٰبَآىِٕكُمُ الْاَوَّلِيْنَ ﴿٢٦﴾

دَ دۀ نه چارچاپیره وو | آیا تاسو آورئ | وئے فرمائیل | رب دے ستاسو | او رب دے ستاسو دَ پخوانو پلارانو۔

ته ووئیل چه تاسو واورید ل ؟ موسیٰ ورته ووئیل چه هغه ستاسو هم رب دے او ستاسو دَ پلارنیکۀ هم رب دے

قَالَ اِنَّ رَسُوْلَكُمُ الَّذِيْٓ اُرْسِلَ اِلَيْكُمْ لَمَجْنُوْنٌ ﴿٢٧﴾

(فرعون) ووئیل | بیشکه | ستاسو پیغمبر | کوم چه | رالیږلے شوے دے | ستاسو طرف ته | لیونے دے۔

فرعون ووئیل چه ستاسو دا رسول چه تاسو ته راغلے دے ، دا خو لیونے دے۔

قَالَ رَبُّ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ وَمَا بَيْنَهُمَا ۭ اِنْ كُنْتُمْ

(موسیٰ) ووئیل | رب دے | دَ مشرق | او مغرب | او څۀ چه | دَ دِے په مینځ کښے دی | که چرے تاسو

موسیٰ ووئیل چه هغه (الله) دَ مشرق او مغرب او څۀ چه دَ دے په مینځ کښے دی دَ ټولو رب دے که تاسو دَ عقل

تَعْقِلُوْنَ ﴿٢٨﴾ قَالَ لَىِٕنِ اتَّخَذْتَ اِلٰهًا غَيْرِيْ لَاَجْعَلَنَّكَ

عقل لرئ | (فرعون) ووئیل | که چرے ونیولو تا | څوک (بل) معبود | بے له ما نه | نو خامخا به کړم زۀ تا

نه کار اخلئ۔ فرعون ووئیل که چرے تا زما نه سیوا بل څوک معبود جوړ کړو ، نو زۀ به تا قید

مِنَ الْمَسْجُوْنِيْنَ ﴿٢٩﴾ قَالَ اَوَلَوْ جِئْتُكَ بِشَيْءٍ مُّبِيْنٍ ﴿٣٠﴾

له قیدیانو نه | وئے فرمائیل | آیا اګرکه زۀ راوړم تاته | یو څیز | ښکاره

کړم ۔ موسیٰ ووئیل چه اګرکه زۀ درته څرګنده خبره وړاندِ کیږدم (نو بیا به م هم بندی کوے ؟)

قَالَ فَاْتِ بِهٖٓ اِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ ﴿٣١﴾ فَاَلْقٰى

دۀ ووئیل | نو ته راوړه | هغه څیز | که چرے | ته یئے | له رشتیا ویونکو نه | پس وُغورزوله دۀ

فرعون ووئیل چه (ښه دَه) ته خپل دلیل راوړاندِ کړه که ته د رښتینے یئے ؟ نو موسیٰ خپله امسا

عَصَاهُ فَاِذَا هِيَ ثُعْبَانٌ مُّبِيْنٌ ﴿٣٢﴾ وَّنَزَعَ يَدَهٗ فَاِذَا هِيَ

خپله امسا | نو فوراً هغه شوه | اژدها | ښکاره | او راوې ویستلو | لاس خپل | نو ناګهانه هغه وه

غورځوله نو دَ هغې نه یوه غټه اژدها جوړه شوه - او لاس ئې (د ترخ نه) بهر راوویستلو نو ټولو کتونکو

بَيْضَآءُ لِلنّٰظِرِيْنَ ﴿٣٣﴾ قَالَ لِلْمَلَاِ حَوْلَهٗۤ اِنَّ هٰذَا

څلنده سپین | دَ لیدونکو دَ پاره | (فرعون) ووئیل | سردارانو ته | چه دَ ده نه چارچاپیره وو | چه بیشکه دا

ته ځلنده سپین ښکاره شو - فرعون خپل ګیرچاپیره دلباریانو ته ووئیل چه دا سړے خو ډیر

لَسٰحِرٌ عَلِيْمٌ ﴿٣٤﴾ يُّرِيْدُ اَنْ يُّخْرِجَكُمْ مِّنْ اَرْضِكُمْ بِسِحْرِهٖ

جادوګر دے | پوهه | دے غواړی چه | چه وُباسی تاسو | ستاسو له زمکے نه | په خپل جادو سره -

پوهه جادوګر دے - دے خو دا غواړی چه تاسو دَ خپل جادو په زور دَ ملک نه بهر وُباسی نو (دَ ده په حقله)

فَمَاذَا تَاْمُرُوْنَ ﴿٣٥﴾ قَالُوْۤا اَرْجِهْ وَاَخَاهُ وَابْعَثْ فِي الْمَدَآئِنِ

پس دَ څهٔ څیز حکم کوئ | دوی ووئیل | مهلت ورکړه ده ته | او دَ ده ورور ته | او ولیږه | په ښارونو کښے

تاسو ماته څهٔ مشوره راکوئ؟ دوئ ووئیل چه ده ته او دَ ده ورور ته (څهٔ قدرے) مهلت ورکړه او ټولو ښارونو ته

حٰشِرِيْنَ ﴿٣٦﴾ يَاْتُوْكَ بِكُلِّ سَحَّارٍ عَلِيْمٍ ﴿٣٧﴾ فَجُمِعَ السَّحَرَةُ

نقیبان | چه دوی راولی تاته | هر | جادوګر | پوهه | پس راجمع کړے شول | جادوګران

سپاهیان ولیږه چه ټول پوهه جادوګر درته راحاضر کړی - نو ټول جادوګران دَ یوے مقرړے ورځے

لِمِيْقَاتِ يَوْمٍ مَّعْلُوْمٍ ﴿٣٨﴾ وَّقِيْلَ لِلنَّاسِ هَلْ اَنْتُمْ مُّجْتَمِعُوْنَ ﴿٣٩﴾

په یو مقرړ وخت | دَ یوے مقرړے ورځے | او ووئیلے شول | خلقو ته | آیا | تاسو جمع کیدونکی یئ؟

په یو ټاکلی وخت راجمع کړے شول، او خلقو ته ووئیلے شول چه آیا تاسو هم جمع کیږئ (یعنی جمع شئ)

لَعَلَّنَا نَتَّبِعُ السَّحَرَةَ اِنْ كَانُوْا هُمُ الْغٰلِبِيْنَ ﴿٤٠﴾ فَلَمَّا

شاید چه مونږ | پیروی وکړو | دَ جادوګرو | که چرے شول | هم دوی | غالب | پس هرکله چه

دَ پاره دَ دے چه که جادوګران غالب شول نو چه مونږ دَ هغوئ په لاره روان پاتے شو - نو څهٔ وخت چه

جَآءَ السَّحَرَةُ قَالُوْا لِفِرْعَوْنَ اَئِنَّ لَنَا لَاَجْرًا اِنْ كُنَّا نَحْنُ

راغلل | جادوګران | نو ئے ووئیل | فرعون ته | آیا وی به مونږ دَ پاره | څه بدله | که چرے شو مونږ

جادوګران راغلل نو فرعون ته ئے ووئیل چه که چرے مونږ غالب شو، نو آیا مونږ ته به څهٔ انعام هم

الْغٰلِبِيْنَ ﴿٤١﴾ قَالَ نَعَمْ وَاِنَّكُمْ اِذًا لَّمِنَ الْمُقَرَّبِيْنَ ﴿٤٢﴾

غالب | وئے وئیل | هو! | او بیشکه تاسو به | په دغه وخت | (زما) له مقربانو نه (یئ)

ملاویږی - فرعون ووئیل چه هو! او په دے صورت کښے به تاسو زما دَ دربار په نزدیکانو کښے شامل شئ

قَالَ لَهُمْ مُّوْسٰۤى اَلْقُوْا مَاۤ اَنْتُمْ مُّلْقُوْنَ ﴿٤٣﴾ فَاَلْقَوْا حِبَالَهُمْ

ووئیل | دوی ته | موسیٰ | چه وُغورزوئ | څهٔ چه تاسو | غورزونکی یئ | پس دوی وُغورزولے | خپلے رسئ

موسیٰ ورته ووئیل چه تاسو چه څهٔ غورځول غواړئ هغه (میدان ته) راوغورځوئ، نو هغوئ خپل پړی او کوتکونه

وَعِصِيَّهُمْ وَقَالُوْا بِعِزَّةِ فِرْعَوْنَ اِنَّا لَنَحْنُ الْغٰلِبُوْنَ ۝۴۴

او امساگانے خپلے | او دوی ووئیل | قسم دے په عزت | دَ فرعون | بیشکه هم مونږ به | غالب یُو

وُغورځول او دائے ووئیل دَ فرعون دَ عزت او جلال قسم دے چه مونږ به هرو مرو کامیاب یو.

فَاَلْقٰى مُوْسٰى عَصَاهُ فَاِذَا هِيَ تَلْقَفُ مَا يَاْفِكُوْنَ ۝۴۵ ج صلے فَاُلْقِيَ

پس وغورځوله | موسیٰ ؑ | خپله امسا | نو ناڅاپه هغے | تیرول شروع کړل | څه چه | دوی جوړ کړی وو | پس پریوتل

بیا موسیٰ ؑ (هم) خپله امسا وغورځوله نو فوراً امسا دَ هغوئی جوړه کړے نظربندی تیرول شروع کړه ، نو ټول جادوګران

السَّحَرَةُ سٰجِدِيْنَ ۝۴۶ لا قَالُوْٓا اٰمَنَّا بِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝۴۷ لا رَبِّ

جادوګران | په سجده کښے | دوی ووئیل | مونږ ایمان راوړو | په رب دَ ټولو جهانونو | (چه) رب دے

پړمخے په سجده پریوتل. دائے ووئیل چه مونږ په رب العٰلمین ایمان راوړو ، چه دَ موسیٰ ؑ

مُوْسٰى وَهٰرُوْنَ ۝۴۸ قَالَ اٰمَنْتُمْ لَهٗ قَبْلَ اَنْ اٰذَنَ

دَموسیٰ ؑ | او دَ هارون ؑ | (فرعون) ووئیل | تاسو ایمان راوړو | په دهٔ | وړاندِ له دے نه چه | زهٔ اجازت درکړم

او دَ هارون ؑ رب دے. فرعون ووئیل چه تاسو زما دَ اجازت نه وړاندِ په موسیٰ ؑ باندِ ایمان

لَكُمْ ج اِنَّهٗ لَكَبِيْرُكُمُ الَّذِيْ عَلَّمَكُمُ السِّحْرَ ج فَلَسَوْفَ

تاسو ته | بیشکه دے | ستاسو مشر دے | کوم چه | ښودو تاسو ته | جادو | پس زر به

راوړو ، بیشکه دا (موسیٰ) ستاسو مشر دے چا چه تاسو ته جادو ښودلے دے. ډیر زر به تاسو ته

تَعْلَمُوْنَ ۵ لَاُقَطِّعَنَّ اَيْدِيَكُمْ وَاَرْجُلَكُمْ مِّنْ خِلَافٍ

تاسو ته معلومه شی | خامخا به پریکړم زهٔ | ستاسو لاسونه | او ستاسو ښپے | دَ مخالفو طرفو نو نه

(دَ دے انجام) معلوم شی - زهٔ به ستاسو دَ یو بے غاړے لاس او دَ بلے غاړے ښپه پریکړم

وَّلَاُصَلِّبَنَّكُمْ اَجْمَعِيْنَ ۝۴۹ ج قَالُوْا لَا ضَيْرَ ز اِنَّآ اِلٰى رَبِّنَا

او خامخا به په سولئ کړم تاسو | ټول | دوی ووئیل | هیڅ تاوان نهٔ دے | بیشکه مونږ | خپل رب طرف ته

او تاسو ټول به په سولئ زوړند کړم ، هغوئی ووئیل چه هیڅ خبره نهٔ ده مونږ یقیناً خپل رب

مُنْقَلِبُوْنَ ۝۵۰ ج اِنَّا نَطْمَعُ اَنْ يَّغْفِرَ لَنَا رَبُّنَا خَطٰيٰنَآ

وا پس تلونکی یُو | بیشکه مونږ اُمید لرو | چه وُبه بخښی | مونږ ته | زمونږ ربّ | زمونږ ګناهونه

ته واپس تلونکی یُو - مونږ اُمید لرو چه زمونږ رب به زمونږ ګناهونه معاف کړی

اَنْ كُنَّآ اَوَّلَ الْمُؤْمِنِيْنَ ۝۵۱ ع ط وَاَوْحَيْنَآ اِلٰى مُوْسٰٓى اَنْ اَسْرِ ۳ ع ۱۸

(ځکه) چه مونږ یُو | اول | ایمان راوړونکی | او مونږ وحی وکړه | موسیٰ ؑ طرف ته | چه شپه په شپه روان کړه

ځکه چه مونږ دَ ټولو نه وړومبے ایمان راوړے دے. او مونږ موسیٰ ؑ ته حکم وکړو چه زما بندګان شپه په شپه

بِعِبَادِيْٓ اِنَّكُمْ مُّتَّبَعُوْنَ ۝۵۲ فَاَرْسَلَ فِرْعَوْنُ فِي الْمَدَآئِنِ

زما بندګان | بیشکه ستاسو | تعاقب به کولے شی | پس ولیږل | فرعون | په ښارونو کښے

(دَ مصر نه) بهر وُباسه (خو) درپسے به تګل کیږی ، نو فرعون په ټولو ښارونو کښے سپاهیان

حٰشِرِيْنَ ﴿٥٣﴾ اِنَّ هٰٓؤُلَآءِ لَشِرْذِمَةٌ قَلِيْلُوْنَ ﴿٥٤﴾ وَاِنَّهُمْ لَنَا

جمع کوونکی | بیشکه دا خلق | یوه ډله ده | لږه شان | او بیشکه دوی | موږ له

ولیږل. (او وئ ویلی چه) دا یو ورکوټی شان ټولی دی ، او دوی موږ ډیر زیات

لَغَآئِظُوْنَ ﴿٥٥﴾ وَاِنَّا لَجَمِيْعٌ حٰذِرُوْنَ ﴿٥٦﴾ فَاَخْرَجْنٰهُمْ مِّنْ جَنّٰتٍ

غصه راولی | او بیشکه موږ | ټول | باوسله یو | بیشکه موږ وویستل دوی | له باغونو

تهرولی یو ، او موږ ټول په وسله پوره خلق یو . غرض دا چه موږ دغه فرعونیان دَ باغونو

وَّعُيُوْنٍ ﴿٥٧﴾ وَّكُنُوْزٍ وَّمَقَامٍ كَرِيْمٍ ﴿٥٨﴾ كَذٰلِكَ ۚ وَاَوْرَثْنٰهَا

او چینونه | او له خزانو | او له ښهٔ مکانونو نه | دغه شان | او موږ وارثان جوړ کړل دَ دې

او دَ چینونه او دَ خزانو او دَ ښائسته کورونو نه بهر وویستل ، دا مو وکړل او موږ بنی اسرائیل دَ

بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ ﴿٥٩﴾ فَاَتْبَعُوْهُمْ مُّشْرِقِيْنَ ﴿٦٠﴾ فَلَمَّا تَرَآءَ

بنی اسرائیل | پس دوئ هغوی پسې شول | دَ نور ختلو په وخت | پس هر کله چه | وُئ لیدل یو بل

دوئ وارثان جوړ کړل ، هغوئ دَ نور ختلو په وخت بنی اسرائیلو پسې شول . هر کله چه دواړو ډلو یو بل

الْجَمْعٰنِ قَالَ اَصْحٰبُ مُوْسٰٓى اِنَّا لَمُدْرَكُوْنَ ﴿٦١﴾ قَالَ كَلَّا ۚ اِنَّ

دواړو ډلو | (نو) ووئیل | ملګرو دَ موسیٰ | بیشکه موږ خو راګیر شو . | وُئ فرمائیل | هیڅکله نه | بیشکه

وکتل نو دَ موسیٰ ملګرو ووئیل چه موږ خو بس سم راګیر شو موسیٰ وفرمائیل چه هیڅکله نه ، بیشکه

مَعِيَ رَبِّيْ سَيَهْدِيْنِ ﴿٦٢﴾ فَاَوْحَيْنَآ اِلٰى مُوْسٰٓى اَنِ اضْرِبْ

ما سره دې | زما رب | ذر به ما ته لاره وښائی | پس موږ وحی وکړه | موسیٰ طرف ته | چه ووهه ته

زما رب ما سره دے هغه به ما ته لاره وښائی ، هغه وخت موږ موسیٰ ته حکم وکړو چه په خپله امسا

بِّعَصَاكَ الْبَحْرَ ۗ فَانْفَلَقَ فَكَانَ كُلُّ فِرْقٍ كَالطَّوْدِ

خپله امسا | په دریاب کښې | پس هغه وُشلیدلو | او شوه | هر یوه ټکړه | په شان دَ غر

دریاب ووهه . نو دریاب وشلیدو او (دَ اوبو) هره یوه ټکړه دَ لوئے غر په شان

الْعَظِيْمِ ﴿٦٣﴾ وَاَزْلَفْنَا ثَمَّ الْاٰخَرِيْنَ ﴿٦٤﴾ وَاَنْجَيْنَا مُوْسٰى

لوئے | او نزدے کړل موږ | دغه ځائے ته | نور | او موږ خلاصے ورکړو | موسیٰ ته

شوه ، او موږ بل فریق (کفار) هم نزدے ورسولو . او موږ موسیٰ او دَ هغهٔ

وَمَنْ مَّعَهٗٓ اَجْمَعِيْنَ ﴿٦٥﴾ ثُمَّ اَغْرَقْنَا الْاٰخَرِيْنَ ﴿٦٦﴾ اِنَّ

او څوک چه | دَ دهٔ سره وُو | ټول | بیا | موږ غرق کړل | نور | بیشکه

ملګری ټول بچ کړل . بیا دویم فریق (فرعونیان) مو ډوب کړو . یقیناً

فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً ۗ وَمَا كَانَ اَكْثَرُهُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿٦٧﴾

په دے کښې | یوه نخښه ده (دَ قدرت) | او نهٔ وُو | اکثر له دوی نه | مؤمنان

په دے واقعه کښې ډیر لوئے سبق (پند) پروت دے او په دوئ کښې اکثر خلق ایمان راوړونکی نهٔ دی

وَاِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ ﴿٦٨﴾ وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَاَ

او بیشکه | ربّ ستا | خامخا هم دے | غالب | مهربان | او ولوله | په دوی باندې | خبر

او ستا رب یقیناً غالب او مهربان دے. او (اے نبیﷺ!) دوی ته دَ ابراهیمؑ قصه

اِبْرٰهِيْمَ ﴿٦٩﴾ اِذْ قَالَ لِاَبِيْهِ وَقَوْمِهٖ مَا تَعْبُدُوْنَ ﴿٧٠﴾ قَالُوْا

دَ ابراهیم | هر کله چه ده ووئیل | خپل پلار ته | او خپل قوم ته | چه دَ څهٔ څیز تاسو عبادت کوئ؟ | دوی ووئیل

(هم) واوروه. هر کله چه هغهٔ خپل پلار او خپل قوم ته ووئیل چه دا تاسو دَ څهٔ څیز عبادت کوئ؟ هغوئ ووئیل

نَعْبُدُ اَصْنَامًا فَنَظَلُّ لَهَا عٰكِفِيْنَ ﴿٧١﴾ قَالَ هَلْ

مونږ عبادت کوو | دَ بتانو | پس مونږ یُو | هغوئ ته | پاخهٔ ناست | ده ووئیل | ایا

چه مونږ دَ بتانو عبادت کوو او هم دَ هغوئ په عبادت قائم یُو. ابراهیمؑ ورته ووئیل چه ایا دوئ

يَسْمَعُوْنَكُمْ اِذْ تَدْعُوْنَ ﴿٧٢﴾ اَوْ يَنْفَعُوْنَكُمْ اَوْ يَضُرُّوْنَ ﴿٧٣﴾

دوئ ستاسو (خبره) آوری | هر کله چه | تاسوئے بلئ | یا دوئ تاسو ته نفع در رسوی؟ | یا دوئ زیان درکوی؟

ستاسو خبره آورید ے شی کله چه تاسو دوئ ته بلنه کوئ؟ یا تاسو ته څهٔ فائده یا ضرر درکولے شی؟

قَالُوْا بَلْ وَجَدْنَآ اٰبَآءَنَا كَذٰلِكَ يَفْعَلُوْنَ ﴿٧٤﴾ قَالَ

دوی ووئیل | (نا) بلکه | موندلی دی مونږ | پلاران خپل | چه داسے به ئے کول. | ده ووئیل

هغوئ ووئیل چه نا خو بس مونږ خپل پلار نیکهٔ به دِ دے کار د غسے موندلی دی. ابراهیمؑ ووئیل

اَفَرَءَيْتُمْ مَّا كُنْتُمْ تَعْبُدُوْنَ ﴿٧٥﴾ اَنْتُمْ وَاٰبَآؤُكُمُ الْاَقْدَمُوْنَ ﴿٧٦﴾

آیا تاسو لیدلی دی | هغه څهٔ ته چه عبادت ئے کوئ تاسو | تاسو | او پلرونو ستاسو | پخوانو

چه آیا تاسو دَ دغے معبودانو حالت لیدلے هم دے، تاسو یا ستاسو پخوانو پلارانو نیکونو؟

فَاِنَّهُمْ عَدُوٌّ لِّيْٓ اِلَّا رَبَّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿٧٧﴾ الَّذِيْ خَلَقَنِيْ

پس بیشکه دوی | زما دښمنان دی | سیوا دَ ربّ | دَ عالمونو | کوم چه | زهٔ پیدا کړم

هغه ټول زما دښمنان دی سیوا دَ هغه رب العالمین نه کوم چه زهٔ پیدا کړم (او)

فَهُوَ يَهْدِيْنِ ﴿٧٨﴾ وَالَّذِيْ هُوَ يُطْعِمُنِيْ وَيَسْقِيْنِ ﴿٧٩﴾ وَاِذَا مَرِضْتُ

پس هم دے | لارہ ښائی ماته | او هغه ذات چه | طعام راکوی ماته | او څښاک راکوی ماته | او هر کله چه | زهٔ بیمار شم

هم دے ماته سمه لاره ښائی او هغه رب چه په ما باندې خوروی او څښوی او څهٔ وخت چه زهٔ بیمار شم

فَهُوَ يَشْفِيْنِ ﴿٨٠﴾ وَالَّذِيْ يُمِيْتُنِيْ ثُمَّ يُحْيِيْنِ ﴿٨١﴾ وَالَّذِيْٓ

نو هم دے | شفا راکوی ماته | او هغه ذات چه | مړ کوی به ما | بیا به | ژوندے کوی ما | او هغه دَ کوم نه

نو هم دے راته شفا راکوی او دے به را ته (په وخت) مرګ راکوی او بیا به م ژوندے کوی او هغه (الله چه)

اَطْمَعُ اَنْ يَّغْفِرَ لِيْ خَطِيْٓـَٔتِيْ يَوْمَ الدِّيْنِ ﴿٨٢﴾ رَبِّ هَبْ لِيْ

چه زهٔ اُمید لرم | چه وُبه بخښی ماته | ګناه زما | په ورځ | دَ قیامت | اے زما ربه! | عطا کړه ماته

دَ کوم نه زهٔ اُمید لرم چه زما ګناهونه به دَ قیامت په ورځ وُبخښی، اے زما ربه! ما ته (د) حکمت

حُكْمًا وَّاَلْحِقْنِيْ بِالصّٰلِحِيْنَ ﴿٨٣﴾ وَاجْعَلْ لِّيْ لِسَانَ صِدْقٍ

حکمت | اوشامل کړه ما | په نیکو بندګانو کښې | او کړه | ماد پاره | ذکر | ر ښتینې

(لازوال دولت) وُبخښه او ما په خپلو نیکانو خلقو کښې شامل کړه. او زما د نیکنامۍ ذکر په راتلونکو نسلونو کښې

فِي الْاٰخِرِيْنَ ﴿٨٤﴾ وَاجْعَلْنِيْ مِنْ وَّرَثَةِ جَنَّةِ النَّعِيْمِ ﴿٨٥﴾ وَاغْفِرْ

په وروستو راتلونکو خلقو کښې | او جوړ کړه ما | له وارثانو نه | دَجنت | دَنعمتونو والا | او معاف کړه

جاری وُساته ، او ما دَ نعمتونو نه دَ ډک جنت وارث کړه . او زما پلار (هم)

لِاَبِيْٓ اِنَّهٗ كَانَ مِنَ الضَّآلِّيْنَ ﴿٨٦﴾ وَلَا تُخْزِنِيْ يَوْمَ

زما پلار | بیشکه دے | دے | له ګمراهانو نه | اومهٔ رسوا کوه ما | په کومه ورځ

وُبخښه ، بیشکه چه هغه په ګمراهانو کښې شامل دے . او په هغه لویه ورځ م مهٔ شرموه چه خلق

يُبْعَثُوْنَ ﴿٨٧﴾ يَوْمَ لَا يَنْفَعُ مَالٌ وَّلَا بَنُوْنَ ﴿٨٨﴾ اِلَّا مَنْ

چه به تول راپاڅولے شی | په کومه ورځ چه | به نفع نهٔ ورکوی | مال | او نهٔ اولاد | مګر څوک چه

به بیا راژوندی کیږی ، په کومه ورځ چه نهٔ به مال په کار راځی او نهٔ اولاد ، خو بس څوک چه الله تعالیٰ ته

اَتَى اللّٰهَ بِقَلْبٍ سَلِيْمٍ ﴿٨٩﴾ وَاُزْلِفَتِ الْجَنَّةُ لِلْمُتَّقِيْنَ ﴿٩٠﴾ وَبُرِّزَتِ

راشی | الله ته | په زړهٔ | پاک سره | او نزدے به کړے شی | جنت | پرهیزګارانو د پاره | او ښکاره به کړے شی

(دَشرک او دَګناه نه) پاک زړهٔ یوسی ، او په کومه ورځ چه نیکانو ته به جنت نزدے کړے شی او ګمراهانو ته

الْجَحِيْمُ لِلْغٰوِيْنَ ﴿٩١﴾ وَقِيْلَ لَهُمْ اَيْنَمَا كُنْتُمْ تَعْبُدُوْنَ ﴿٩٢﴾

دوزخ | ګمراهانو ته | او وُبه ویلے شی | دوی ته | چرته دی | هغه دَکومو چه تاسو عبادت کولو؟

به دوزخ ښکاره کړے شی او ورته به وُویلے شی چه هغه معبودان موخهٔ شول چه تاسو به دَ هغوی عبادت کولو؟

مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ؕ هَلْ يَنْصُرُوْنَكُمْ اَوْ يَنْتَصِرُوْنَ ﴿٩٣﴾ فَكُبْكِبُوْا

سیوا | دَالله نه | آیا | دوی ستاسو مدد کولے شی | یا بدل اخستے شی ؟ | پس پرمخے به واچولے شی

دَالله تعالیٰ نه بغیر آیا هغوی نن ستاسو مدد کولے شی یا بدل اخستے شی ؟ نو بیا به دغه معبودان او

فِيْهَا هُمْ وَالْغَاوٗنَ ﴿٩٤﴾ وَجُنُوْدُ اِبْلِيْسَ اَجْمَعُوْنَ ﴿٩٥﴾ قَالُوْا

په هغے کښې | هغه (بتان) | او ګمراهان | او لښکرے | دَشیطان | تول بو ځائے | دوی به وُوائی

دغه ګمراهان تول په دوزخ کښې پرمخے وُغورزولے شی او دَ شیطان تولے لښکرے ورسره هم . نو کافران به

وَهُمْ فِيْهَا يَخْتَصِمُوْنَ ﴿٩٦﴾ تَاللّٰهِ اِنْ كُنَّا لَفِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴿٩٧﴾

او دوی به | په هغے کښې | دَ یو بل سره جګړے کوی | قسم په الله | بیشکه وُو مونږ | په ګمراهئ کښې | ښکاره .

په دوزخ کښې یو بل سره جګړے کوی او دا به وائی قسم په الله ، چه مونږ په څرګنده ګمراهئ کښې پراتهٔ وو چه

اِذْ نُسَوِّيْكُمْ بِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿٩٨﴾ وَمَآ اَضَلَّنَآ اِلَّا الْمُجْرِمُوْنَ ﴿٩٩﴾

کله چه مونږ برابر کړل تاسو | دَپرورګار دَ عالمونو سره | او نهٔ وُو ګمراه کړی مونږ | مګر (دے) مجرمانو

تاسو مو دَ رب العلمین سره برابر ګڼړلئ . او مونږه خو بل چا نه ، بلکه دے (مشرانو) مجرمانو ګمراه کړو

فَمَا لَنَا مِنْ شٰفِعِيْنَ (١٠٠) وَلَا صَدِيْقٍ حَمِيْمٍ (١٠١) فَلَوْ اَنَّ لَنَا

پس نشته دَ زمونږ | څوک سفارش کوونکے | او نهٔ څوک دوست | غم خوار | پس کاش! | چه وی مونږ دَ پاره

نو اوس هیڅوک زمونږ سفارشی نشته او نهٔ مو څوک اخلاصی دوست شته ، نو څنګه به ښهٔ وے که (دنیا

كَرَّةً فَنَكُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ (١٠٢) اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً

یوه موقع | نو شو به مونږ | له مومنانو نه | بیشکه | په دے کښے | نخښه ده (دَ قدرت)

ته) یو ځل دَ واپس تلو موقع راکولے شوے نو مونږ به مسلمانان شوی وو. بیشکه چه په دې واقعه کښے لوئے سبق پروت دے

وَمَا كَانَ اَكْثَرُهُمْ مُّؤْمِنِيْنَ (١٠٣) وَاِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيْزُ

او نهٔ دی | اکثر له دوی نه | مؤمنان | او بیشکه | ستا رب | هم دے دے | غالب

او دَ دوئی اکثر خلق ایمان نهٔ راوړی . او بیشکه ستا رب ډیر زبردست مهربان

الرَّحِيْمُ (١٠٤) كَذَّبَتْ قَوْمُ نُوْحِ ِۨ الْمُرْسَلِيْنَ (١٠٥) اِذْ قَالَ لَهُمْ ع

مهربان | دروغ وګڼړل | قوم د نوح | پیغمبران | هر کله چه وویل | دوی ته

دے ، دَ نوح علیه السلام قوم پیغمبران دروغژن وګڼړل ، څهٔ وخت چه دَ هغوئی ورور (برادری)

اَخُوْهُمْ نُوْحٌ اَلَا تَتَّقُوْنَ (١٠٦) اِنِّيْ لَكُمْ رَسُوْلٌ اَمِيْنٌ (١٠٧)

دَ دوی ورور | نوح | آیا نهٔ ویریږئ تاسو | بیشکه زهٔ | تاسو دَ پاره | پیغمبر | امانت دار یم

دَ ورور نوح ورته وویل چه آیا تاسو دَ الله تعالیٰ نه نهٔ ویریږئ؟ بیشکه زهٔ ستاسو امانت دار پیغمبر یم

فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوْنِ (١٠٨) وَمَآ اَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ اَجْرٍ

پس ویریږئ | دَ الله نه | او حکم منئ زما | او زهٔ نهٔ غواړم له تاسو نه | په دے (تبلیغ) | څهٔ اجر

نو دَ الله تعالیٰ نه ویریږئ او زما خبره منئ. او زهٔ تاسو نه څه بدله خونه غواړم .

اِنْ اَجْرِيَ اِلَّا عَلٰى رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ (١٠٩) فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوْنِ (١١٠)

نهٔ دے | اجر زما | مګر | په پروردګار | دَ عالمونو | پس ویریږئ | دَ الله نه | او حکم منئ زما

زما بدله خو دَ رب العالمین په ذمه ده . نو تاسو دَ الله تعالیٰ نه ویریږئ او زما خبره منئ.

قَالُوْٓا اَنُؤْمِنُ لَكَ وَاتَّبَعَكَ الْاَرْذَلُوْنَ (١١١) قَالَ وَمَا عِلْمِيْ

دوی وویل | آیا مونږ ایمان راوړو | په تا | حالانکه پیروی کړې ده ستا | ذلیلو خلقو | نوح وویل | او ما ته څهٔ خبر دے

هغوئ جواب ورکړو چه آیا مونږ په تا باندِ ایمان راوړو حالانکه ستا پیروی حقیر خلق کوی ، نوح جواب ورکړو چه ما ته څهٔ معلو

بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ (١١٢) اِنْ حِسَابُهُمْ اِلَّا عَلٰى رَبِّيْ

چه دوی څهٔ کول | نهٔ دے | حساب دَ دوی | مګر | زما په رب دے

ده چه هغوئ څهٔ کوی . دَ هغوئ حساب زما دَ رب په ذمه دے ، کاش! چه

لَوْ تَشْعُرُوْنَ (١١٣) وَمَآ اَنَا بِطَارِدِ الْمُؤْمِنِيْنَ (١١٤) اِنْ اَنَا اِلَّا

که چرے تاسو پوهیږئ | او | نهٔ یم زهٔ | شړونکے | دَ مؤمنانو | نهٔ یم زهٔ | مګر

تاسو (په سمه خبره) پوهیدلے او زهٔ مؤمنان دَ ځان نه شړلے نهٔ شم . زهٔ خو نوره څهٔ نهٔ یم

نَذِيرٌ مُّبِينٌ ﴿۱۱۵﴾ قَالُوا لَئِن لَّمْ تَنتَهِ يَا نُوحُ لَتَكُونَنَّ

ویرونکے | ښکاره | دوی وویل | که چیرے منع نه شوے ته | اے نوح ؑ! | نو خامخا به شے ته

ویرېدونکے یم - هغوی وویل چه اے نوح ؑ! که ته (د دے خبرونه) منع نه شوے نو خامخا به سنګسار

مِنَ الْمَرْجُومِينَ ﴿۱۱۶﴾ قَالَ رَبِّ إِنَّ قَوْمِي كَذَّبُونِ ﴿۱۱۷﴾ فَافْتَحْ

له سنګسار شوو نه | ده وویل | اے ربه زما! | بیشکه زما قوم | دروغ وګڼلم زه | پس فیصله وکړه

کړے شے. نوح ؑ دعا وکړه چه اے زما ربه! زما قوم زه دروغژن وګڼلم - نو ته زما او د دوی

بَيْنِي وَبَيْنَهُمْ فَتْحًا وَنَجِّنِي وَمَن مَّعِيَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ ﴿۱۱۸﴾

په مینځ زما | او په مینځ د دوی کښے | فیصله (قطعی) | او نجات راکړه ماته | او هغه چاته | چه ما سره دی | له مؤمنانو نه

تر مینځه یوه فیصله وکړه ، او ماله او زما ایماندارو ملګرو له نجات راکړه

فَأَنجَيْنَاهُ وَمَن مَّعَهُ فِي الْفُلْكِ الْمَشْحُونِ ﴿۱۱۹﴾ ثُمَّ أَغْرَقْنَا

پس مونږ نجات ورکړو ده ته | او څوک چه | ده سره وو | په کشتئ کښے | چه ډکه کړے شوے وه | بیا غرق کړل مونږه

نو بیا مونږ هغه هم او د هغه سره په ډکه کشتئ کښے ناست ملګری هم خلاص کړل - بیا مو باقی پاتے

بَعْدُ الْبَاقِينَ ﴿۱۲۰﴾ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً ۖ وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُم

پس له دے نه باقی پاتے شوی | بیشکه | په دے کښے | خامخا نخښه ده | او نه وو | اکثر له دوی نه

خلق ډوب کړل ، بیشکه چه په دے واقعه کښے لوئے سبق پروت دے ، او په دوی کښے اکثر خلق ایمان

مُّؤْمِنِينَ ﴿۱۲۱﴾ وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيزُ الرَّحِيمُ ﴿۱۲۲﴾ كَذَّبَتْ

ایمان راوړونکی | او بیشکه ستا رب | هم دے دے | غالب | مهربان | دروغژن وګڼل

نه راوړی - او بیشکه ستا رب زبردست دے ، مهربان دے ، د عاد خلقو خپل پیغمبران

عَادٌ الْمُرْسَلِينَ ﴿۱۲۳﴾ إِذْ قَالَ لَهُمْ أَخُوهُمْ هُودٌ أَلَا تَتَّقُونَ ﴿۱۲۴﴾

(قوم د) عاد | پیغمبران | هرکله چه | وویل | دوی ته | ورور د دوی | هود | آیا نه ویرېږئ تاسو

دروغژن وګڼل - هرکله چه د هغوی ورور هود ؑ وویل چه آیا تاسو (د خدائے د ګرفت نه) نه ویرېږئ

إِنِّي لَكُمْ رَسُولٌ أَمِينٌ ﴿۱۲۵﴾ فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَطِيعُونِ ﴿۱۲۶﴾

بیشکه زه | تاسو د پاره | پیغمبر | امانتدار یم | پس ویرېږئ | د الله نه | او حکم منئ زما

واورئ! زه تاسو د پاره امانت دار پیغمبر یم - نو د الله تعالیٰ نه ویرېږئ او زما خبره منئ

وَمَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ ۖ إِنْ أَجْرِيَ إِلَّا عَلَىٰ رَبِّ

او زه نه غواړم له تاسو نه | په دے (تبلیغ) | څه اجر | نه دے | اجر زما | مګر | په رب

او زه له تاسو نه په دے کار باندے هیڅ بدله نه غواړم - زما بدله خو د رب العالمین په

الْعَالَمِينَ ﴿۱۲۷﴾ أَتَبْنُونَ بِكُلِّ رِيعٍ آيَةً تَعْبَثُونَ ﴿۱۲۸﴾ وَتَتَّخِذُونَ

د ټولو جهانونو | آیا آبادوئ تاسو | په هره اوچته زمکه | یوه نخښه (عمارت) | بے فائدے؟ | او جوړوئ تاسو

ذمه ده - آیا تاسو په هر اوچت ځائے باندے فضول یادګارونه جوړوئ او دنګے دنګے ماڼۍ

النصف

ع ۶

مَصَانِعَ لَعَلَّكُمْ تَخْلُدُوْنَ ﴿١٢٩﴾ وَإِذَا بَطَشْتُمْ بَطَشْتُمْ
دنګې ښې ماڼۍ | شاید چه تاسو به | همیشه پاتې کیږئ | او هرکله چه | تاسو رانیسئ | نو رانیسئ
ابادوئ لکه چه همیشه به دلته استوګن یئ. او چه څوک رانیسئ نو ډیر په جبر سره
جَبَّارِيْنَ ﴿١٣٠﴾ فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَأَطِيْعُوْنِ ﴿١٣١﴾ وَاتَّقُوا الَّذِيْٓ أَمَدَّكُمْ
د ظالمانو په شان | پس ویریږئ | د الله نه | او حکم منئ زما | او ویریږئ | له هغه ذات چه | امداد ئې کړو ستاسو
ئې رانیسئ. نو د الله تعالیٰ نه ویریږئ او زما خبره ومنئ، او د هغه ذات نه وویریږئ چا چه ستاسو
بِمَا تَعْلَمُوْنَ ﴿١٣٢﴾ أَمَدَّكُمْ بِأَنْعَامٍ وَّبَنِيْنَ ﴿١٣٣﴾ وَجَنّٰتٍ
له هغه څه نه | چه تاسو پرې پوهیږئ | امداد ئې کړے د ستاسو | په چارپایانو | او په ځامنو | او په باغونو
په هغه څیزونو سره مدد وکړو کوم چه تاسو ته معلوم دي یعني هغه د څارو او د اولاد په شکل کښې ستاسو مدد وکړو او په
وَّعُيُوْنٍ ﴿١٣٤﴾ إِنِّيْٓ أَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيْمٍ ﴿١٣٥﴾ قَالُوْا
او په چینو سره | بیشکه زه | ویریږم | په تاسو | له عذاب | د ورځې | لوئې | دوی ووئیل
باغونو او چینو سره - ما ته ستاسو په معامله کښې د لوئې ورځې د عذاب اندېښنه ده - هغوئ جواب ورکړو
سَوَآءٌ عَلَيْنَآ أَوَعَظْتَ أَمْ لَمْ تَكُنْ مِّنَ الْوَاعِظِيْنَ ﴿١٣٦﴾ إِنْ هٰذَآ إِلَّا
برابره ده | په مونږ | چه نه نصیحت وکړے | یا نه یئ ته | له نصیحت کوونکو نه | نه دے دا مګر
مونږ د پاره برابره ده که ته را ته نصیحت وکړے یا ونه کړے - دا خو بس د پخوانو
خُلُقُ الْأَوَّلِيْنَ ﴿١٣٧﴾ وَمَا نَحْنُ بِمُعَذَّبِيْنَ ﴿١٣٨﴾ فَكَذَّبُوْهُ فَأَهْلَكْنٰهُمْ
عادت دے د پخوانو خلقو | او نه یو مونږ | عذاب کړی شوی | پس دوی دروغ وګڼړلو هغه | پس هلاک کړل مونږ هغوی
خلقو عادت تو نه دی - او مونږ ته به هیچرے عذاب را کولے نه شی پس هغوئ هود دروغ وګڼړلو نو مونږ هغوئ
إِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً ۖ وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿١٣٩﴾
بیشکه | په دے کښې | نخښه ده (د قدرت) | او نه وو | اکثر له دوی نه | ایمان راوړونکی
هلاک کړل، بیشکه په دے کښې نخښه د عبرت ده، او په دوی کښې اکثر خلق ایمان نه راوړی -
وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ ﴿١٤٠﴾ كَذَّبَتْ ثَمُوْدُ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿١٤١﴾ ع ١٨
او بیشکه | ستا رب | هم هغه دے | غالب | مهربان | دروغ وګڼړل | قوم د ثمود | پیغمبران
او ستا رب یقیناً زبردست دے مهربان دے - (دغه شان) قوم د ثمود پیغمبران دروغژن وګڼړل -
إِذْ قَالَ لَهُمْ أَخُوْهُمْ صٰلِحٌ أَلَا تَتَّقُوْنَ ﴿١٤٢﴾ إِنِّيْ لَكُمْ رَسُوْلٌ
هرکله چه ووئیل | دوی ته | د دوی ورور | صالح | آیا تاسو نه ویریږئ | بیشکه زه | ستاسو د پاره | پیغمبر
څه وخت چه د دوی ورور صالح دوی ته ووئیل، آیا تاسو (د الله تعالیٰ د نافرمانئ ته) نه ویریږئ؟ زه تاسو د پاره یو امانتدار
أَمِيْنٌ ﴿١٤٣﴾ فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَأَطِيْعُوْنِ ﴿١٤٤﴾ وَمَآ أَسْئَلُكُمْ عَلَيْهِ
امانت دار یم | پس ویریږئ | د الله نه | او حکم ومنئ زما | او زه نه غواړم له تاسو نه | په دے (تبلیغ)
پیغمبر یم، پس تاسو د الله تعالیٰ نه وبریږئ او زما حکم منئ - او زه تاسو نه د دے خبرے هیڅ

مِنْ اَجْرٍ ۚ اِنْ اَجْرِیَ اِلَّا عَلٰی رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ ﴿١٢٧﴾ اَتُتْرَكُوْنَ

څه بدله | نه ده | زما بدله | مګر | په ربّ | دَ عالمونو | آیا تاسو به پرېښودے شئ

معاوضه نه اخلم ، زما معاوضه خو دَ پروردګار عالم په ذمه ده ـ آیا کوم څیزونه چه په دُنیا کښې دی

فِیْ مَا هٰهُنَآ اٰمِنِیْنَ ﴿١٢٨﴾ فِیْ جَنّٰتٍ وَّ عُیُوْنٍ ﴿١٢٩﴾ وَّ زُرُوْعٍ

په هغه څه کښې | چه دلته دی | په امن سره | په باغونو کښې | او په چینو کښې | او په فصلونو کښې

تاسو به په دے کښې په امن سره پرېښودے شئ ؟ (یعنی) په باغونو او چینو کښې ، او په فصلونو کښې

وَّ نَخْلٍ طَلْعُهَا هَضِیْمٌ ﴿١٣٠﴾ وَ تَنْحِتُوْنَ مِنَ الْجِبَالِ بُیُوْتًا

او په کجورو کښې | چه خوشه دَ هغې | نازکه ده | او تاسو تراشئ | له غرونو نه | کورونه

او په کجورو کښې دَ کومو خوشې چه نرمے او نازکے وی ، او تاسو غرونه تراشئ او دَ فخر دَ پاره په کښې مانړئ

فٰرِهِیْنَ ﴿١٣١﴾ فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَ اَطِیْعُوْنِ ﴿١٣٢﴾ وَ لَا تُطِیْعُوْۤا اَمْرَ الْمُسْرِفِیْنَ ﴿١٣٣﴾

په فخر سره | پس ویرېږئ | دَ الله نه | او زما حکم منئ | او مه منئ | حکم | له حد نه دَ تېرېدونکو

جوړوئ ، نو تاسو دَ الله تعالیٰ نه ویرېږئ او زما خبره منئ او دَ حد نه دَ تېرېدونکو خبره مه منئ

الَّذِیْنَ یُفْسِدُوْنَ فِی الْاَرْضِ وَ لَا یُصْلِحُوْنَ ﴿١٣٤﴾ قَالُوْۤا اِنَّمَاۤ اَنْتَ

کوم چه | فساد کوی | په زمکه کښې | او اصلاح نه کوی | دوی ووئیل | بېشکه ته یې

چه په ملک کښې فساد خوروی او سَم کارئے دَ لاسه نه کیږی ـ هغوئ ورته ووئیل چه په تا خو چرته

مِنَ الْمُسَحَّرِیْنَ ﴿١٣٥﴾ مَاۤ اَنْتَ اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُنَا ۚۖ فَاْتِ بِاٰیَةٍ

له جادو زپلو خلقو نه | نه یې ته | مګر | انسان | په شان زمونږ | پس راوړه | څه نخښه

غټ جادو شوے دے ـ ته خو زمونږ په شان یو انسان یې ـ نو څه معجزه راوړه که ته

اِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِیْنَ ﴿١٣٦﴾ قَالَ هٰذِهٖ نَاقَةٌ لَّهَا شِرْبٌ

که چرے ته یې | له رښتیا ویونکو نه | ده ووئیل | دا | اوښه ده | دَ دے | دَ اوبو څښلو (وارده)

(په دے دعوی کښې) رښتینے یې ؟ (صالح ؑ) وفرمائیل دا یوه اوښه ده چه یوه ورځ دَ اوبو څښلو وار دَ دے

وَّ لَكُمْ شِرْبُ یَوْمٍ مَّعْلُوْمٍ ﴿١٣٧﴾ وَ لَا تَمَسُّوْهَا بِسُوْٓءٍ فَیَاْخُذَكُمْ

او تاسو دَ پاره (هم) | دَ اوبو څښلو وارده | دَ ورځے | مقرر ے | او مه رسوئ دے ته | څه تکلیف | پس ونه نیسی تاسو

دے او دَ یوے ټاکلے ورځے یو وار تاسو دَ پاره مقرر دَے او دے اوښے ته تکلیف مه ورکوئ کنی تاسو به دَ یوے

عَذَابُ یَوْمٍ عَظِیْمٍ ﴿١٣٨﴾ فَعَقَرُوْهَا فَاَصْبَحُوْا نٰدِمِیْنَ ﴿١٣٩﴾

عذاب | دَ ورځے | لوئے | پس په پښو ووهله دوی هغه | پس شول دوی | پښېمانه

درنے ورځے عذاب ونیسی ـ خو هغوئ دَ اوښے پښے پرے کړے نو بیا په خپلو کړو پښېمانه شول

فَاَخَذَهُمُ الْعَذَابُ ؕ اِنَّ فِیْ ذٰلِكَ لَاٰیَةً ؕ وَ مَا كَانَ اَكْثَرُهُمْ

بیا ونیول دوی | عذاب | بېشکه | په دے کښې | نخښه ده (دَ قدرت) | او نه وو | اکثر له دوی نه

بیا دوی عذاب راونیول ـ یقیناً په دے واقعه کښې نخښه دَ عبرت ده ـ او په دوئ کښې اکثر خلق ایمان نه

ع ١٩ ١٢ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿١۵٨﴾ وَاِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ ﴿١۵٩﴾ كَذَّبَتْ قَوْمُ لُوْطِ

ایمان راوړونکي | او بیشکه | ستارب | هم دے | غالب | مهربان | دروغژن وګڼل | قوم | دَ لوط

راوړي. - او بیشکه چه ستارب زبردست دے مهربان دے. دَ لوط قوم هم خپل پیغمبران دروغژن

الْمُرْسَلِيْنَ ﴿١٦٠﴾ اِذْ قَالَ لَهُمْ اَخُوْهُمْ لُوْطٌ اَلَا تَتَّقُوْنَ ﴿١٦١﴾ اِنِّيْ

پیغمبران | هر کله چه ووئیل | دوی ته | ورور دَ دوی | لوط | آیا نۀ ویریږئ تاسو | بیشکه زۀ

وګڼل. خۀ وخت چه دَ دوی ورور لوط دوی ته ووئیل چه آیا تاسو (دَ الله تعالیٰ نه) نۀ ویریږئ؟ زۀ ستاسو

لَكُمْ رَسُوْلٌ اَمِيْنٌ ﴿١٦٢﴾ فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوْنِ ﴿١٦٣﴾ وَمَآ اَسْـَٔلُكُمْ

تاسو دَ پاره | پیغمبر | امانتدار یم | پس ویریږئ | دَ الله نه | او حکم منئ زما | او زۀ نۀ غواړم له تاسو

په حقله امانتګر پیغمبر یم. نو تاسو دَ الله تعالیٰ نه ویریږئ او زما خبره منئ او زۀ له تاسو نه په دې

عَلَيْهِ مِنْ اَجْرٍ اِنْ اَجْرِيَ اِلَّا عَلٰى رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿١٦٤﴾ اَتَاْتُوْنَ

په دې (تبلیغ) | څۀ اجر | نۀ دے | زما اجر | مګر | په پروردګار | دَ عالمونو | آیا تاسو راځئ

(تبلیغ) څۀ بدله خونۀ غواړم - زما بدله خو دَ رب العالمین په ذمه ده. آیا په ټوله دُنیا کښې یوازې

الذُّكْرَانَ مِنَ الْعٰلَمِيْنَ ﴿١٦۵﴾ وَتَذَرُوْنَ مَا خَلَقَ لَكُمْ رَبُّكُمْ

سړو ته | له اهل عالمونه | او پریږدئ | هغه څۀ | چه پیدا کړل | تاسو دَ پاره | ستاسو رب

تاسو (دَ ټولے خلق نه) یئ چه دَ هلکانو سره بدفعلي کوئ؟ او ستاسو رب چه تاسو له کومے ښځے پیدا کړې دی، هغه

مِّنْ اَزْوَاجِكُمْ ؕ بَلْ اَنْتُمْ قَوْمٌ عٰدُوْنَ ﴿١٦٦﴾ قَالُوْا لَئِنْ لَّمْ تَنْتَهِ يٰلُوْطُ

له ښځو ستاسو نه | بلکه تاسو یئ | خلق | له حده تیریدونکي | دوی ووئیل | که چرته منع نۀ شوے | اے لوطه!

تاسو پریږدئ ، تاسو خو دَ حد نه تیرشوی خلق یئ - هغوئ ورته ووئیل چه اے لوطه! که تۀ دَ چلو خبرو

لَتَكُوْنَنَّ مِنَ الْمُخْرَجِيْنَ ﴿١٦٧﴾ قَالَ اِنِّيْ لِعَمَلِكُمْ مِّنَ الْقَالِيْنَ ﴿١٦٨﴾

نو خامخا به شے نه | له ویستلے شوو نه | دۀ ووئیل | بیشکه زۀ | ستاسو دَ عمل نه | وېزاره یم

نه منع نۀ شوے نو دَ وطن نه به بهر وُویستلے شے - (لوط) وفرمایئل بیشکه زۀ ستاسو دَ عملونو نه نفرت کوم -

رَبِّ نَجِّنِيْ وَاَهْلِيْ مِمَّا يَعْمَلُوْنَ ﴿١٦٩﴾ فَنَجَّيْنٰهُ

اے زما ربه! | نجات راکړه ما ته | او زما کوروالو ته | له هغه څۀ نه | چه دوی ئے کوی | پس مونږ نجات ورکړو دۀ ته

اے زما ربه! ما او زما خاندان دَ دے خلقو دَ عملونو (دَ وبال) نه وُساته ، پس مونږ دے او دَ دۀ ټول

وَاَهْلَهٗٓ اَجْمَعِيْنَ ﴿١٧٠﴾ اِلَّا عَجُوْزًا فِي الْغٰبِرِيْنَ ﴿١٧١﴾ ثُمَّ دَمَّرْنَا

او دَ دۀ دَ کور ټولو خلقو نه | سیوا دَ یوے بوډۍ نه | چه وه له باقي پاتے کیدونکو نه | بیا | هلاک کړل مونږ

خاندان بچ کړو - خو بس یوه بوډۍ چه په وروستو پاتے کیدونکو کښے پاتے شوه ، بیا مونږ نور ټول تباه

الْاٰخَرِيْنَ ﴿١٧٢﴾ وَاَمْطَرْنَا عَلَيْهِمْ مَّطَرًا ۚ فَسَآءَ مَطَرُ الْمُنْذَرِيْنَ ﴿١٧٣﴾

هغه نور | او مونږ وُورولو | په دوی باندې | (یو قسم) باران | پس بد دے | باران | دَ ویرول شوو -

کړل - او په هغوئ مو یو خاص قسم باران وورولو نو څومره خراب باران وو په هغه خلقو چه دَ عذابۀ ویرول شوی

إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً ۖ وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُم مُّؤْمِنِينَ ﴿١٧٤﴾ وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيزُ

بیشکه | په دې کښې | نخښه ده | او نهٔ | وو | اکثر له دوی نه | ایمان راوړونکي | او بیشکه هم ستا رب | غالب

بیشکه په دې واقعه کښې نشان (دَعبرت) دې او په دوئ کښې اکثر خلق ایمان نهٔ راوړي ۔ او بیشکه چه ستا رب دے مهربان

ع ٩ ١٦ ١٣ الرَّحِيمُ ﴿١٧٥﴾ كَذَّبَ أَصْحَابُ لْئَيْكَةِ الْمُرْسَلِينَ ﴿١٧٦﴾ إِذْ قَالَ لَهُمْ شُعَيْبٌ

مهربان دے | دروغ وګڼل | دَ بېنړ وُسېدونکو | پېغمبران | هر کله چه ووئیل | دوی ته | شعیبؑ

دے ۔ دَ بېنړ خاوندانو خپل پېغمبران دروغژن وګڼل، کله چه شعیبؑ دوی ته ووئیل چه

أَلَا تَتَّقُونَ ﴿١٧٧﴾ إِنِّي لَكُمْ رَسُولٌ أَمِينٌ ﴿١٧٨﴾ فَاتَّقُوا اللَّهَ

آیا نهٔ وېرېږئ تاسو | بیشکه زهٔ | تاسو دَپاره | پېغمبر | امانت دار یم | پس وېرېږئ | دَ الله نه

آیا تاسو (دَ الله تعالیٰ نه) نهٔ وېرېږئ ۔ زهٔ تاسو دَپاره امانت دار پېغمبر یم ۔ نو دَ الله تعالیٰ نه وېره کوئ

وَأَطِيعُونِ ﴿١٧٩﴾ وَمَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ ۖ إِنْ أَجْرِيَ إِلَّا

او زما حکم منئ | او زهٔ نهٔ غواړم له تاسو نه | په دے (تبلیغ) | څهٔ بدله | نهٔ ده زما بدله | مګر

او زما خبره منئ ۔ او زهٔ تاسو نه په دے کار هیڅ بدله نهٔ غواړم ، زما بدله خو بس یوازے دَ رب العالمین

عَلَىٰ رَبِّ الْعَالَمِينَ ﴿١٨٠﴾ أَوْفُوا الْكَيْلَ وَلَا تَكُونُوا مِنَ الْمُخْسِرِينَ ﴿١٨١﴾

په رب | دَ عالمونو | پوره کوئ | ناپ | او مهٔ کیږئ | له نقصان ورکوونکو نه

په ذمه ده ۔ تاسو پیمانه پوره پوره ورکوئ او خلقو ته نقصان مهٔ ورکوئ ۔

وَزِنُوا بِالْقِسْطَاسِ الْمُسْتَقِيمِ ﴿١٨٢﴾ وَلَا تَبْخَسُوا النَّاسَ أَشْيَاءَهُمْ

او تول کوئ | په تلے | سمے سره | او کم مهٔ ورکوئ | خلقو ته | څیزونه دَ هغوئ

او په سمه روغه تله باندې تول کوئ ۔ او خلقو ته دَ هغوئ په څیزونو کښې تاوانونه مهٔ ورکوئ

وَلَا تَعْثَوْا فِي الْأَرْضِ مُفْسِدِينَ ﴿١٨٣﴾ وَاتَّقُوا الَّذِي خَلَقَكُمْ

او مهٔ ګرځئ | په زمکه کښې | فساد کوونکي | او ووېرېږئ | دَ هغه چانه چه | پیدا ئے کړئ تاسو

او په ملک کښې فسادونه مهٔ خوروئ ۔ او دَ هغه ذات نه ووېرېږئ چه تاسو او تاسو نه

وَالْجِبِلَّةَ الْأَوَّلِينَ ﴿١٨٤﴾ قَالُوا إِنَّمَا أَنتَ مِنَ الْمُسَحَّرِينَ ﴿١٨٥﴾ وَمَا أَنتَ

ومخلوقات | ـ مخکواني | دوی ووئیل | بیشکه ته یې | له جادو زېلو خلقو نه | او نهٔ یې ته

مخکواني مخلوقات ئې پیدا کړي دي، هغوئ ورته ووئیل چه په تا خو چا جادو کړے دے او ته خو بس

إِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُنَا وَإِن نَّظُنُّكَ لَمِنَ الْكَاذِبِينَ ﴿١٨٦﴾ فَأَسْقِطْ

مګر | انسان | په شان زمونږ | او بیشکه | مونږ خیال کوو په تا | له دروغژنو نه | پس راوغورځوه

زمونږ په شان انسان یې ۔ او زمونږ دا خیال دے چه ته دروغژن یې ۔ نو که ته رښتینے

عَلَيْنَا كِسَفًا مِّنَ السَّمَاءِ إِن كُنتَ مِنَ الصَّادِقِينَ ﴿١٨٧﴾

په مونږ باندې | یوه ټکړه | له آسمان نه | که چرے ته یې | له رښتینو نه

یې نو په مونږ باندې دَ آسمان نه یوه ټوټه راوغورځوه ۔

قَالَ رَبِّيٓ اَعۡلَمُ بِمَا تَعۡمَلُوۡنَ ﴿۱۸۸﴾ فَكَذَّبُوۡهُ فَاَخَذَهُمۡ
دهٔ وویٔیل | زما رب | ښهٔ پوهه دے | په هغه څهٔ | چه تاسو ئے کوئی | نو دوی دروغژن وګڼړلو هغه | پس ونیول دوی
شعیبؑ وفرمائیل چه زما رب ته ستا سو عملونه په ښهٔ شان معلوم دی، خو هغوئی شعیبؑ دروغژن وګڼړلو نو دَ سایوان
عَذَابُ يَوۡمِ الظُّلَّةِ ؕ اِنَّهٗ كَانَ عَذَابَ يَوۡمٍ عَظِيۡمٍ ﴿۱۸۹﴾
عذاب | دَورځے | دَ سورى | بیشکه هغه | وو | عذاب | دَورځے | لویے
دَورځے عذاب راګیر کړل. بیشکه چه دغه دَ عذاب ډیره سخته ورځ ده.
اِنَّ فِيۡ ذٰلِكَ لَاٰيَةً ؕ وَمَا كَانَ اَكۡثَرُهُمۡ مُّؤۡمِنِيۡنَ ﴿۱۹۰﴾
بیشکه | په دِے کښے | نخښه (دَ قدرت) ده | او نهٔ وُو | اکثر له دوی نه | ایمان راؤړونکی.
بیشکه په دے واقعه کښے هم (خلقو دَپاره) نخښه دَ عبرت ده، مګر په دوئ کښے اکثر خلق ایمان راؤړونکی نهٔ دی
وَاِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الۡعَزِيۡزُ الرَّحِيۡمُ ﴿۱۹۱﴾ وَاِنَّهٗ لَتَنۡزِيۡلُ ع ۱۰ ۱۶ ۱۴
او بیشکه | ستا رب | هم دے دے | غالب | مهربان | او بیشکه دا (قرآن) | نازل کړے شوے دے
او بیشکه هم ستا رب غالب (او) مهربان دے. او دا قرآن دَ رب العلمین رالیږلے
رَبِّ الۡعٰلَمِيۡنَ ﴿۱۹۲﴾ ؕ نَزَلَ بِهِ الرُّوۡحُ الۡاَمِيۡنُ ﴿۱۹۳﴾ عَلٰى قَلۡبِكَ
دَ ټولو جهانونو دَ رب | نازل کړے دے | دا | روح الامین (جبرائیل) | ستا په زړهٔ باندِ
پیغام دے. دا روح الامین (جبرائیل) راؤړے نازل کړے دے. ستا په زړهٔ (ئے نازل کړے دے)
لِتَكُوۡنَ مِنَ الۡمُنۡذِرِيۡنَ ﴿۱۹۴﴾ بِلِسَانٍ عَرَبِيٍّ مُّبِيۡنٍ ﴿۱۹۵﴾ ؕ وَاِنَّهٗ
دَپارهٔ دِے چه شے ته | له ویرَوونکو نه | په ژبه | دَ عربئ | چه واضحه ده | او بیشکه دا
چه ته (دَ دے په ذریعه) خلق دَ (الله دَ) عذابه وویروے، دا په واضحه عربئ ژبه کښے دے. او دَ دِے ذکر دَ
لَفِيۡ زُبُرِ الۡاَوَّلِيۡنَ ﴿۱۹۶﴾ اَوَلَمۡ يَكُنۡ لَّهُمۡ اٰيَةً اَنۡ يَّعۡلَمَهٗ عُلَمٰٓؤُا
په وړومبنو کتابونو کښے دے | آیا نشته دے | دوی دَپاره | نخښه | چه پیژنی دا | عالمان
پخوانو اُمتونو په کتابونو کښے راغلے دے. آیا دِے خلقوله دا خبره (کافی) دلیل نهٔ دے چه (دَ دِے کتاب حقیقت) دَ
بَنِيۡۤ اِسۡرَآءِيۡلَ ﴿۱۹۷﴾ ؕ وَلَوۡ نَزَّلۡنٰهُ عَلٰى بَعۡضِ الۡاَعۡجَمِيۡنَ ﴿۱۹۸﴾
دَ بنی اسرائیلو | او که چیرے مونږ نازل کړے وَے دا | په څنو | عجمیانو
بنی اسرائیلو عالمانو ته معلوم دے؟ او کهٔ دا (کتاب) مونږ په څه عجمی باندِ رانازل کړے وے، او بیا
فَقَرَاَهٗ عَلَيۡهِمۡ مَّا كَانُوۡا بِهٖ مُؤۡمِنِيۡنَ ﴿۱۹۹﴾ ؕ كَذٰلِكَ سَلَكۡنٰهُ
بیا هغهٔ لوستلے دا | په دوی باندِ | نو (هم) به نهٔ وُو دوی | په دے | ایمان راؤړونکی | دغه شان | اچولے ده مونږ دا خبره
هغهٔ دَ دوئ په وړاندِ لوستلے هم وے نو دوئ به منلے نهٔ وو. دغه شان مونږ دا (عناد او انکار)
فِيۡ قُلُوۡبِ الۡمُجۡرِمِيۡنَ ﴿۲۰۰﴾ ؕ لَا يُؤۡمِنُوۡنَ بِهٖ حَتّٰى يَرَوُا الۡعَذَابَ
په زړونو کښے | دَ مجرمانو | دوی ایمان نهٔ راؤړی | په دے (قرآن) | ترڅو چه | دوی ووینی | عذاب
دَ مجرمانو په زړونو کښے اچولے دے. دوی به په دِے ایمان نهٔ راؤړی ترڅو چه دردناک عذاب په خپلو

اَلِيْمٌ ﴿٢٠١﴾ فَيَاْتِيَهُمْ بَغْتَةً وَّهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ ﴿٢٠٢﴾ فَيَقُوْلُوْا هَلْ

دردناک | هغه به راشي دوی ته | ناڅاپه | او دوی به | بې خبره وي | بیا به دوی ووایي | آیا

سخت درد ورکوونکی، نو هغه (عذاب) به په پرېو ناڅاپه راشي او دوی به ترې نه خبر هم نه وي، نو هغه ساعت به ووایي

نَحْنُ مُنْظَرُوْنَ ﴿٢٠٣﴾ اَفَبِعَذَابِنَا يَسْتَعْجِلُوْنَ ﴿٢٠٤﴾ اَفَرَءَيْتَ اِنْ مَّتَّعْنٰهُمْ

مونږ ته به مهلت راکړے شي | پس آیا دوی زمونږ عذاب | زر غواړي | آیا تا ته دي لیدلي؟ | که چرې مونږ دوی ته فائده ورسوو

چې آیا مونږ له به مهلت راکړے شي؟ نو آیا دوی زمونږ عذاب زر غواړي؟ هله ته دا وایه چې که مونږ یو څو کاله دوی ته

سِنِيْنَ ﴿٢٠٥﴾ ثُمَّ جَآءَهُمْ مَّا كَانُوْا يُوْعَدُوْنَ ﴿٢٠٦﴾ مَآ اَغْنٰى عَنْهُمْ مَّا

ډیر کلونه | بیا راشي په دوی باندې | هغه (عذاب) | د کوم چې دوی سره وعده کولے شي | نو په کار به رانه شي | د دوی | هغه

عیش معاش کښې وساتو، او بیا پرې هغه عذاب راشي چې د کوم وعده ورسره شوې دی، نو د دوی هغه عیش معاش د

كَانُوْا يُمَتَّعُوْنَ ﴿٢٠٧﴾ وَمَآ اَهْلَكْنَا مِنْ قَرْيَةٍ اِلَّا لَهَا مُنْذِرُوْنَ ﴿٢٠٨﴾

د کوم نه چې دوی فائدے اخستلے | او نه دے هلاک کړے مونږ | هیڅ کلے | مګر | د هغے د پاره | ویرونکی (پیغمبران مولیږلي) وو

څه کار شو؟ او مونږ چې کوم کلی تباه کړي دي نو په هغې ټولو کښې (اول) ویرونکی راغلي وو۔

ذِكْرٰى ۛ وَمَا كُنَّا ظٰلِمِيْنَ ﴿٢٠٩﴾ وَمَا تَنَزَّلَتْ بِهِ الشَّيٰطِيْنُ ﴿٢١٠﴾

نصیحت د پاره | او مونږ ظالمان نه وو | او نه دے | بنکته راوړے | دا (قرآن) | شیطانانو۔

د نصیحت د پاره او مونږ په چا ظلم نه کوو او دا قرآن شیطانانو نه دے راوړے۔

وَمَا يَنْۢبَغِيْ لَهُمْ وَمَا يَسْتَطِيْعُوْنَ ﴿٢١١﴾ اِنَّهُمْ عَنِ السَّمْعِ

او نه دی مناسب | دوی د پاره | او نه | دوی کولے شو | بیشکه دوی | د آورېدلو نه

او دا د هغوی د پاره مناسب هم نه دی او نه دا د هغوی د وس کار دے۔ هغوی د دې (پاکیزه کلام) د اورېدلو (قدرت

لَمَعْزُوْلُوْنَ ﴿٢١٢﴾ فَلَا تَدْعُ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ فَتَكُوْنَ

لرے ساتلی شوی دی | پس مه | بله | د الله سره | معبود بل | پس شے به ته

هم محروم دی۔ نو ته د الله تعالیٰ سره د بل معبود بلنه مه کوه کنی تاله به عذاب

مِنَ الْمُعَذَّبِيْنَ ﴿٢١٣﴾ وَاَنْذِرْ عَشِيْرَتَكَ الْاَقْرَبِيْنَ ﴿٢١٤﴾ وَاخْفِضْ

له عذاب ورکړی شوو نه | او وویروه | خپل رشته دار | نزدے | او ښکته کړه

ورکړے شي، او نزدے خپل خپلوان د (د عذاب نه) ووېروه، او هغه مؤمنانو ته

جَنَاحَكَ لِمَنِ اتَّبَعَكَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿٢١٥﴾ فَاِنْ عَصَوْكَ فَقُلْ

وزر خپل | د پاره د هغه چا چې | پیروی کوي ستا | له مؤمنانو نه | پس که چرے | دوی نافرماني وکړي ستا | نو ووایه

خپل وزر ښکته ساته چې ستا په قدم پسے روان وي۔ او که دا خلق ستا خبره نه مني نو ورته ووایه

اِنِّيْ بَرِيْٓءٌ مِّمَّا تَعْمَلُوْنَ ﴿٢١٦﴾ وَتَوَكَّلْ عَلَى الْعَزِيْزِ الرَّحِيْمِ ﴿٢١٧﴾

بیشکه زه وېزار یم | له هغه څه نه | چې تاسو کوئ | او توکل وکړه | په غالب | مهربان

چې زه ستاسو د کارونو نه لاس په سر یم۔ او په قادر او مهربان الله باندې باور ساته۔

مع ٩

الَّذِیْ یَرٰىكَ حِیْنَ تَقُوْمُ ﴿۲۱۸﴾ وَتَقَلُّبَكَ فِی السّٰجِدِیْنَ ﴿۲۱۹﴾ اِنَّهٗ
هغه ذات چه | وینی تا | هر کله چه | ته پاسې | او کرځیدل ستا | په سجده کوونکو کښې | بیشکه
چه تا ګوری هر کله چه ته (مونځ د پاره) ودریږې او په مونځ ګزاروکښې ستا ښکته پورته کیدل هم (وینی)، هغه
هُوَ السَّمِیْعُ الْعَلِیْمُ ﴿۲۲۰﴾ هَلْ اُنَبِّئُكُمْ عَلٰى مَنْ تَنَزَّلُ الشَّیٰطِیْنُ ﴿۲۲۱﴾
هغه | آوریدونکے | پوهه دے | آیا | زهٔ تاسو ته وښایم | چه په چا باندې | نازلیږی | شیطانان
ډیر ښهٔ آوریدونکے په هر څهٔ پوهه دے. آیا زهٔ تاسو ته وښایم چه شیطانان په چا باندې راکوزیږی
تَنَزَّلُ عَلٰى كُلِّ اَفَّاكٍ اَثِیْمٍ ﴿۲۲۲﴾ یُّلْقُوْنَ السَّمْعَ وَاَكْثَرُهُمْ
نازلیږی | په هر یو | دروغژن | ګناهګار | دوی غوږ ږدی | آوریدو ته | او اکثر له دوی نه
هغوئ په هر دروغژن بدکار باندې راکوزیږی، چه هر ے خبرے ته غوږ ږدی او دا سے خلق اکثر
كٰذِبُوْنَ ﴿۲۲۳﴾ وَالشُّعَرَآءُ یَتَّبِعُهُمُ الْغَاوٗنَ ﴿۲۲۴﴾ اَلَمْ تَرَ اَنَّهُمْ فِیْ كُلِّ وَادٍ
دروغژن دی | او شاعران چه دی | پیروی کوی د دوی | ګمراهان | ایا تا نهٔ دی کتلی | چه دوی | په هر یو میدان کښې
دروغژن وی، او پاتے شول شاعران نو د هغوئ په لاره خو ګمراه خلق روان وی. ایا تا ته معلومه نهٔ ده چه هغوئ
یَّهِیْمُوْنَ ﴿۲۲۵﴾ وَاَنَّهُمْ یَقُوْلُوْنَ مَا لَا یَفْعَلُوْنَ ﴿۲۲۶﴾ اِلَّا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا
سرګردانه ګرځی | او دا چه دوی | وائی | هغه څهٔ چه | کوی ئے نهٔ | مګر هغه خلق | چه ایمان ئے راوړو
په هر میدان کښې سر وهلی بروهلی ګرځی، او هغه څهٔ وائی چه په خپله پرے عمل نهٔ کوی، سیوا د هغو خلقو نه چه ایمان ئے
وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ وَذَكَرُوا اللّٰهَ كَثِیْرًا وَّانْتَصَرُوْا مِنْۢ بَعْدِ مَا ظُلِمُوْا
او عمل ئے وکړو | نیک | او یاد ئے کړو | الله | ډیر | او انتقام ئے واخستو | پس له دے نه چه ظلم وشو په دوی
راوړے دے او ښهٔ ښهٔ کارونه کوی او الله ډیر یادوی او هر کله چه په هغوئ ظلم وکړے شی نو پس له هغے نه خپله بدله
وَسَیَعْلَمُ الَّذِیْنَ ظَلَمُوْۤا اَیَّ مُنْقَلَبٍ یَّنْقَلِبُوْنَ ﴿۲۲۷﴾ ع ۱۱ ۳۶ ۱۵
او زر به پوهه شی | هغه خلق | کوم چه ظلم وکړو | چه کوم ځائے ته به | بیرته وګرځی دوی
واخلی، ظالمانو ته به ډیر زر معلومه شی چه هغوئ د عذاب کوم (خراب) ځائے ته واپس تلونکی دی

سُوْرَةُ النَّمْلِ مَكِّیَّةٌ وَّهِیَ ثَلٰثٌ وَّ تِسْعُوْنَ اٰیَةً وَّسَبْعُ رُكُوْعَاتٍ
سورۂ نمل په مکه کښې نازل شوا وه په دے کښې ۹۳ آیتونه او ۷ رکوع ګانے دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ
(شروع) د الله په نوم چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے
د الله په نوم شروع کوم چه لوئے مهربان د ډیر زیات رحم خاوند دے

طٰسٓ قف تِلْكَ اٰیٰتُ الْقُرْاٰنِ وَكِتَابٍ مُّبِیْنٍ ﴿۱﴾ هُدًى
طٰس | دا | آیتونه دی | د قرآن | او د کتاب | واضحه | هدایت
طٰس دا د قرآن او روښانه کتاب آیتونه دی ــ مؤمنانو د پاره
وَّبُشْرٰى لِلْمُؤْمِنِیْنَ ﴿۲﴾ الَّذِیْنَ یُقِیْمُوْنَ الصَّلٰوةَ وَیُؤْتُوْنَ
او زیرے دے | د پاره د مؤمنانو | کوم خلق چه | قائم ساتی | مونځ | او ورکوی
هدایت او زیرے دے، هغه کوم چه د مونځ پابندی کوی، او زکوٰة

الزَّكٰوةَ وَهُمْ بِالْاٰخِرَةِ هُمْ يُوْقِنُوْنَ ③ اِنَّ الَّذِيْنَ
زکٰوة | او دوی | په آخرت | یقین لری | بیشکه | کوم خلق چه
ورکوی ، او په آخرت باندې پوخ یقین ساتي۔ کوم خلق چه په
لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ زَيَّنَّا لَهُمْ اَعْمَالَهُمْ فَهُمْ يَعْمَهُوْنَ ④
یقین نهٔ لری | په آخرت | ښائسته کړل مونږ | دوی ته | دَ دوی عملونه | پس دوی | سرګردانه ګرځی
آخرت ایمان نهٔ لری نو مونږ دے خلقو ته خپل (بد) عملونه ښائسته ښکاره کړی دی نو هغوئی سرو هلی برو هلی
اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ لَهُمْ سُوْٓءُ الْعَذَابِ وَهُمْ فِى الْاٰخِرَةِ
دا هٔ له | هغه کسان دی چه | دوی دَ پاره | خراب | عذاب دے | او دوی | په آخرت کښے
ګرځی. هم دا خلق دی چه دوی دَ پاره سخت عذاب مقرر دے او هم دوئی به په آخرت کښے دَ ټولو نه
هُمُ الْاَخْسَرُوْنَ ⑤ وَاِنَّكَ لَتُلَقَّى الْقُرْاٰنَ مِنْ لَّدُنْ
ډیر زیات نقصان موندونکی دی | او بیشکه تهٔ | درکولے شی تا ته | دا قرآن | له طرفه
زیات تاوانیان دی. او تا ته قرآن دَ حکیم او علیم ذات دَ طرف نه
حَكِيْمٍ عَلِيْمٍ ⑥ اِذْ قَالَ مُوْسٰى لِاَهْلِهٖٓ اِنِّىْٓ اٰنَسْتُ نَارًا
دَ حکیم | دانا | هر کله چه ووئیل | موسیٰ | خپل کور والو ته | بیشکه ما | لیدلے دے | یو اور
درکولے شی۔ هر کله چه موسیٰ دَ خپل کور خلقو ته ووئیل چه ما یو اور لیدلے دے
سَاٰتِيْكُمْ مِّنْهَا بِخَبَرٍ اَوْ اٰتِيْكُمْ بِشِهَابٍ قَبَسٍ لَّعَلَّكُمْ
زهٔ اوس راوړم تاسو ته | له هغې نه | څهٔ خبر | یا راوړم تاسو ته | سکروټه | بله | دَ پاره دَ چه تاسو
زهٔ به زر تاسو ته دَ هغه ځائے نه څهٔ خبر راوړم یا به یوه بله سکروټه راوړم چه تاسو ترے نه ګرمی حاصله
تَصْطَلُوْنَ ⑦ فَلَمَّا جَآءَهَا نُوْدِىَ اَنْۢ بُوْرِكَ مَنْ
ګرمی حاصله کړئ | پس هر کله چه | راغے هغې ته | نو دهٔ ته آواز وکړے شو | چه مبارک دے | هغه څوک چه
کړئ۔ نو څهٔ وخت چه موسیٰ هلته ورسید و نو آواز ورته وشو چه کوم (فرښتے) اور کښے دننه دی هغه هم
فِى النَّارِ وَمَنْ حَوْلَهَا ۭ وَسُبْحٰنَ اللّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ⑧
په اور کښے دے | او څوک چه | ګیر چاپیره دَ دهٔ دے | او پاک دے | الله | پروردګار دَ عالمونو
برکتی دی او کوم چه دَ دے نه ګیر چاپیره دی هغه هم مبارکے دی. او الله تعالیٰ پاک دے چه دَ ټولو مخلوقاتو پالونکے دے
يٰمُوْسٰٓى اِنَّهٗٓ اَنَا اللّٰهُ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ⑨ وَاَلْقِ
اے موسیٰ ! | بیشکه | زهٔ | الله | غالب | خاوند دَ حکمت یم | او وغورځوه
اے موسیٰ ! یقیناً هم زهٔ حقیقی معبود یم غالب او دَ حکمتونو خاوند۔ او ته خپله امسا
عَصَاكَ ۭ فَلَمَّا رَاٰهَا تَهْتَزُّ كَاَنَّهَا جَاۗنٌّ وَّلّٰى مُدْبِرًا
خپله امسا | پس هر کله چه | ولیده دهٔ هغه | چه هغه حرکت کوی | لکه چه هغه | مار دے | نو مخ واړولو دهٔ | شا ګرځونکے
وغورځوه نو څهٔ وخت چه موسیٰ وکتل چه هغه داسے خوزی لکه چه ماروی نو مخ یه شا ئے منډه کړه

وَلَمْ يُعَقِّبْ ۚ يٰمُوسٰى لَا تَخَفْ ۟ إِنِّي لَا يَخَافُ لَدَيَّ الْمُرْسَلُونَ ⑩

او بیرته راونهٔ گرځیدو | اے موسیٰ | مهٔ ویریږه | بیشکه | نهٔ ویریږی | په نزد زما | پیغمبران

اووروستو ئے ونهٔ کتل (مونږ اواز ورکړو چه) اے موسیٰ! ته مهٔ ویریږه، زما په نزد پیغمبران نهٔ ویریږی

إِلَّا مَنْ ظَلَمَ ثُمَّ بَدَّلَ حُسْنًا بَعْدَ سُوءٍ فَإِنِّي غَفُورٌ

مګر | چا چه ظلم وکړو | بیائے هغه بدل کړو | په نیکئ سره | پس | له بدئ نه | پس بیشکه زهٔ | بخښونکے

البته چا چه څهٔ ظلم کړے وی، بیا د بدئ په ځائے نیک کارونه وکړی نو زهٔ بخښونکے مهربان

رَحِيمٌ ⑪ وَأَدْخِلْ يَدَكَ فِي جَيْبِكَ تَخْرُجْ بَيْضَاءَ

مهربان یم | او دننه یوسه | خپل لاس | په خپل ګریوان کښے | هغه به راوځی | سپین شوے

یم. او ته خپل لاس ګریوان ته ورننباسه نګ سپین به راوځی

مِنْ غَيْرِ سُوءٍ ۟ فِي تِسْعِ آيَاتٍ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ وَقَوْمِهِ ۚ إِنَّهُمْ كَانُوا

بے له عیب نه | په نهو نخښو کښے | طرف د فرعون | او د دهٔ قوم ته | بیشکه دوی | وو

بغیر د څهٔ عیب نه، دا په هغه نهو معجزو کښے دی چه فرعون او د دهٔ د قوم د پاره دی ځکه چه هغوئی د حد نه

قَوْمًا فَاسِقِينَ ⑫ فَلَمَّا جَاءَتْهُمْ آيَاتُنَا مُبْصِرَةً قَالُوا هٰذَا سِحْرٌ

خلق نافرمانه | پس هر کله چه | راغلے دوی ته | زمونږ نخښے | روښانه | دوی ووئیل | دا | جادو دے

وړاندِ تیر شوی خلق دی، نو څهٔ وخت چه فرعونیانو ته زمونږ روښانه معجزے راورسیدے نو هغوئی ووئیل چه دا ښکاره

مُبِينٌ ⑬ وَجَحَدُوا بِهَا وَاسْتَيْقَنَتْهَا أَنْفُسُهُمْ ظُلْمًا وَعُلُوًّا ۚ

ښکاره | او دوی انکار وکړو | له هغے نه | او یقین کړے وو په هغے | زړونو د دوی | په ظلم | او تکبر سره

جادو دے، او د ظلم او د کبر په وجه د هغے نه منکر شول سره د دے چه په زړونو کښے ئے پرے یقین راغلے وو

فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُفْسِدِينَ ⑭ وَلَقَدْ آتَيْنَا دَاوُودَ ع ۱۴ ۱۶

پس وګوره | چه څنګه | شو | انجام | د فساد کوونکو | او بیشکه | ورکړے وُو مونږ | داؤد

نو تهٔ وګوره چه د دغه مفسدانو انجام څهٔ شو ؟ او مونږ داؤد او سلیمان علیهما السلام

وَسُلَيْمَانَ عِلْمًا ۖ وَقَالَا الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي فَضَّلَنَا

او سلیمان ته | علم | او هغو دواړو ووئیل | ټول تعریفونه | الله د پاره دی | هغه کوم چه | فضیلت راکړو مونږ ته

ته ډیر لوئے، علم ورکړو. او هغو دواړو ووئیل چه ټول تعریفونه الله تعالیٰ لره دی چه مونږ ته ئے د خپلو ډیرو

عَلَىٰ كَثِيرٍ مِنْ عِبَادِهِ الْمُؤْمِنِينَ ⑮ وَوَرِثَ سُلَيْمَانُ دَاوُودَ

په ډیرو باندِ | له خپلو مؤمنانو بندګانو نه | او وارث شو | سلیمان | د داؤد

مؤمنانو بندګانو نه افضل کړی یُو او سلیمان د داؤد وارث شو،

وَقَالَ يَا أَيُّهَا النَّاسُ عُلِّمْنَا مَنْطِقَ الطَّيْرِ وَأُوتِينَا

او دهٔ ووئیل | اے خلقو! | ښودلے شوه مونږ ته | ویتا | د مارغانو | او راکړے شو مونږ ته

او دائے ووئیل چه اے خلقو! مونږ ته د مارغانو ژبه ښودلے شوے ده، او مونږ ته هر قسم

مِنْ كُلِّ شَيْءٍ ۖ إِنَّ هٰذَا لَهُوَ الْفَضْلُ الْمُبِينُ ﴿١٦﴾ وَحُشِرَ

له هر یو څیز نه | بیشکه دا | فضل دے | ښکاره | او جمع کړے شوے

څیزونه راکړے شوي دي ، واقعي چه هم دا هغه ښکاره فضل دے . او سلیمان ؑ د پاره د

لِسُلَيْمٰنَ جُنُودُهُ مِنَ الْجِنِّ وَالْإِنْسِ وَالطَّيْرِ فَهُمْ يُوزَعُونَ ﴿١٧﴾

سلیمان ؑ دپاره | د ده لښکرے | له پیریانو | او بنیادمو | او مارغانو نه | پس دوی به | ودرولے شول .

پیریانو ، بنیادمو او مارغانو لښکرے راجمع کړے شوے او دوی به (د انتظام دپاره) ځائے په ځائے ودرولے

حَتّٰى إِذَا أَتَوْا عَلٰى وَادِ النَّمْلِ قَالَتْ نَمْلَةٌ يٰأَيُّهَا النَّمْلُ ادْخُلُوا

تردے چه | هر کله دوی راغلل | یو میدان ته | د میږو | نو ووئیل یو میږۍ | اے میږو ! | تاسو ننه شئ

راودرولے شوے ترڅو چه هغوئ د میږو یو میدان ته ورسیدل نو یو میږۍ ووئیل چه اے میږو ! خپلو خپلو غارونو ته

مَسٰكِنَكُمْ ۚ لَا يَحْطِمَنَّكُمْ سُلَيْمٰنُ وَجُنُودُهُ ۙ وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ ﴿١٨﴾ فَتَبَسَّمَ

خپلو کورونو ته | چخنړی نه کړی تاسو | سلیمان ؑ | او د ده لښکرے | او دوی | خبر هم نه وی | نو دے موسکے شو

ورننوځئ، هسے نه چه سلیمان ؑ او د هغه لښکرے مو په بے خبرئ کښے چخنړی کړی ، نو سلیمان ؑ د هغے په

ضَاحِكًا مِّنْ قَوْلِهَا وَقَالَ رَبِّ أَوْزِعْنِيْٓ أَنْ أَشْكُرَ نِعْمَتَكَ الَّتِيْٓ

خندیدونکے | په خبره د هغے | او دے ووئیل | اے زما ربه ! | ماله توفیق راکړه | چه زه شکر وکړم | ستا د نعمت | کوم چه

خبره په موسکا وخندل ، او دائے ووئیل چه اے زما ربه ! ما همیشه په داسے حال کښے وساتے چه ستا د هغے انعامونو

أَنْعَمْتَ عَلَيَّ وَعَلٰى وَالِدَيَّ وَأَنْ أَعْمَلَ صٰلِحًا تَرْضٰىهُ وَأَدْخِلْنِيْ

تا انعام کړے دے | په ما | او زما په پلار او مور باندے | او چه زه عمل وکړم | نیک | چه ته خوشحالیږے په هغے | او داخل کړه ما

شکر ادا کړم چه تا ما ته او زما پلار او مور ته ورکړی دی او چه داسے نیکئی وکړم چه ته پرے خوشحالیږے او ما په خپل

بِرَحْمَتِكَ فِيْ عِبَادِكَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿١٩﴾ وَتَفَقَّدَ الطَّيْرَ فَقَالَ

په خپل رحمت سره | په خپلو بندګانو کښے | چه نیکان دی | او ده حاضری واخسته | د مارغانو | نو دے ووئیل

رحمت سره په خپلو نیکانو بندګانو کښے شامل کړے ! او سلیمان ؑ د مارغانو حاضری واخسته نو دے ووئیل

مَا لِيَ لَآ أَرَى الْهُدْهُدَ ۖ أَمْ كَانَ مِنَ الْغَآئِبِيْنَ ﴿٢٠﴾ لَأُعَذِّبَنَّهُ

څه (خبره) ده | چه زه نه وینم | هُد هُد | یا هغه دے | غائب | زه به خامخا ده ته عذاب ورکړم

چه دا څه خبره ده چه زه هُد هُد نه وینم یا هغه چرته غائب شوے دے ؟ زه به ورله ډیره سخته

عَذَابًا شَدِيْدًا أَوْ لَأَاذْبَحَنَّهُ أَوْ لَيَأْتِيَنِّيْ بِسُلْطٰنٍ مُّبِيْنٍ ﴿٢١﴾

عذاب | سخت | یا به ذبح کړم دے | یا به دے راوړی ما ته | څه دلیل | ښکاره

سزا ورکړم ، یا به ئے حلال کړم او یا به ما ته (د خپلے غیر حاضرئ) کلک دلیل پیش کړی

فَمَكَثَ غَيْرَ بَعِيْدٍ فَقَالَ أَحَطْتُّ بِمَا لَمْ تُحِطْ بِهٖ وَجِئْتُكَ

نو ده درنګ تیر کړو | لږ شان | پس دے ووئیل | ما احاطه کړے ده | په هغه څه | چه احاطه نه ده کړے تا په هغے | او ما راوړے دے تا ته

نو لږ ساعت تیر نه وو چه هغه راغلو نو دائے ووئیل چه ما یوه داسے خبره معلومه کړے ده چه تاسو ته هم معلومه نه ده او ما درته د

مِنْ سَبَإٍ بِنَبَإٍ يَّقِيْنٍ ﴿٢٢﴾ اِنِّيْ وَجَدْتُّ امْرَاَةً تَمْلِكُهُمْ

دَ سبا نه | خبر | یقیني | بیشکه ما | بیا موند له | یوه ښځه | چه بادشاهي کوي په دوي

سبا (دَ قبیلې) نه یو یقیني خبر راوړے دے ، ما یوه ښځه وُلیده چه په هغوئ بانډې حکومت کوي

وَاُوْتِيَتْ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ وَّلَهَا عَرْشٌ عَظِيْمٌ ﴿٢٣﴾ وَجَدْتُّهَا وَقَوْمَهَا

او ورکړے شوے دے دې ته | هر یو څیز | او دې | تخت دے | ډیر لوئے | ما بیا موند له دا | او دَ دې قوم

او هغې ته هر قسم اسباب ورکړے شوے دے او دَ هغې (دَ ناستې) تخت ډیر لوئے دے . ما هغه او دَ هغې قوم وُلیدل چه

يَسْجُدُوْنَ لِلشَّمْسِ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطٰنُ

چه سجده کوي | نُور ته | سیوا دَ الله نه | او ښائسته کړی دی | دوی دَ پاره | شیطان

دَ الله تعالیٰ نه بغیر نُور ته سجدے کوی ، او شیطان دَ هغوئ دا عملونه دَ هغوئ په نظر کښے

اَعْمَالَهُمْ فَصَدَّهُمْ عَنِ السَّبِيْلِ فَهُمْ لَا يَهْتَدُوْنَ ﴿٢٤﴾ اَلَّا يَسْجُدُوْا

عملونه دَ دوی | پس هغه منع کړی دی دوی | دَ (حقې) لارے نه | پس دوی | لاره نهٔ مومی | چه دوی سجده نهٔ کوی

ښائسته ښکاره کړی دی ، نو دَ سمے لارے نه ئے منع کړی دی نو اوس په حقه لار نهٔ ځی ، هغه دا چه الله تعالیٰ ته

لِلّٰهِ الَّذِيْ يُخْرِجُ الْخَبْءَ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَيَعْلَمُ مَا تُخْفُوْنَ

هغه الله ته | کوم چه | ښکاره کوی | هر پټه خبره | دَ آسمانونو | او دَ زمکے | او پوهیږی | په هغه څه چه پټوئ تاسو

سجدے نهٔ کوی چه دَ آسمان او دَ زمکے پټ څیزونه بهر ته راوُباسی او څهٔ چه تاسو پټوئ او څهٔ چه

وَمَا تُعْلِنُوْنَ ﴿٢٥﴾ اَللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيْمِ ﴿٢٦﴾ السجدة

او په هغه څه چه ښکاره کوئ تاسو | الله | نشته دے هیڅ معبود | بے له دهٔ نه | چه رب دے | دَ عرش | لوئے

ښکاره کوئ په هغے ټولو خبر دے (وا ورئ!) هم الله تعالیٰ هغه ذات دے دَ کوم نه سیوا بل معبود نشته هم دے دَ عرش عظیم رب دے.

قَالَ سَنَنْظُرُ اَصَدَقْتَ اَمْ كُنْتَ مِنَ الْكٰذِبِيْنَ ﴿٢٧﴾ اِذْهَبْ

وُئے فرمائیل | ډیر زر به وُګورو | چه آیا رښتیا وویل تا | یا ته یئے | له دروغ ویونکو نه | ته لاړ شه

سلیمان ؑ وویل چه مونږ به دَ دے خبرے تحقیق کوو چه ته رښتیا ولے که دروغژن یئے . ته لاړ شه او زما دا

بِّكِتٰبِيْ هٰذَا فَاَلْقِهْ اِلَيْهِمْ ثُمَّ تَوَلَّ عَنْهُمْ فَانْظُرْ مَاذَا

زما دے خط سره | بیا وُغورزوه دا | دَ هغوئ طرف ته | بیا مخ راوګرځوه | له هغوئ نه | بیا وګوره | چه څهٔ

خط یوسه نو هغوئ ته ئے وُغورزوه بیا ترے نه یو اړخ ته شه نو ګوره چه هغوئ څهٔ جواب

يَرْجِعُوْنَ ﴿٢٨﴾ قَالَتْ يٰاَيُّهَا الْمَلَؤُا اِنِّيْٓ اُلْقِيَ اِلَيَّ كِتٰبٌ كَرِيْمٌ ﴿٢٩﴾

جواب درکوی هغوئ | وویل دے | اے ډلے دَ سردارانو ! | بیشکه راوُغورزولے شو | ما ته | یو خط | عزت والا

درکوی . (چه خط ورته ملاوُ شو نو ملکه سبا) وویل چه اے زما دلبارانو ! ما ته خو یو درونډ خط راغورزولے شوے دے

اِنَّهٗ مِنْ سُلَيْمٰنَ وَاِنَّهٗ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ﴿٣٠﴾

بیشکه دا | له طرفه دَ سلیمان ؑ نه دے | او بیشکه دا خط | شروع په نامه | دَ الله دے | چه بخښونکے | مهربان دے.

دا دَ سلیمان ؑ دَ طرف نه دے او دا ئے لیکلی دی چه بسم الله الرحمٰن الرحیم .

اَلَّا تَعْلُوْا عَلَيَّ وَاْتُوْنِيْ مُسْلِمِيْنَ ﴿٣١﴾ قَالَتْ يٰٓاَيُّهَا الْمَلَؤُا اَفْتُوْنِيْ

چه تاسو سرکشي مه کوئ | زما خلاف | او راشئ ماته | مسلمانان شوی | وے وئیل | اے دلباریانو! | ماته رائے راکړئ

تاسو زما په مقابله کښے سرکشي مه کوئ او تابع راته راحاضر شئ، هغے ووئیل چه اے زما دلباریانو! ماله په دے معامله

فِيْٓ اَمْرِيْ ۚ مَا كُنْتُ قَاطِعَةً اَمْرًا حَتّٰى تَشْهَدُوْنِ ﴿٣٢﴾ قَالُوْا

زما په دے کار کښے | نه یم زه | فیصله کوونکے | د هیڅ کار | تر دے چه | تاسو موجود یئ | دوی ووئیل

کښے رائے راکړئ، زه د هیڅ خبرے خلاصه فیصله تر هغے پورے نه کوم چه تاسو په کښے موجود نه یئ. هغوی ووئیل

نَحْنُ اُولُوْا قُوَّةٍ وَّاُولُوْا بَاْسٍ شَدِيْدٍ ۙ وَّالْاَمْرُ اِلَيْكِ فَانْظُرِيْ

موږ | ډیر طاقتور یُو | او خاوندان د جنګ یُو | سخت | او ټول اختیار | ستا دے | پس هم ته غور وکړه

چه موږ ډیر زور آور او توره ن خلق یُو، او ټول اختیار ستا دے نو ته په خپله وګوره چه

مَاذَا تَاْمُرِيْنَ ﴿٣٣﴾ قَالَتْ اِنَّ الْمُلُوْكَ اِذَا دَخَلُوْا قَرْيَةً اَفْسَدُوْهَا

د څه څیز | حکم ته فرمائے؟ | دے ووئیل | بیشکه بادشاهان | چه هر کله داخلیږی | یو کلی ته | نو خرابوی د هغه کلے

موږ ته څه حکم راکول غواړے؟ هغے ووئیل چه بادشاهان چه څه وخت یو کلی ته ورننوځي نو هغه تباه کوی

وَجَعَلُوْٓا اَعِزَّةَ اَهْلِهَآ اَذِلَّةً ۚ وَكَذٰلِكَ يَفْعَلُوْنَ ﴿٣٤﴾ وَاِنِّيْ مُرْسِلَةٌ

او کوی | د دے معتبر خلق | زیات رسوا | او هم دغه شان | دوی کوی | او بیشکه زه درلیږونکے یم

او د هغه ځائے په استوګنو کښے عزتمند خلق سپک کړی او دغه شان به هغوی هم کوی او زه ورته څه سوغات

اِلَيْهِمْ بِهَدِيَّةٍ فَنٰظِرَةٌ ۢبِمَ يَرْجِعُ الْمُرْسَلُوْنَ ﴿٣٥﴾ فَلَمَّا

طرف د هغوی ته | څه تحفه | بیا به ګورم | چه په څه څیز | بیرته را واپس کیږی | قاصدان | بیا هر کله چه

لیږم، نو ګورم چه زما سفیران څه (خبر) راوړی؟ نو څه وخت چه (د سبا

جَآءَ سُلَيْمٰنَ قَالَ اَتُمِدُّوْنَنِ بِمَالٍ ۡ فَمَآ اٰتٰىنِۦَ اللّٰهُ خَيْرٌ

راغے (قاصد) | سلیمان ته | نو دے فرمائیل | آیا تاسو زما مدد کوئ | په مال سره | پس څه چه | راکړی دی ماته | الله | ډیر بهتر دی

سفیر سلیمانؑ ته ورغے نو هغه ورته ووئیل چه آیا تاسو په مال باندې زما امداد کول غواړئ؟ وا اوریئ الله چه مال څه راکړی دی

مِّمَّآ اٰتٰىكُمْ ۚ بَلْ اَنْتُمْ بِهَدِيَّتِكُمْ تَفْرَحُوْنَ ﴿٣٦﴾ اِرْجِعْ

له هغه څه نه | چه هغه درکړی دی تاسو ته | بلکه تاسو | په خپله تحفه | خوشحالیږئ | واپس لاړ شه

هغه د هغے نه ډیر بهتر دی کوم چه هغه تاسو له درکړی دی بلکه هم تاسو په خپلو تحفو خوشحاله اوسئ، نه خپلو خلقو ته واپس

اِلَيْهِمْ فَلَنَاْتِيَنَّهُمْ بِجُنُوْدٍ لَّا قِبَلَ لَهُمْ بِهَا وَلَنُخْرِجَنَّهُمْ

هغوی ته | پس موږ به ضرور راولو په دوی | داسے لښکرے | چه طاقت به نه وی | د دوی | د هغے | او موږ به ضرور وباسو دوی له

لاړ شه، موږ به ور پسے داسے فوځونه درولیږو چه هغوی به د هیڅ مقابله ونه کړے شي او موږ به ئے د هغه ځائے نه

مِّنْهَآ اَذِلَّةً وَّهُمْ صٰغِرُوْنَ ﴿٣٧﴾ قَالَ يٰٓاَيُّهَا الْمَلَؤُا اَيُّكُمْ

له هغه ځائے نه | ذلیله شوی | او دوی به | سخت رسوا شي | (سلیمانؑ) ووئیل | اے سردارانو! | څوک له تاسو نه

په ذلت وباسو او هغوی به رسوا شي. (سلیمانؑ) وفرمائیل اے سردارانو! څوک به ماله د هغے

يَأْتِيْنِىْ بِعَرْشِهَا قَبْلَ اَنْ يَّاْتُوْنِىْ مُسْلِمِيْنَ ۝۳۸ قَالَ عِفْرِيْتٌ

به راؤړی ماته | تخت دَدے | وړاندِ دَدے نه چه | دوئ راشی ماته | مسلمانان شوی | ووئیل | یو دیو

(ملکے) تخت دَدِے نه وړاندِ راوُرسوی چه هغوئ راله تابع راشی ؟ یو مضبوط پیری (ورته) ووئیل

مِّنَ الْجِنِّ اَنَا اٰتِيْكَ بِهٖ قَبْلَ اَنْ تَقُوْمَ مِنْ مَّقَامِكَ ۚ وَاِنِّىْ

له پیریانو نه | زهٔ به راؤړم تاته | هغه | وړاندِ له دے نه | چه ته پاسے | له خپل ځائے نه | او بیشکه زهٔ

چه زهٔ به ئے درته دَدربار دَ برخاست کیدو نه وړاندِ راحاضر کړم ، او زهٔ دَدے

عَلَيْهِ لَقَوِىٌّ اَمِيْنٌ ۝۳۹ قَالَ الَّذِىْ عِنْدَهٗ عِلْمٌ مِّنَ الْكِتٰبِ اَنَا اٰتِيْكَ

په دے باندِ | ډیر طاقتور | امانتدار یم | ووئیل | هغه کس چه هغهٔ سره | علم وو | دَ کتاب | (چه) زهٔ به راؤړم تاته

کار طاقت لرم او امانتدار یم یو بل سړی چه دَ کتاب په علم پوهه وو ووئیل چه زهٔ ئے دَ

بِهٖ قَبْلَ اَنْ يَّرْتَدَّ اِلَيْكَ طَرْفُكَ ۚ فَلَمَّا رَاٰهُ مُسْتَقِرًّا عِنْدَهٗ

هغه | وړاندِ له دے نه | چه وُرپیرِی | ستا طرف ته | ستا سترګے | پس هرکله چه | وُئے لیدهٔ هغه | ایښودے شوے | خپل ځان سره

سترګو دَ رپولو نه وړاندِ راحاضرولے شم ۔ نو چه سلیمانؑ هغه تخت خپل ځان سره پروت ولیده

قَالَ هٰذَا مِنْ فَضْلِ رَبِّىْ ۖ لِيَبْلُوَنِىْٓ ءَاَشْكُرُ اَمْ اَكْفُرُ ۗ

نو ووئیل دهٔ | دا دے | فضل | زما دَ رب | چه امتحان وکړی په ما | چه آیا شکر کوم زهٔ | یا ناشکری کوم

نو وُئے ووئیل چه دا زما دَ رب دَ فضل نتیجه ده چه وُم آزمائی چه زهٔ شکر کوم که ناشکری کوم ۔

وَمَنْ شَكَرَ فَاِنَّمَا يَشْكُرُ لِنَفْسِهٖ ۚ وَمَنْ كَفَرَ فَاِنَّ رَبِّىْ غَنِىٌّ

او څوک چه شکر کوی | پس بیشکه چه شکر کوی | خپل ځان دَپاره | او څوک چه ناشکری وکړی | نو بیشکه | زما رب | ډیر بے نیازه

او څوک چه شکر کوی نو دَ خپل ځان کپاره له شکر کوی او څوک چه ناشکری کوی نو زما رب غنی دے

كَرِيْمٌ ۝۴۰ قَالَ نَكِّرُوْا لَهَا عَرْشَهَا نَنْظُرْ اَتَهْتَدِىْٓ اَمْ تَكُوْنُ

کریم دے | وُئے فرمائیل | شکل بدل کړئ | دِے دَپاره | دَ دے دَ تخت | چه وګورو مونږ | آیا دا لاره بیا مومی | یا کیږی دا

کریم دے ، سلیمانؑ ووئیل چه دَ دِے دَ تخت شکل بدل کړئ چه وګورو چه هغه ئے پیژندے شی که په هغه (نا پوهه)

مِنَ الَّذِيْنَ لَا يَهْتَدُوْنَ ۝۴۱ فَلَمَّا جَآءَتْ قِيْلَ اَهٰكَذَا

دَ هغو خلقو نه چه | لاره نهٔ بیا مومی | پس هرکله چه | دا راغله | نو ووئیلے شو | آیا دغه شان دے

خلقو کښے ده چه څیز پیژندلے نهٔ شی ۔ نو څهٔ وخت چه هغه (ملکه) راوُرسیده نو ورته ووئیلے شو چه آیا ستا تخت

عَرْشُكِ ۗ قَالَتْ كَاَنَّهٗ هُوَ ۚ وَاُوْتِيْنَا الْعِلْمَ مِنْ قَبْلِهَا وَكُنَّا

تخت ستا | دے ووئیل | لکه چه دا هم هغه وی | او مونږ ته راکړے شوے دے | علم | وړاندِ له دے نه | او مونږ یو

دَ دِے په شان دے هغے ووئیل ، لکه چه دا هم هغه وی او له دے نه وړاندِ مونږ ته (ستا دَ صداقت) علم شوے وو او ستا تابع

مُسْلِمِيْنَ ۝۴۲ وَصَدَّهَا مَا كَانَتْ تَّعْبُدُ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ۗ اِنَّهَا كَانَتْ

مسلمانان | او منع کړے وه دا | هغه څیز | دَ کوم چه دِے عبادت کولو | سیوا | دَ الله نه | بیشکه دا | وه

شوی یو ۔ او هغه بتځه دَ الله نه سیوا دَ نورو معبودانو عبادت دَ اسلام نه منع کړے وه ، هغه دَ یو کافر قوم

مِنْ قَوْمٍ كٰفِرِيْنَ ﴿٤٣﴾ قِيْلَ لَهَا ادْخُلِي الصَّرْحَ فَلَمَّا رَاَتْهُ حَسِبَتْهُ

له قوم | دَ کافرانو نه | دِے نه وو ټیلے شو | چه داخله شه | په دے محل کښې | پس کله چه | دِے وکتل محل ته | نو گمان وکړو دے په هغے

دے نه وو ټیلے شو چه دِے محل ته داخله شه، څه وخت چه دِے (فرش) ته وکتل نو هغه ئے ګمان وکړو چه دا

لُجَّةً وَّكَشَفَتْ عَنْ سَاقَيْهَا قَالَ اِنَّهٗ صَرْحٌ مُّمَرَّدٌ مِّنْ قَوَارِيْرَ

ژوره اوبه | او څرګندے کړے | خپلے دواړه پنډۍ | ووئیل سلیمانؑ | بیشکه دا یو محل دے | ښویں ونکے | جوړ شوے دَ شیشو نه

ژورے اوبه دی نو کړے ئے پائڅے لږ اوچتے کړے) او خپلے پنډۍ ئے څرګندے کړے، سلیمانؑ ووئیل چه دا خو یو محل دے چه دَ شیشو نه جوړ کړے شو

قَالَتْ رَبِّ اِنِّيْ ظَلَمْتُ نَفْسِيْ وَاَسْلَمْتُ مَعَ سُلَيْمٰنَ لِلّٰهِ

ووئیل (ملکے) | اے زما ربه! | بیشکه ما | ظلم وکړو | په خپل ځان | او اسلام مِ راوړو | دَ سلیمان سره | دَ پاره دَ الله

دے، هغے ووئیل چه اے زما ربه! ما تر اوسه په ځان ظلم کړے دے او ما هم دَ سلیمانؑ سره په الله رب العلمین باندِ

٣ ع ١٣ ١٨

رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿٤٤﴾ وَلَقَدْ اَرْسَلْنَآ اِلٰى ثَمُوْدَ اَخَاهُمْ صٰلِحًا اَنِ اعْبُدُوا

چه رب دے | دَ ټول جهان | او بیشکه | موږ لیږلے وو | (قوم دَ) ثمود طرف ته | دَ دوی ورور | صالحؑ | چه تاسو عبادت کوئ

ایمان راوړو ۔ او موږ ثمود نوم قوم ته دَ هغوئ (قومی) ورور صالحؑ لیږلے وو چه تاسو دَ الله عبادت

اللّٰهَ فَاِذَا هُمْ فَرِيْقٰنِ يَخْتَصِمُوْنَ ﴿٤٥﴾ قَالَ يٰقَوْمِ لِمَ تَسْتَعْجِلُوْنَ

دَ الله | پس ناګهانه | دوی دوه ډلے (شوے) | چه یو بل سره ئے جګړه کوله | ده ووئیل | اے زما قومه! | ولے تلوارے کوئ تاسو

کوئ، نو هغوئ دوه ډلے شول چه په خپل مینځ کښے جګړے کولے (صالحؑ) ووئیل اے زما قومه! تاسو ولے دَ نیکئ نه

بِالسَّيِّئَةِ قَبْلَ الْحَسَنَةِ لَوْلَا تَسْتَغْفِرُوْنَ اللّٰهَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ ﴿٤٦﴾

دَ بدئ دَ پاره | وړاندِ له نیکئ نه | ولے بخښنه نه غواړئ | دَ الله نه | چه په تاسو | رحم وکړے شی ۔

نه وړاندِ په عذاب راوستو باندِ تلوار کوئ؟ تاسو دَ الله تعالیٰ نه معافی ولے نه غواړئ؟ چه الله تعالیٰ در باندِ رحم وکړی

قَالُوا اطَّيَّرْنَا بِكَ وَبِمَنْ مَّعَكَ قَالَ طٰٓئِرُكُمْ عِنْدَ اللّٰهِ بَلْ اَنْتُمْ

دوی ووئیل | موږ سپیره وګڼړلے | ته | او هغه خوک چه | تا سره دی | ده ووئیل | ستا سو سپیره توب | الله سره دے | بلکه تاسو

هغوئ جواب ورکړو چه موږ نه ته او ستا ملګری سپیره ښکاری، صالحؑ ووئیل ستاسو سپیره توب دَ الله دَ طرف نه دے بلکه تاسو

قَوْمٌ تُفْتَنُوْنَ ﴿٤٧﴾ وَكَانَ فِي الْمَدِيْنَةِ تِسْعَةُ رَهْطٍ يُّفْسِدُوْنَ

داسے قوم یئ | چه آزمیښت در باندِ کولے شی | او وُو | په دِے ښار کښې | نهه٩ سړی | چه فساد به ئے کولو

هغه خلق یئ چه په آزمیښت کښې اخته شوی یئ ۔ او په دِے ښار کښې نهه٩ سړی وُو چه په ملک کښې ئے فساد

فِي الْاَرْضِ وَلَا يُصْلِحُوْنَ ﴿٤٨﴾ قَالُوْا تَقَاسَمُوْا بِاللّٰهِ لَنُبَيِّتَنَّهٗ

په زمکه کښې | او اصلاح به ئے نه کوله | دوی ووئیل | تاسو یو بل ته قسمونه وخورئ | په الله | چه موږ به دَ شپے حمله وکړو په ده

خورولو او سمون به ئے نه راوستلو، هغوئ ووئیل چه په خپل مینځ کښې په الله قسمونه وخورئ چه شپه په شپه به

وَاَهْلَهٗ ثُمَّ لَنَقُوْلَنَّ لِوَلِيِّهٖ مَا شَهِدْنَا مَهْلِكَ اَهْلِهٖ

او دَ ده دَ کور په خلقو | بیا به خامخا موږ ووایو | دَ ده وارث ته | چه موږ موجود نه وو | په وخت دَ وژلو | دَ ده دَ خاندان

صالحؑ او دَ هغهٔ بال بچ مړهٔ کړو تو بیا به دَ هغهٔ وارث ته ووایو چه موږ دَ هغهٔ دَ بال بچ دَ وژلو په وخت کښې موجود نه وو

وَإِنَّا لَصٰدِقُوْنَ ﴿٤٩﴾ وَمَكَرُوْا مَكْرًا وَّمَكَرْنَا مَكْرًا وَّهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ ﴿٥٠﴾

او بیشکه مونږ | رښتيني يُو | او دوئ يو پټ تدبير وکړو | او مونږ هم يو پټ تدبير وکړو | او دوئ | نه پوهيدل

او بيشکه مونږ رښتيا وايُو. او ثمود يانو يو پټ تدبير وکړو او مونږ هم يو پټ تدبير وکړو چه هغوئ پرے نه پوهيدل

فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ مَكْرِهِمْ ۙ اَنَّا دَمَّرْنٰهُمْ وَقَوْمَهُمْ اَجْمَعِيْنَ ﴿٥١﴾

پس وګوره | چه څنګه | وو | انجام | دَ دوئ دَ فريب | چه مونږ هلاک کړل دوئ | او قوم دَ دوئ | ټول

نو وګوره چه دَ دغے خلقو دَ فريب انجام څهٔ شو؟ چه مونږ هغوئ هم او دَ هغوئ ټول قوم هم تباه کړو

فَتِلْكَ بُيُوْتُهُمْ خَاوِيَةًۢ بِمَا ظَلَمُوْا ؕ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ ﴿٥٢﴾

پس دا | دَ دوئ کورونه دي | غورزيدلي | په وجه دَ دوئ دَ ظلم | بيشکه | په دے کښے | نخښه ده | هغو خلقو دَ پاره | چه پوهيږي

نو (اوس) دغه ئے کورونه دي چه دَ دوئ دَ کفر په وجه وران ويجاړ پراته دي. بيشکه په دے کښے پوهه خلقو دَ پاره نښان دَ عبرت دے

وَاَنْجَيْنَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَكَانُوْا يَتَّقُوْنَ ﴿٥٣﴾ وَلُوْطًا اِذْ قَالَ لِقَوْمِهٖ

او مونږ نجات ورکړو | هغو خلقو ته | چه ايمان ئے راوړو | او پرهيزګاري ئے کوله | او لوط | هر کله چه دهٔ ووئيل | خپل قوم ته

او څوک چه ايماندارا او پرهيزګارو وو هغوئ مو خلاص کړل. او مونږ لوط ليږلے وو څهٔ وخت چه هغهٔ خپل قوم ته ووئيل

اَتَاْتُوْنَ الْفَاحِشَةَ وَاَنْتُمْ تُبْصِرُوْنَ ﴿٥٤﴾ اَئِنَّكُمْ لَتَاْتُوْنَ الرِّجَالَ شَهْوَةً

ايا تاسو کوئ | کار دَ بے حيايئ | او تاسو | وينئ | ايا تاسو | راځئ | سړو ته | په اراده دَ شهوت

چه دا تاسو څهٔ دَ بے حيايئ کار کوئ سره دَ دے چه وينئ ګورئ. ايا تاسو سړو سره خپل شهوت سړوئ

مِّنْ دُوْنِ النِّسَآءِ ؕ بَلْ اَنْتُمْ قَوْمٌ تَجْهَلُوْنَ ﴿٥٥﴾ فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهٖٓ

بغير | دَ ښځونه | بلکه | تاسو | قوم يئ | ډير جاهل | پس نهٔ وو | جواب | دَ دهٔ دَ قوم

چه ښځے مو پريښودي دي حقيقت دا دے چه تاسو ډير جاهل قوم يئ. نو دَ هغے قوم نه بل هيڅ جواب جوړ نهٔ شو

اِلَّآ اَنْ قَالُوْٓا اَخْرِجُوْٓا اٰلَ لُوْطٍ مِّنْ قَرْيَتِكُمْ ۚ اِنَّهُمْ اُنَاسٌ يَّتَطَهَّرُوْنَ ﴿٥٦﴾

مګر دا چه | دوی ووئيل | چه وُباسئ | ال دَ لوط | له خپل کلی نه | بيشکه دوی | دا سے خلق دي | چه پاکي خوښوي

خو دائے ووئيل چه دَ لوط خپلوان دَ خپل کلی نه بهر وُباسئ دوی خپل ځانونه پاک پاکيزه ښکاره کوي.

فَاَنْجَيْنٰهُ وَاَهْلَهٗٓ اِلَّا امْرَاَتَهٗ ۫ قَدَّرْنٰهَا مِنَ الْغٰبِرِيْنَ ﴿٥٧﴾ وَاَمْطَرْنَا

پس مونږ نجات ورکړو دهٔ ته | او دَ دهٔ اهل ته | سيوا | دَ دهٔ دَ ښځے نه | مونږ مقرر کړے وه دا | له وروستو پاتے کيدونکو نه | او وُ ورولو مونږ

نو مونږ هغه هم او دَ هغهٔ خپلوان هم بچ کړل سيوا دَ دهٔ دَ ښځے نه دَ کومے په حقله چه مونږ مقرر کړے وُه چه وروستو پاتے کيدونکو نه

عَلَيْهِمْ مَّطَرًا ۚ فَسَآءَ مَطَرُ الْمُنْذَرِيْنَ ﴿٥٨﴾ قُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ

په دوی باندِ | يو باران | پس بد دے | باران | دَ ويرولو شوو | ووايه | ټول تعريفونه | الله لره دي

به وی او په هغوئ مو يو بل قسم باران را وُورولو څومره خراب باران وو دَ ويرولے شوو خلقو په حقله. ووايه! ټول تعريفونه الله لره دي

وَسَلٰمٌ عَلٰى عِبَادِهِ الَّذِيْنَ اصْطَفٰى ؕ آٰللّٰهُ خَيْرٌ اَمَّا يُشْرِكُوْنَ ﴿٥٩﴾

او سلام دے | دَ دهٔ په بندګانو | کوم چه | دهٔ غوره کړل | آيا الله | غوره دے | يا کوم چه دوی شريک مقرر وي

او دَ هغهٔ په چونړ کړو بندګانو دِ سلام دی، آيا الله تعالیٰ غوره دے که هغه څيزونه چه دوئ ئے ورسره دَ ځان نه شريکوي؟

١٩ ع

اَمَّنْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَاَنْزَلَ لَكُمْ مِّنَ السَّمَآءِ
آیا چا پیدا کړل | آسمانونه | او زمکه | او را نښکته ئې کړے | تاسو د پاره | له آسمان نه
که هغه ذات چه آسمانونه او زمکه ئې پیدا کړي دي؟ او چا له آسمان نه تاسو د پاره باران
مَآءً ۚ فَاَنْۢبَتْنَا بِهٖ حَدَآئِقَ ذَاتَ بَهْجَةٍ ۚ مَا كَانَ لَكُمْ
اوبه | پس وٗتوکول مونږ | په دے سره | باغونه | ښائسته | نه وو (ممکن) | تاسو د پاره
ورولو، نو بیا مونږ د هغے (اوبو) په ذریعه ښائسته ښائسته باغونه راټوکولي دي، دا ستاسو د وس خبره
اَنْ تُنْۢبِتُوْا شَجَرَهَا ؕ ءَاِلٰهٌ مَّعَ اللّٰهِ ؕ بَلْ هُمْ قَوْمٌ
چه راټوکولے تاسو | اُونے د هغے | ایا بل څوک معبود شته | الله سره؟ | (نا) بلکه | دوی | یو ډله ده
نه ده چه د هغے باغونو اُونے مو راټوکولے ایا د الله سره څوک بل معبود هم شته؟ (نا) بلکه دا هغه خلق دي چه (په شرک
يَّعْدِلُوْنَ ۝٦٠ اَمَّنْ جَعَلَ الْاَرْضَ قَرَارًا وَّجَعَلَ خِلٰلَهَآ
چه کاږه روان دي | آیا چا | جوړه کړله | زمکه | ځائے د قرارۍ | او جوړے کړل | په مینځ د دے کښے
کولو) د لارے نه لرے شوي دي بلکه هغه ذات چه زمکه ئې د قرارۍ ځائے کړو او په دے کښے د ننه ئې نهرونه
اَنْهٰرًا وَّجَعَلَ لَهَا رَوَاسِيَ وَجَعَلَ بَيْنَ الْبَحْرَيْنِ حَاجِزًا ؕ
نهرونه | او پیدا ئې کړل | په دے کښے | غرونه | او پیدا ئې کړله | په مینځ د دوو دریابونو کښے | پرده
جاري کړل او دے د پاره ئې غرونه جوړ کړل او د دوؤ دریابونو تر مینځه ئې دیوال ودرولو، آیا
ءَاِلٰهٌ مَّعَ اللّٰهِ ؕ بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ۝٦١ اَمَّنْ
آیا بل معبود شته | د الله سره؟ | بلکه | اکثر په دوی کښے | نه پوهیږي۔ | آیا څوک دے
د الله سره بل څوک معبود شریک شته؟ بالکل نشته خو په دوی کښے اکثر خلق نه پوهیږي۔ که هغه ذات
يُّجِيْبُ الْمُضْطَرَّ اِذَا دَعَاهُ وَيَكْشِفُ السُّوْٓءَ وَيَجْعَلُكُمْ
چه جواب ورکوي | نا قلاره ته | هر کله چه د هٗ وبلي هغه | او لرے کوي | تکلیف | او جوړوي تاسو
چه د نا قلاره بنده دُعا اوري هر کله چه هغه ورته بلنه کوي او مصیبت تري نه لرے کوي او تاسو ئې په زمکه
خُلَفَآءَ الْاَرْضِ ؕ ءَاِلٰهٌ مَّعَ اللّٰهِ ؕ قَلِيْلًا مَّا تَذَكَّرُوْنَ ۝٦٢
نائبان | (په) زمکه (کښے) | آیا بل معبود شته | د الله سره | ډیر لږ | تاسو نصیحت حاصلوئ
باندِ اختیارمند کړي یئ، آیا د الله سره بل څوک معبود شریک شته (نشته) خو تاسو ډیر کم نصیحت قبلوئ۔
اَمَّنْ يَّهْدِيْكُمْ فِيْ ظُلُمٰتِ الْبَرِّ وَالْبَحْرِ وَمَنْ يُّرْسِلُ
ایا څوک دے | چه لاره ښائي تاسو ته | په تیارو کښے | د بیابانو | او د دریاب | او څوک | رالیږي
که هغه ذات چه تاسو ته د اُوچے او د سمندر په تورو تیارو کښے لارے ښائي، او هغه ذات چه د خپل
الرِّيٰحَ بُشْرًاۢ بَيْنَ يَدَيْ رَحْمَتِهٖ ؕ ءَاِلٰهٌ مَّعَ اللّٰهِ ؕ
هواګانے | زیرے ورکوونکي | وړاندِ | له رحمت (باران) خپل نه | ایا بل معبود شته | د الله سره؟
(باران د) رحمت نه وړاندِ زیرے ورکوونکي بادونه رالیږي۔ ایا د الله سره بل څوک معبود هم شته؟

تَعٰلَى اللّٰهُ عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ﴿٦٣﴾ اَمَّنْ يَّبْدَؤُا الْخَلْقَ

ډېر لوړ دے | الله | له هغه څه نه | چه دوی ئے شریک نیسی | ایا څوک دے | چه په اول ځل پیدا کوی | مخلوق

الله تعالیٰ د دوئ د جوړ وکړو شریکانو نه ډیر اوچت دے. بلکه هغه ذات چه مخلوقات ئے په اول ځل پیدا کړل

ثُمَّ يُعِيْدُهٗ وَمَنْ يَّرْزُقُكُمْ مِّنَ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ

بیا به | دوباره پیدا کوی هغه | او څوک | رزق درکوی تاسو ته | له آسمان | او د زمکے نه

او بیا به ئے سر دوباره پیدا کوی او که هغه ذات چه تاسو له د آسمان نه او د زمکے نه روزی درکوی.

ءَاِلٰهٌ مَّعَ اللّٰهِ قُلْ هَاتُوْا بُرْهَانَكُمْ اِنْ كُنْتُمْ

آیا بل معبود شته | د الله سره | ووایه | راوړئ | خپل دلیل | که چرے یئ تاسو

آیا الله تعالیٰ سره څوک بل معبود هم شته؟ (اے نبی!) ته ورته ووایه چه خپل دلیل راوړاندې کړئ که تاسو

صٰدِقِيْنَ ﴿٦٤﴾ قُلْ لَّا يَعْلَمُ مَنْ فِى السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ

رښتینی | ووایه | نه پوهیږی | هغه څوک چه | په آسمانونو | او زمکه کښے دی

رښتینی یئ. ورته ووایه چه په آسمانونو کښے او د زمکے په مخ بغیر د الله تعالیٰ نه بل هیڅوک په غیبو

الْغَيْبَ اِلَّا اللّٰهُ ۭ وَمَا يَشْعُرُوْنَ اَيَّانَ يُبْعَثُوْنَ ﴿٦٥﴾ بَلِ

په غیبو | سیوا | د الله نه | او نه پوهیږی | چه کله به | دوی راپاڅولے شی | بلکه

نه پوهیږی، او دوئ خو دومره هم خبر نه دی چه کله به (سر دوباره) راژوندی کیږی. بلکه

ادّٰرَكَ عِلْمُهُمْ فِى الْاٰخِرَةِ ۣ بَلْ هُمْ فِىْ شَكٍّ مِّنْهَا ۣ

ختم شوے دے | علم د دوی | د آخرت په حقله | بلکه | دوی | په شک کښے دی | له دے نه

د آخرت په حقله خو د دوئ خپل علم هیڅ نه دے. بلکه د اخلق خو په خپله د آخرت په حقله هم په شک کښے پراته

بَلْ هُمْ مِّنْهَا عَمُوْنَ ﴿٦٦﴾ وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا ءَاِذَا كُنَّا ع ٥ ٤

بلکه | دوی | له دے نه | ړانده دی | او وائی | هغه خلق چه | کافران دی | آیا هر کله چه شو موږ

دی، نا. بلکه دوئ د هغے د طرف نه ځانونه ړانده کړی دی. او دا کافران وائی چه آیا هر کله موږ او زموږ مشران

تُرٰبًا وَّاٰبَآؤُنَآ اَئِنَّا لَمُخْرَجُوْنَ ﴿٦٧﴾ لَقَدْ وُعِدْنَا هٰذَا

خاورے | او زموږ پلاران (هم) | (نو) آیا موږ به | بهر نه راوویستلے شو؟ | بیشکه | وعده شوے ده | د دے

خاورے شو نو آیا موږ به دوباره ژوندی کولے شو؟ دا وعده خو د وړاندې هم موږ سره

نَحْنُ وَاٰبَآؤُنَا مِنْ قَبْلُ ۙ اِنْ هٰذَآ اِلَّآ اَسَاطِيْرُ

موږ سره | او زموږ پلار نیکه سره | له دے نه وړاندې | نه دی | دا | مکر | قیصئ

او زموږ پلار نیکه سره شوی دی، دا هسے د پخوانو خلقو (جوړے کړے) قیصئ

الْاَوَّلِيْنَ ﴿٦٨﴾ قُلْ سِيْرُوْا فِى الْاَرْضِ فَانْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ

د پخوانو خلقو | ووایه | وګرځئ | په زمکه کښے | بیا وګورئ | څنګه | شو

دی. ورته ووایه چه په زمکه کښے وګرځئ او وګورئ چه د مجرمانو

عَاقِبَةُ الْمُجْرِمِينَ ﴿٦٩﴾ وَلَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ وَلَا تَكُنْ فِي ضَيْقٍ

انجام | دَگناهگارو | او ته غم مهٔ کوه | په دوی باندِ | او مهٔ کیږه ته | زړهٔ تنګے

انجام څهٔ شو ؟ او ته دَ دوئ په حال غم مهٔ کوه ، او دَ دوئ په فریبونو خپل

مِّمَّا يَمْكُرُونَ ﴿٧٠﴾ وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا الْوَعْدُ إِن كُنتُمْ

په هغه څه چه دوی ئے فریب کوی | او دوی وائی | کله به وی | دا | وعده | که چرے یئ تاسو

زړهٔ مهٔ تنګوه ، او دوی وائی چه دا وعده به کله پوره کیږی که چرے تاسو

صَادِقِينَ ﴿٧١﴾ قُلْ عَسَىٰ أَن يَكُونَ رَدِفَ لَكُم بَعْضُ الَّذِي

رښتینی | ووایه | شاید | چه شوے وی | نزدے تاسو ته | ځنے | هغه څهٔ چه

رښتینی یئ ؟ اے پیغمبره ! ته ورته ووایه چه کیدے شی چه تاسو کوم عذاب دومره په تلوار غواړئ دَ هغے

تَسْتَعْجِلُونَ ﴿٧٢﴾ وَإِنَّ رَبَّكَ لَذُو فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ وَلَٰكِنَّ

په تلوار ئی غواړئ تاسو | او بیشکه | ستارب | لوئے فضل والا دے | په خلقو باندِ | او لیکن

یو سر به تاسو باند لګیدلے وی ۔ او بیشکه ستا رب په خلقو ډیر مهربان دے خو اکثر

أَكْثَرَهُمْ لَا يَشْكُرُونَ ﴿٧٣﴾ وَإِنَّ رَبَّكَ لَيَعْلَمُ مَا تُكِنُّ

اکثر په دوی کښے | شکر نهٔ کوی | او بیشکه | ستارب | ښهٔ پوهیږی | څهٔ چه پټوی

خلق شکر نهٔ کوی ۔ او بیشکه ستارب ته هر څهٔ معلوم دی څه چه دوئ په

صُدُورُهُمْ وَمَا يُعْلِنُونَ ﴿٧٤﴾ وَمَا مِنْ غَائِبَةٍ فِي السَّمَاءِ

دَدوی سینے | او څهٔ چه | دوی ښکاره کوی | او نهٔ دے | هیڅ غائب | په آسمان کښے

زړونو کښے پټوی او څهٔ کاروونه چه په ښکاره کوی ۔ او په آسمان کښے یا په زمکه کښے داسے هیڅ څیز

وَالْأَرْضِ إِلَّا فِي كِتَابٍ مُّبِينٍ ﴿٧٥﴾ إِنَّ هَٰذَا الْقُرْآنَ يَقُصُّ

او زمکه (کښے) | مګر | هغه دے په کتاب | واضحه کښے | بیشکه | دا | قرآن | بیانوی

پټ نشته چه هغه په واضح کتاب (لوح محفوظ) کښے درج نهٔ وی ۔ بیشکه چه دا قرآن بنی اسرائیلو ته هغه

عَلَىٰ بَنِي إِسْرَائِيلَ أَكْثَرَ الَّذِي هُمْ فِيهِ يَخْتَلِفُونَ ﴿٧٦﴾ وَإِنَّهُ

په بنی اسرائیلو باندِ | اکثر هغه خبرے چه | دوی په هغے کښے | اختلاف کوی | او بیشکه دا

اکثرے خبرے څرګندوی چه دوی په کښے (تر اوسه) اختلافونه کوی ، او دا کتاب دَ

لَهُدًى وَرَحْمَةٌ لِّلْمُؤْمِنِينَ ﴿٧٧﴾ إِنَّ رَبَّكَ يَقْضِي بَيْنَهُم

هدایت | او رحمت دے | دَ مؤمنانو دَ پاره | بیشکه | ستارب به | فیصله وکړی | دَ دوی ترمینځه

ایماندارو په حقله دَ هدایت ذریعه او عین رحمت دے ۔ بیشکه چه ستارب به دَ دوئ ترمینځهٔ په خپل حکم

بِحُكْمِهِ ۚ وَهُوَ الْعَزِيزُ الْعَلِيمُ ﴿٧٨﴾ فَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ ۖ

په خپل حکم سره | او دے | زبردست دے | پوهه دے | پس توکل کوه | په الله

فیصله وکړی او هغه دَ قدرتونو خاوند دے په هر څهٔ پوهه دے ۔ نو ته په الله تعالیٰ باندِ باور سانه

اِنَّكَ عَلَى الْحَقِّ الْمُبِيْنِ ﴿۷۹﴾ اِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتٰى وَلَا تُسْمِعُ
بیشکہ تهٔ یې | په حق (دین) | واضحه | بیشکه تهٔ | نهٔ شې آؤرولے | مړو ته | او نهٔ شې آؤرولے
بیشکه تهٔ جاری باری په حقه روان یې ۔ بیشکه تهٔ مړو ته خپلے خبرے نهٔ شې آؤرولے ، او نهٔ کڼو ته
الصُّمَّ الدُّعَآءَ اِذَا وَلَّوْا مُدْبِرِيْنَ ﴿۸۰﴾ وَمَآ اَنْتَ بِهٰدِى الْعُمْىِ
کڼو ته | آواز د بلنے | هر کله چه | دوی مخ ګرځوی | شا کوونکی | او نهٔ یې تهٔ لاره ښودونکے | ړندو ته
خپل آواز آؤرولے شے څهٔ وخت چه هغوئ شاګړی او روان شی ۔ او نهٔ ړندو ته چه په ګمراهئ کښے پراته
عَنْ ضَلٰلَتِهِمْ ؕ اِنْ تُسْمِعُ اِلَّا مَنْ يُّؤْمِنُ بِاٰيٰتِنَا فَهُمْ
د دوئ د ګمراهئ نه | نهٔ شې آؤرولے ته | مګر | هغه چا ته چه ایمان لری | زمونږ په آیتونو | پس هم دوی
وی لاره ښودلے نهٔ شے . نهٔ خو صرف هغو خلقو ته آؤرولے شے چه زمونږ په آیتونو ایمان راوړی او هغه
مُّسْلِمُوْنَ ﴿۸۱﴾ وَاِذَا وَقَعَ الْقَوْلُ عَلَيْهِمْ اَخْرَجْنَا لَهُمْ
فرمانبرداردی | او هر کله چه | پوره شی | وعده (د عذاب) | په دوی | (نو) مونږ به راوباسو | دوی د پاره
فرمانبرداردی ، او هر کله چه (د الله تعالیٰ) وعده د دوی په حق کښے پوره شی نو مونږ به ورله د زمکے
دَآبَّةً مِّنَ الْاَرْضِ تُكَلِّمُهُمْ ۙ اَنَّ النَّاسَ كَانُوْا بِاٰيٰتِنَا
یو ځناور | له زمکے نه | چه خبرے به کوی دوی سره | چه | خلقو به | زمونږ په آیتونو
نه یو ځناور راوباسو چه خبرے به ورسره کوی ، چه دے خلقو زمونږ په آیتونو یقین
لَا يُوْقِنُوْنَ ﴿۸۲﴾ ع وَيَوْمَ نَحْشُرُ مِنْ كُلِّ اُمَّةٍ فَوْجًا مِّمَّنْ
یقین نهٔ لرو | او په کومه ورځ | چه مونږ جمع کړو | له هر یو اُمت نه | یوه ډله | د هغو خلقو چه
نهٔ لرلو ۔ او په کومه ورځ چه مونږ د هر یو اُمت نه د هغے خلقو یوه ټولے راغونډه کړو چه زمونږ آیتونو
يُّكَذِّبُ بِاٰيٰتِنَا فَهُمْ يُوْزَعُوْنَ ﴿۸۳﴾ حَتّٰٓى اِذَا جَآءُوْ
دروغ به ئے ګڼړل | زمونږ آیتونه | بیا دوی به | تقسیم کړے شی (په ډلو کښے) | نزدے چه | هر کله دوی راشی
ئے دروغ ګڼړل نو هغوئ به په ډلو کښے تقسیم کړے شی . نزدے چه هر کله هغوئ راشی
قَالَ اَكَذَّبْتُمْ بِاٰيٰتِىْ وَلَمْ تُحِيْطُوْا بِهَا عِلْمًا اَمَّاذَا
نو به وُ فرمائی (الله) | آیا دروغ ګڼړلی وُو تاسو | زما آیتونه | او احاطه نهٔ وه کړے تاسو | په هغے | په علم سره | یا نور څهٔ
نو الله به وُ فرمائی چه آیا تاسو زما آیتونه دروغ ګڼړل ؟ حال دا چه تاسو پرے څان پوهه کړے قدرله هم نهٔ وو ، یا دا
كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿۸۴﴾ وَوَقَعَ الْقَوْلُ عَلَيْهِمْ بِمَا ظَلَمُوْا
به تاسو کول ۔ | او واقع شو | حکم (د عذاب) | په دوی باندے | ځکه چه | دوی ظلم وُ کړه
نهٔ علاوه) نور مو څهٔ څهٔ (خراب) کارونه کول ۔ او د هغوئ د ظلم په وجه د هغوئ په حق کښے به د عذاب وعده پوره
فَهُمْ لَا يَنْطِقُوْنَ ﴿۸۵﴾ اَلَمْ يَرَوْا اَنَّا جَعَلْنَا الَّيْلَ لِيَسْكُنُوْا
پس دوی به | خبرے نهٔ کوی | آیا دوی نهٔ دی کتلی | چه مونږ | جوړه کړه | شپه | چه دوی آرام وکړی
شی او هغوئ به خبره هم نهٔ شی کولے آیا دوی وُ نهٔ لیدل چه مونږ شپه جوړه کړه چه دوئ په کښے آرام

فِيْهِ وَالنَّهَارَ مُبْصِرًا ۭ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ﴿٨٦﴾

په هغې کښې | او ورځ | روښانه شوې | بيشکه | په دې کښې | نخښې دي | هغه قوم دپاره | چه ايمان لري

ګرې او ورځ مو روښانه جوړه کړې ده، بيشکه په دې کښې هغو خلقو دپاره نخښې دي — چه ايمان راوړي

وَيَوْمَ يُنْفَخُ فِي الصُّوْرِ فَفَزِعَ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ

او په کومه ورځ | چه پوک وهلې شي | په شپيلئ کښې | نو وبه ويريږي | هغه څوک چه | په آسمانونو کښې دي

او په کومه ورځ چه شپيلئ پوک وهلې شي، نو څوک چه په آسمانونو او په زمکه کښې موجود دي

وَمَنْ فِي الْاَرْضِ اِلَّا مَنْ شَاۗءَ اللّٰهُ ۭ وَكُلٌّ اَتَوْهُ

او هغه څوک چه | په زمکه کښې دي | سيوا د هغه چانه چه | وغواړي الله | او | ټول به | د ده په مخکښې راځي

هغه ټول به وويريږي خو څوک چه الله وغواړي — او ټول به ورته (د فکرونه) زولن

دٰخِرِيْنَ ﴿٨٧﴾ وَتَرَى الْجِبَالَ تَحْسَبُهَا جَامِدَةً وَّهِىَ تَمُرُّ

عاجزه شوي | او ته به وګورې | غرونه | چه ګمان کوې ته په هغې باندې | په ځائے ولاړ | او هغه به | روان وي

راروان وي. او ته چه دې غرونو ته ګورې نو دا خيال به کوې چه پاخه په ځائے ولاړ دي حال دا چه دا

مَرَّ السَّحَابِ ۭ صُنْعَ اللّٰهِ الَّذِيْٓ اَتْقَنَ كُلَّ شَيْءٍ ۭ اِنَّهٗ

په شان د ټلو | د ورېځې | کاريګري | د الله | چا چه | مضبوط جوړ کړو | هر يو څيز | بيشکه دے

غرونه به لکه د وريځو غونډې الوزي، دا د الله تعالىٰ کاريګري ده چه هر څيز ئے ډير مضبوط جوړ کړے دے. هغه

خَبِيْرٌۢ بِمَا تَفْعَلُوْنَ ﴿٨٨﴾ مَنْ جَاۗءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهٗ خَيْرٌ مِّنْهَا

خبردار دے | په هغه څه چه | تاسو ئے کوئ | څوک چه راشي | د نيکئ سره | نو هغه د پاره | بهتري ده | له هغې نه

ستاسو په کارو ښه خبر دے. څوک چه نيکي راوړاندې کړي نو هغه له به (ډير) غوره اجر ورکړے شي

وَهُمْ مِّنْ فَزَعٍ يَّوْمَىِٕذٍ اٰمِنُوْنَ ﴿٨٩﴾ وَمَنْ جَاۗءَ بِالسَّيِّئَةِ

او دوي | له ويرے نه | د دغې ورځې | به په امن وي | او څوک چه راشي | د بدئ سره

او دا سے خلق به د دغې ورځې د ويرے نه په امن کښې وي، او څوک چه بدي را مخکښې کړي نو

فَكُبَّتْ وُجُوْهُهُمْ فِي النَّارِ ۭ هَلْ تُجْزَوْنَ اِلَّا مَا

پس اړولې به اچولې شي | مخونه د دوي | په دوزخ کښې | تاسو ته به سزا نه شي درکولے | مګر (د هغه عملونو) چه

پرمخے به په دوزخ کښے ارتاؤ کړے شي (او ويلے به شي) چه تاسو ته صرف د هغو عملونو سزا درکولے

كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿٩٠﴾ اِنَّمَآ اُمِرْتُ اَنْ اَعْبُدَ رَبَّ هٰذِهِ الْبَلْدَةِ

تاسو به کول | بيشکه چه | حکم شوے دے ماته | چه زه عبادت وکړم | د رب | د دې ښار

شي چه تاسو به دنيا کښې کول. ماته خو صرف دا حکم شوے دے چه زه د دې ښار (مکې) د مالک عبادت وکړم

الَّذِيْ حَرَّمَهَا وَلَهٗ كُلُّ شَيْءٍ ۡ وَّاُمِرْتُ اَنْ اَكُوْنَ

کوم چه | ده عزتمند کړے دے | او هم د ده دے | هر يو څيز | او ماته حکم شوے دے | چه يم زه

چا چه دے ښار ته عزت ښخښلے دے او هر څه د هغه دي — او ماته دا حکم شوے دے چه (د هغه)

مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ ﴿٩١﴾ وَاَنْ اَتْلُوَا الْقُرْاٰنَ فَمَنِ اهْتَدٰى

له مسلمانانو نه | او چه | تلاوت دِ کوم زهٔ | دَ قرآن | پس څوک چه | لاره بیا مومی

فرمانبردار دِ اوسیږم او دا چه قرآن مجید دِ اَوَرَوَم ، نو څوک چه سمه لاره ونیسی

فَاِنَّمَا يَهْتَدِىْ لِنَفْسِهٖ وَمَنْ ضَلَّ فَقُلْ اِنَّمَاۤ اَنَا

نو بیشکه | هغهٔ لاره بیا مونده | خپل ځان دَ پاره | او څوک چه | بےلارے شو | پس ووایه | بیشکه زهٔ

نو دَ ځان دَ پاره به ئے نیسی ، او څوک چه ګمراه پاتے شی نو ته ووایه چه زهٔ خو صرف

مِنَ الْمُنْذِرِيْنَ ﴿٩٢﴾ وَقُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ سَيُرِيْكُمْ اٰيٰتِهٖ

له ویرَوُنکو نه یم | او ووایه | ټول تعریفونه | الله دَ پاره دی | دے به دِ یر زر وښائی تاسو | خپلے نخښے

(دَ الله دَ نافرمانئ دَ انجام نه) ویرَوُنکے یم . او دا ووایه چه ټول تعریفونه الله لره دی او هغه به درته ډیر زر خپلے نخښے

فَتَعْرِفُوْنَهَا ۚ وَمَا رَبُّكَ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ ﴿٩٣﴾ ع ١١/٣

بیا به تاسو وپیژنئ هغه | او نهٔ دے | ستا رب | بے خبره | له هغه څهٔ نه | چه تاسو ئے کوئ .

وښائی نو تاسو به ئے بنے وُپیژنئ ، او ستا رب ستاسو دَ کارونو نه بے خبره نهٔ دے .

سُوْرَةُ الْقَصَصِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ ثَمَانٌ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | وَّثَمَانُوْنَ اٰيَةً وَّتِسْعُ رُكُوْعَاتٍ

سورة قصص په مکه کښے نازل شوا و په | (شروع) دَ الله په نوم چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے | دے کښے ٨٨ آیتونه او ٩ رکوع گانړدی

دَ الله په نامه شروع کوم چه لوئے مهربان دَ ډیر زیات رحم خاوند دے

طٰسٓمّٓ ﴿١﴾ تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ الْمُبِيْنِ ﴿٢﴾ نَتْلُوْا عَلَيْكَ مِنْ نَّبَاِ

طٰسٓمّٓ | دا | آیتونه | دَ کتاب | روښانه دی | لولو مونږ | په تا | څهٔ حال

طٰسٓمّٓ ، دا دَ بو داسے کتاب آیتونه دی چه ښکاره بیان کوی ، مونږ دَ موسیٰؑ او دَ فرعون

مُوْسٰى وَفِرْعَوْنَ بِالْحَقِّ لِقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ﴿٣﴾ اِنَّ فِرْعَوْنَ

دَ موسیٰ | او دَ فرعون | په رښتیا | هغو خلقو دَ پاره | چه ایمان لری | بیشکه | فرعون

رښتینی حالات تا ته دَ هغو خلقو په خاطر اَوروو چه ایمان والا دی . بیشکه چه فرعون (دَ مصر)

عَلَا فِى الْاَرْضِ وَجَعَلَ اَهْلَهَا شِيَعًا يَّسْتَضْعِفُ

سرکشی وکړه | په زمکه کښے | او جوړ کړی ئے وُو | خلق د هغے | ټولی ټولی | هغهٔ کمزورے کړے وو

په زمکه کښے ډیر اُوچت شوے وو او دَ هغے ملک خلق ئے ټولی ټولی کړی وو چه دَ یو ټولی (بنی اسرائیل) زور

طَآئِفَةً مِّنْهُمْ يُذَبِّحُ اَبْنَآءَهُمْ وَيَسْتَحْيٖ نِسَآءَهُمْ ۗ اِنَّهٗ

یو ټولے | له هغوی نه | ذبح کول به ئے | ځامن دَ هغوی | او ژوندئ به ئے پریښودے | ښځے دَ هغوی | بیشکه دے

به ئے کمولو دَ هغوی ځامن به ئے حلالول او جینکئ به ئے ژوندئ پریښودلے (چه وینځے ئے کوی) هغه ډیر

كَانَ مِنَ الْمُفْسِدِيْنَ ﴿٤﴾ وَنُرِيْدُ اَنْ نَّمُنَّ عَلَى الَّذِيْنَ

وو | له فساد کوونکو نه | او مونږ غوښتل | چه مونږ احسان وکړو | په هغو خلقو چه

لوئے فسادی سړے وُو . او مونږ ته دا منظوره وه چه دَ کوم ټولی زور کمولے شی په

اسْتُضْعِفُوْا فِي الْاَرْضِ وَنَجْعَلَهُمْ اَئِمَّةً وَّنَجْعَلَهُمُ الْوٰرِثِيْنَ ۝۵

چه کمزوری کړے شوی وو | په زمکه کښے | او مونږ جوړ کړو دوی | پیشوایان | او مونږ جوړ کړو دوی | وارثان

هغوی باندې احسان وکړو او دوی (د ملک) سرداران جوړ کړو او هم دوی (د دے) وارثان جوړ کړو۔

وَنُمَكِّنَ لَهُمْ فِي الْاَرْضِ وَنُرِيَ فِرْعَوْنَ وَهَامٰنَ

او مونږ طاقتور کړو | دوی | په زمکه کښے | او مونږ وښایو | فرعون | او هامان

او په ملک کښے ورله بنیادِ مضبوط کړو ، او فرعون او هامان او د دوی لښکرو ته د دے (کمزورو)

وَجُنُوْدَهُمَا مِنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَحْذَرُوْنَ ۝۶ وَاَوْحَيْنَآ

او لښکرو د دوی ته | د دے (کمزورو د لاس) ته | هغه څیز | د کوم نه چه دوی ویریدل | او مونږ الهام راولیږلو

د لاسه هم هغه (انجام) وښایو د کوم نه چه دوی ویریدل ، او مونږ د موسیٰ مور

اِلٰٓى اُمِّ مُوْسٰٓى اَنْ اَرْضِعِيْهِ ۚ فَاِذَا خِفْتِ عَلَيْهِ فَاَلْقِيْهِ

د موسیٰ د مور طرف ته | چه ته ئې ورکوه دا ته | پس هرکله چه | ته ووېرېږې | په دهٔ | نو وغورځوه دے

ته الهام وکړو چه ته دهٔ له تئ ورکوه نو هرکله چه پرے ته ووېرېږے ، نو په دریاب کښے

فِي الْيَمِّ وَلَا تَخَافِيْ وَلَا تَحْزَنِيْ ۚ اِنَّا رَآدُّوْهُ اِلَيْكِ

په دریاب کښے | او مهٔ ویریږه | او مهٔ غم کوه | بیشکه مونږ به | دے واپس کړو | ستا طرف ته

ئے واچوه او هیڅ اندیښنه مهٔ کوه او هیڅ غم مهٔ کوه مونږ به دا بچے تا ته پسِتنه درکړو

وَجَاعِلُوْهُ مِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ۝۷ فَالْتَقَطَهٗٓ اٰلُ فِرْعَوْنَ لِيَكُوْنَ

او جوړ به کړو دے | له پیغمبرانو نه | بیا را وچت کړلو دے | د فرعون د کور خلقو | چه شی

او دے به د خپلو پیغمبرانو نه یو پیغمبر جوړ کړو نو د فرعون خلقو موسیٰ (د دریاب نه) را وچت کړو چه د

لَهُمْ عَدُوًّا وَّحَزَنًا ۭ اِنَّ فِرْعَوْنَ وَهَامٰنَ وَجُنُوْدَهُمَا

دوی د پاره | دښمن | او سبب د غم | بیشکه | فرعون | او هامان | او لښکرے د دوی

هغوی د دښمنئ او د غم باعث شی ، په دے کښے شک نشته چه فرعون ، هامان او د دوی لښکرے

كَانُوْا خٰطِـِٕيْنَ ۝۸ وَقَالَتِ امْرَاَتُ فِرْعَوْنَ قُرَّتُ عَيْنٍ

وو | خطا کوونکی | او ووئیل | ښځے | د فرعون | یخوالے | د سترګو دے

ټول په غلطئ وو او د فرعون ښځے ووئیل چه دا (هلک) زما او ستا د دواړو د پاره

لِّيْ وَلَكَ ۭ لَا تَقْتُلُوْهُ ڰ عَسٰٓى اَنْ يَّنْفَعَنَآ اَوْ نَتَّخِذَهٗ

ما د پاره | او تا د پاره | دے مهٔ وژنئ | شاید | چه دے مونږ له نفع راکړی | یا مونږ وُنیسو دے

د سترګو یخوالے دے ، دے مهٔ وژنئ ، کیدے شی چه مونږ ته فائده راکړی یا ئے ځان له

وَلَدًا وَّهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ ۝۹ وَاَصْبَحَ فُؤَادُ اُمِّ مُوْسٰى فٰرِغًا ۭ

ځوئے | او دوی | نهٔ پوهیدل | او شو | زړهٔ | د موسیٰ د مور | خالی (د قرار نه)

ځوئے کړو او هغوی (په اصل حال) نهٔ پوهیدل ، او د موسیٰ د مور زړهٔ ناقلاره شو ،

إِنْ كَادَتْ لَتُبْدِي بِهِ لَوْلَا أَنْ رَّبَطْنَا عَلَىٰ قَلْبِهَا لِتَكُونَ

بیشکه نزدے وه | دا چه ښکاره کړی | هغه | که چرے نه وے | محکم کړے مونږ | زړه ډ ددے | چه وی دا

نزدے وه چه د موسیٰ ؑ حال (د فرعون خلقو ته) ښکاره کړی که مونږ د هغے زړه د اټینګ کړے نه وے چه هغه دِ په

مِنَ الْمُؤْمِنِينَ ۞١٠ وَقَالَتْ لِأُخْتِهِ قُصِّيهِ ۖ فَبَصُرَتْ

له یقین کوونکو نه | او (د موسیٰ ؑ مور) ووئیل | د دهٔ خور ته | روانه شه دهٔ پسے | بیا ؤلیدلو دے

مونږ کلک یقین ؤساتی۔ او هغے د موسیٰ ؑ خور ته ؤوئیل چه ته ورپسے درک وهه ، نو هغے موسیٰ ؑ ته د لرے

بِهِ عَنْ جُنُبٍ وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ ۞١١ وَحَرَّمْنَا عَلَيْهِ الْمَرَاضِعَ

هغه | د لرے نه | او دوی | نه پوهیدل | او حرام کړل مونږ | په دهٔ باندِ | دائی ګانے

نه (پټ پټ) کتل او د فرعون خلق پرے نه خبریدل ، او مونږ د اول نه په هغهٔ باندِ دائی ګانے منع

مِنْ قَبْلُ فَقَالَتْ هَلْ أَدُلُّكُمْ عَلَىٰ أَهْلِ بَيْتٍ يَكْفُلُونَهُ

له وړاندِ نه | پس (د موسیٰ ؑ خور) ووئیل | آیا زهٔ ؤښایم تاسو ته | یو کور والا | چه د دهٔ پرورش وکړی

کړے وے (چه د هیچا تے نه اخستو) نو د موسیٰ ؑ خور ووئیل چه آیا زهٔ درته د یو داسے کور پته ؤښایم چه د دے ماشوم

لَكُمْ وَهُمْ لَهُ نَاصِحُونَ ۞١٢ فَرَدَدْنَاهُ إِلَىٰ أُمِّهِ كَيْ

تاسو د پاره | او هغوی به | د دهٔ | خیر خواه هم وی | نو مونږ پسته کړو دے | د دهٔ د مور طرفته | د پاره د دے چه

پالنه به درله کوی او د دهٔ خیر به هم غواړی۔ نو مونږ هغه خپلے مور ته پسته ؤرسولو چه د هغے

تَقَرَّ عَيْنُهَا وَلَا تَحْزَنَ وَلِتَعْلَمَ أَنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ وَلَٰكِنَّ

یخے وی | سترګے د دے | او غمژنه نهٔ شی | او چه پوهه شی | چه بیشکه | وعده | د الله | رښتیاده | او لیکن

سترګے پرے یخیږی او چه غمژنه نهٔ وی او چه په دے پوهه شی چه د الله تعالیٰ وعده حقه ده خو

أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ۞١٣ وَلَمَّا بَلَغَ أَشُدَّهُ وَاسْتَوَىٰ آتَيْنَاهُ ع ١٣

اکثر له دوی نه | نهٔ پوهیږی | او هر کله چه | دے ؤرسیدلو | خپلے ځوانئ ته | او پوره (توانا) شو | نو مونږ ورکړو دهٔ ته

اکثر خلق په دے (خبرو) نهٔ پوهیږی او څهٔ وخت چه موسیٰ ؑ خپلے ځوانئ ته ؤرسیدو او ښه تکړه ورشو

حُكْمًا وَعِلْمًا ۚ وَكَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ ۞١٤ وَدَخَلَ

حکمت | او علم | او دغه شان | مونږ بدله ورکوو | نیکانو ته | او دے داخل شو

نو مونږ ورته حکمت او علم ورکړو او مونږ نیکانو خلقو ته هم دغسے بدله ورکوو ۔ او (یو ورځ) موسیٰ ؑ په

الْمَدِينَةَ عَلَىٰ حِينِ غَفْلَةٍ مِّنْ أَهْلِهَا فَوَجَدَ فِيهَا رَجُلَيْنِ

په ښار کښے | په وخت | د غفلت کښے | د اوسیدونکو د هغے | پس بیا مونده دهٔ | په دغه ځائے کښے | دوه سړی

په داسے وخت کښے ښار ته ورننوتو چه د هغه ځائے خلق غافله وو ، نو هلته ئے دوه تنه سړی په

يَقْتَتِلَانِ ۖ هَٰذَا مِنْ شِيعَتِهِ وَهَٰذَا مِنْ عَدُوِّهِ ۖ فَاسْتَغَاثَهُ

چه جګړه ئے کوله | دا (یو خو) | د دهٔ د قوم وو | او دا (بل) | د دهٔ د دښمنانو نه | پس فریاد وکړو دهٔ ته

جنګ ؤلیدل دا (یو) خو د دهٔ د قوم (بنی اسرائیل) نه وو او بل د دهٔ د دښمنانو نه وو ، نو کوم تن چه د دهٔ د

الَّذِیْ مِنْ شِیْعَتِهٖ عَلَى الَّذِیْ مِنْ عَدُوِّهٖ ۙ فَوَكَزَهٗ مُوْسٰى

هغه چا چه | د ده د قوم نه وو | په خلاف د هغه چا | چه د ده د دښمنانو نه وو | پس سوک ورکړو هغه ته | موسٰی

قوم سړے وو هغه د دښمن قوم د سړی په مقابله کښے د موسٰی نه مدد وغوښتلو، نو موسٰی ورله یو سوک ورکړو

فَقَضٰى عَلَیْهِ ۖ قَالَ هٰذَا مِنْ عَمَلِ الشَّیْطٰنِ ؕ اِنَّهٗ عَدُوٌّ

نو کار ئے تمام کړو | د هغه | ده ووئیل | دا (خو) | یو شیطانی حرکت دے | بیشکه هغه | دښمن دے

نو هغه په ځائے سوړ شو، موسٰی ووئیل دا خو یو شیطانی کار وشو ، بیشکه چه شیطان ښکاره دښمن دے

مُّضِلٌّ مُّبِیْنٌ ﴿۱۵﴾ قَالَ رَبِّ اِنِّیْ ظَلَمْتُ نَفْسِیْ

ګمراه کونکے | ښکاره | ده ووئیل | اے زما ربه! | بیشکه ما | ظلم وکړو | په خپل ځان

چه سړے په غلطه لاره اچوی ، موسٰی ووئیل چه اے زما ربه! ما په خپل ځان ظلم وکړو

فَاغْفِرْ لِیْ فَغَفَرَ لَهٗ ؕ اِنَّهٗ هُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِیْمُ ﴿۱۶﴾

پس معاف کړه ما | نو معافی ئے وکړه ده له | بیشکه هم دے | بخښونکے | مهربان دے.

پس ته را له معافی وکړه نو الله تعالٰی ورله معافی وکړه ، بیشکه چه هغه بخښونکے مهربان دے

قَالَ رَبِّ بِمَاۤ اَنْعَمْتَ عَلَیَّ فَلَنْ اَكُوْنَ ظَهِیْرًا

ده ووئیل | اے زما ربه! | لکه چه | تا انعام وکړو | په ما | پس هیڅ کله به نه | یم زه | مددګار

موسٰی ووئیل چه اے زما ربه! تا چه په ما کوم احسان کړے دے نو زه به هیچرے د مجرمانو مددګار

لِّلْمُجْرِمِیْنَ ﴿۱۷﴾ فَاَصْبَحَ فِی الْمَدِیْنَةِ خَآئِفًا یَّتَرَقَّبُ فَاِذَا

د مجرمانو | پس صبا کړو ده | په ښار کښے | ویریدونکے | انتظار کونکے | پس ناګهانه

نه جوړیږم - الغرض په موسٰی باندې په ښار کښے د ویرے او انتظار په حالت کښے صبا شو نو څه کوری چه

الَّذِی اسْتَنْصَرَهٗ بِالْاَمْسِ یَسْتَصْرِخُهٗ ؕ قَالَ لَهٗ مُوْسٰۤى

هم هغه سړے | چه مدد ئے غوښتے وو | پرون | هغه ده ته فریاد کولو | ووئیل | ده ته | موسٰی

پرون ترے نه کوم سړی امداد غوښتلے وو، هغه ورته بیا (دامداد د پاره) آواز ورکوی، موسٰی ورته ووئیل چه ته

اِنَّكَ لَغَوِیٌّ مُّبِیْنٌ ﴿۱۸﴾ فَلَمَّاۤ اَنْ اَرَادَ اَنْ یَّبْطِشَ بِالَّذِیْ

بیشکه ته | ګمراه یې | ښکاره | بیا هر کله چه | ده اراده وکړه | چه لاس وروا چوی | هغه چا ته چه

خو ښکاره بے لارے سړے یې؟ نو څه وخت چه موسٰی هغه سړی ته لاس وراوږد کړو کوم چه د دوا

هُوَ عَدُوٌّ لَّهُمَا ۙ قَالَ یٰمُوْسٰۤى اَتُرِیْدُ اَنْ تَقْتُلَنِیْ

هغه دښمن وو | د دے دواړو | ده ووئیل | اے موسٰی! | آیا ته غواړے | چه ته ما ووژنے

شریک دښمن وو نو هغه (اسرائیلی) ووئیل چه اے موسٰی! آیا ته ما هم هغسے وژل غواړے لکه

كَمَا قَتَلْتَ نَفْسًۢا بِالْاَمْسِ ۖ اِنْ تُرِیْدُ اِلَّاۤ اَنْ تَكُوْنَ

لکه څنګه چه | تا وژلے دے | یو سړے | پرون | ته نه غواړے | مګر دا چه | ته د یې

چه پرون دې یو سړے وژلے وو؟ ته خو بس په دے ملک کښے خپل رعب

جَبَّارًا فِى الْاَرْضِ وَمَا تُرِيْدُ اَنْ تَكُوْنَ مِنَ الْمُصْلِحِيْنَ ۝۱۹ وَجَآءَ

ظالم | په زمکه کښے | او نه نه غواړے | چه یے دِ ته | له نیکانو نه | او راغے

کښېښول غواړے ، او دا نه غواړے چه سمه روغه دِ وکړے ، او یو سړے

رَجُلٌ مِّنْ اَقْصَا الْمَدِيْنَةِ يَسْعٰى ۚ قَالَ يٰمُوْسٰٓى اِنَّ

یو سړے | دَ آخرے غاړے نه | دَ ښار | په منډه | ده ووئیل | اے موسیٰ | بیشکه

دَ ښار دَ بلے غاړے نه په منډه منډه راغے ، وے وئیل چه اے موسیٰ! دلباریان

الْمَلَاَ يَاْتَمِرُوْنَ بِكَ لِيَقْتُلُوْكَ فَاخْرُجْ اِنِّىْ لَكَ

سرداران | مشورے کوی | ستا په حقله | چه وُوژنی تا | پس ته وُوځه | بیشکه زه | تا دَ پاره

ستا په حقله مشورے کوی چه تا ووژنی نو ته (دَ ملک نه) بهر لاړ شه ، زه ستا خیر

مِنَ النّٰصِحِيْنَ ۝۲۰ فَخَرَجَ مِنْهَا خَآئِفًا يَّتَرَقَّبُ ۚ قَالَ رَبِّ

له نیک خواهانو نه یم | پس دے راووتلو | دَ هغه ځائے نه | ویریدونکے | انتظار کوونکے | ده ووئیل | اے زما ربه

غواړم - نو موسیٰ دَ هغه ځائے نه دَ ویرے او پریشانئ په حال کښے ووتلو ، دائے ووئیل چه اے زما ربه!

نَجِّنِىْ مِنَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ۝۲۱ وَلَمَّا تَوَجَّهَ تِلْقَآءَ مَدْيَنَ قَالَ ع

نجات راکړه ماله | دَ ظالمانو له قوم نه | او هر کله چه متوجه شو دے | طرف دَ مدین ته | نو وُئے وئیل

ما دَ دے ظالمانو نه خلاص کړه ! او څه وخت چه موسیٰ دَ مدین اړخ ته روان شو نو دائے ووئیل

عَسٰى رَبِّىْٓ اَنْ يَّهْدِيَنِىْ سَوَآءَ السَّبِيْلِ ۝۲۲ وَلَمَّا وَرَدَ

اُمید لرم | چه زما رب به | وُښائی ماته | نیغه | لاره | او هر کله چه | دے ورسیدو

چه اُمید دے چه خپل رب به راته سمه لار وُښائی - او بیا څه وخت چه دَ مدین دَ اوبو

مَآءَ مَدْيَنَ وَجَدَ عَلَيْهِ اُمَّةً مِّنَ النَّاسِ يَسْقُوْنَ ۙ۬ وَوَجَدَ

اوبو دَ مدین ته | ده بیاموند له | هلته | یوه ډله | دَ خلقو | چه خړوبول ئے (څاروی) | او ده بیاموندے

غاړے ته ورسیدو نو هلته ئے دَ خلقو یوه ټولے بیاموندلو چه (څاروی) خړوبوی او دَ هغوئی نه ښکته

مِنْ دُوْنِهِمُ امْرَاَتَيْنِ تَذُوْدٰنِ ۚ قَالَ مَا خَطْبُكُمَا ۭ

دَ دوئ نه جُدا | دوه ښځے | چه را منع کړے ئے وے (چیلئ) | ده ووئیل | څه دے حال ستاسو

اړخ ته ئے دوه ښځے ولیدے چه (چیلئ ئے) را ایسارے کړے ولاړے دی ، موسیٰ ووئیل چه تاسو څه غواړئ؟

قَالَتَا لَا نَسْقِىْ حَتّٰى يُصْدِرَ الرِّعَآءُ ٚ سكتة وَاَبُوْنَا

هغو دواړو ووئیل | نه شو خړوبولے مونږ | تر دے چه | واپس بوځی | شپانه | او زمونږ پلار

هغوئی ووئیل چه مونږه (په خپلو څاروُو) اُوبه نه شُښو تر څو چه کُله بانه (خپل کنډ کونه) پستنه نه کړی او زمونږ پلار

شَيْخٌ كَبِيْرٌ ۝۲۳ فَسَقٰى لَهُمَا ثُمَّ تَوَلّٰٓى اِلَى الظِّلِّ

ډیر بوډا دے | نو موسیٰ خړوب کړے | دَ دوئ (چیلئ) | بیا | ور وُګرځیدو | طرف دَ سوری ته

ډیر بوډا دے ، نو موسیٰ دَ هغوئ په خاطر (په کړو) اُوبه وُشُښولے نو بیا یو اړخ ته په سوری کښیناستو نو دا

فَقَالَ رَبِّ اِنِّیْ لِمَآ اَنْزَلْتَ اِلَیَّ مِنْ خَیْرٍ
پس دۀ ووئیل | اے زمارب! | بیشکہ زۀ | هغه څیز ته چه | ته ئے نازل کړے | زما طرف ته | له ښیګړے نه
دُعائے وکړه چه اے زماربه! اوس هر څۀ نعمت چه د راولیږلو نو زۀ ورته لیواله
فَقِیْرٌ ﴿۲۴﴾ فَجَآءَتْهُ اِحْدٰىهُمَا تَمْشِیْ عَلَى اسْتِحْیَآءٍ ز
محتاج یم | پس راغله دۀ ته | یوه (جینئ) له دواړو نه | راروانه | په حیا سره
یم. بیا په دے دوو جینکو کښے یوه ورته (واپس) راغله چه د حیا نګ ئے کولو،
قَالَتْ اِنَّ اَبِیْ یَدْعُوْكَ لِیَجْزِیَكَ اَجْرَ مَا سَقَیْتَ
دے ووئیل | بیشکه | پلار زما | بلی تا | د پاره د دے چه درکړی تا ته | بدله | د هغے چه خروب کړے تا
هغے ووئیل چه زما پلار د غواړی چه تا له زمونږ په دے کنهک بانډ د اوبو ښئولو
لَنَا ط فَلَمَّا جَآءَهٗ وَقَصَّ عَلَیْهِ الْقَصَصَ لا قَالَ لَا تَخَفْ قف
د پاره زمونږ | پس هر کله چه | دے راغلو دۀ ته | او بیان ئے کړله | دۀ ته | قصه | دۀ ووئیل | مۀ ویریږه
بدله درکړی نو څۀ وخت چه هغه شعیبؑ له راغلو او هغۀ ته ئے خپله قصه بیان کړله نو هغۀ ورته ووئیل چه مۀ ویریږه
نَجَوْتَ مِنَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِیْنَ ﴿۲۵﴾ قَالَتْ اِحْدٰىهُمَا
ته خلاص شوے | له ظالم قوم نه | ووئیل | یوے له دے دواړو نه
ته د ظالمانو خلقو (د لاس) نه راخلاص شوے یئے. په دے جینکو کښے یوے ووئیل چه اے زمابابا
یٰٓاَبَتِ اسْتَاْجِرْهُ ز اِنَّ خَیْرَ مَنِ اسْتَاْجَرْتَ الْقَوِیُّ
اے زما پلاره! | ملازم وُساته دے | بیشکه | ډیر ښۀ (سړے) | کوم چه ته ملازم ساتے | چه توانا
دے نوکر کړه ، ځکه چه ښۀ نوکر هغه دے چه قوی او امانتګر
الْاَمِیْنُ ﴿۲۶﴾ قَالَ اِنِّیْٓ اُرِیْدُ اَنْ اُنْكِحَكَ اِحْدَى
امانتدار وی | (شعیبؑ) ووئیل | بیشکه زۀ | غواړم | چه په نکاح درکړم تا ته | یوه
وی. هغۀ ورته ووئیل چه زۀ دا غواړم چه په خپلو دوو لونړو کښے د یوے تا سره
ابْنَتَیَّ هٰتَیْنِ عَلٰٓى اَنْ تَاْجُرَنِیْ ثَمٰنِیَ حِجَجٍ ج
زما له دے دواړو لونړو نه | په دے (شرط) | چه ته ملازمت وکړے زما | اته | کاله
نکاح وُکړم ، په دے شرط چه ته به اته کاله زما خدمت کوے.
فَاِنْ اَتْمَمْتَ عَشْرًا فَمِنْ عِنْدِكَ ج وَمَآ اُرِیْدُ اَنْ اَشُقَّ
بیا که چرے ته پوره کړے | لس (کاله) | نو (هغه) به ستا له طرف نه (نیکی) وی | او نۀ غواړم زۀ | چه سختی وکړم
او که چرے تا لس کاله پوره کړل نو دا به ستا احسان وی او زۀ په تا څۀ درونډ کار کول
عَلَیْكَ ط سَتَجِدُنِیْٓ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ مِنَ الصّٰلِحِیْنَ ﴿۲۷﴾ قَالَ
په تا باندے | زر به ته بیا مومے ما | که چرے | وُغواړی الله | له صالحانو نه | (موسیٰؑ) وُوئیل
نۀ غواړم. ته به انشاء الله ما په معامله کښے ډیر ښۀ بیا مومے. موسیٰؑ ورته ووئیل چه

ذٰلِكَ بَيْنِيْ وَبَيْنَكَ ط اَيَّمَا الْاَجَلَيْنِ قَضَيْتُ

دا (وعده ده) | په مينځ زما | او په مينځ ستاکښې | کومه موده چه زه يې په دواړو کښې | زه پوره کړم

دا خبره زما او ستا تر مينځه خلاصه شوه. په دواړو کښې هره يوه نيټه چه زه پوره کړم نو په

فَلَا عُدْوَانَ عَلَيَّ ط وَاللّٰهُ عَلٰى مَا نَقُوْلُ وَكِيْلٌ ع ٢٨

نو نه به وي جبر | په ما بانديې | او الله | په هغه څه چه | مونږ يې وايو | ګواه دے

ما به جبر نه وي. او څه چه مونږ وايو الله تعالىٰ په هغې ګواه دے

فَلَمَّا قَضٰى مُوْسَى الْاَجَلَ وَسَارَ بِاَهْلِهٖ اٰنَسَ

پس هر کله چه | پوره کړه | موسىٰ | موده | او روان شو | خپل کور والا سره | نو وليدوه

نو څه وخت چه موسىٰ نيټه پوره کړه، او د خپل ټبر سره (پسته مصر ته) روان شو نو د طور (نومے

مِنْ جَانِبِ الطُّوْرِ نَارًا ج قَالَ لِاَهْلِهِ امْكُثُوْٓا اِنِّيْٓ اٰنَسْتُ

له (کوه) طور د طرف نه | يو اور | ده وويل | خپل کور والا ته | ايسار شئ تاسو | بيشکه ما وليدو

غره) د غاړے نه يو اور وليدو، خپل کور والا ته يې ووئيل چه تاسو دلته ايسار شئ، ما اور ليدلے

نَارًا لَّعَلِّيْٓ اٰتِيْكُمْ مِّنْهَا بِخَبَرٍ اَوْ جَذْوَةٍ مِّنَ النَّارِ

اور | شايد زه | راوړم تاسو ته | له دغه ځائے نه | څه خبر | يا (راوړم) څه شعله | د اور

دے، شايد چه تاسو له ترے نه څه خبر راوړم، يا د اور يوه شعله چه تاسو ورته ځانونه

لَعَلَّكُمْ تَصْطَلُوْنَ ٢٩ فَلَمَّآ اَتٰهَا نُوْدِيَ مِنْ شَاطِئِ

چه تاسو | ځان تود کړئ | پس هر کله چه | دے راغے هلته | (نو) آواز ورته وشو | له غاړے نه

تود کړئ، نو څه وخت چه موسىٰ د اور خوا ته ورسيدو نو د هغې ميدان د ښي طرف نه په

الْوَادِ الْاَيْمَنِ فِي الْبُقْعَةِ الْمُبٰرَكَةِ مِنَ الشَّجَرَةِ اَنْ يّٰمُوْسٰٓى

ميدان د ښي اړخ | په ځائے | برکتي کښے | له يوے اوني نه | چه اے موسىٰ!

په هغه مبارک ځائے کښے د يوے اوني نه ورته آواز وشو چه اے موسىٰ!

اِنِّيْٓ اَنَا اللّٰهُ رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ ٣٠ لا وَاَنْ اَلْقِ عَصَاكَ ط

بيشکه هم زه يم | الله | پروردګار | د جهانونو | او چه | وغورزوه | خپله امسا

بيشکه هم زه هغه الله يم چه د ټولو جهانونو پروردګار يم. او خپله امسا وغورزوه.

فَلَمَّا رَاٰهَا تَهْتَزُّ كَاَنَّهَا جَآنٌّ وَّلّٰى مُدْبِرًا

پس هر کله چه | ده وليده امسا | چه حرکت کوي | لکه چه دا | مار دے | (نو) دے واپس شو | شا کړځونکے

نو څه وخت چه هغه وليده چه امسا لکه د مارغونډۍ حرکت کوي نو شا غاړے ته يې منډه کړه او په

وَّلَمْ يُعَقِّبْ ط يٰمُوْسٰٓى اَقْبِلْ وَلَا تَخَفْ قف اِنَّكَ مِنَ الْاٰمِنِيْنَ ٣١

او بيرته راونه ګرځيدو | (حکم وشو) اے موسىٰ! | راوړاندې شه | او مه ويريږه | بيشکه ته | له امن موندونکو نه يې

وروستو يې ونه کتل (مونږ ووئيل) اے موسىٰ! راوړاندې شه او مه ويريږه، ولے چه ته په امن يې!

اُسْلُكْ يَدَكَ فِىْ جَيْبِكَ تَخْرُجْ بَيْضَآءَ مِنْ غَيْرِ سُوْٓءٍ ز

ننباسه | خپل لاس | په خپل گریوان کښې | هغه به راوځی | سپین | بې له څه عیب نه

راو) خپل لاس گریوان ته ننباسه نو بغیر د څه عیب نه به ځلنده سپین راوځی

وَّاضْمُمْ اِلَيْكَ جَنَاحَكَ مِنَ الرَّهْبِ فَذٰنِكَ بُرْهَانٰنِ

او ملاؤ کړه | خپل ځان ته | خپل مټ | له ویرې نه | پس دا دواړه | دلیلونه دی

او د ویرې (د لرې کولو) د پاره خپل لاس (بیا) خپل بازو سره یوځائے کړه (چه سم شی) ، دا ستا د رب له طرف نه

مِنْ رَّبِّكَ اِلٰى فِرْعَوْنَ وَمَلَا۠ئِهٖ ؕ اِنَّهُمْ كَانُوْا

ستا د ربّ له طرف نه | طرف د فرعون | او د سردارانو د هغهٔ ته | بیشکه دوی | وُو

فرعون او د هغهٔ سردارانو د پاره دوه نخښې دی ، یقیناً هغوئ ډیر

قَوْمًا فٰسِقِيْنَ ﴿۳۲﴾ قَالَ رَبِّ اِنِّىْ قَتَلْتُ مِنْهُمْ

خلق | نافرمانه | دهٔ ووئیل | اے زمار به ! | بیشکه ما | وژلے وو | له دوی نه

نافرمانه خلق دی ۔ موسیٰ ؑ ووئیل اے زمار به ! ما له هغوئ نه یو سړے وژلے

نَفْسًا فَاَخَافُ اَنْ يَّقْتُلُوْنِ ﴿۳۳﴾ وَاَخِىْ هٰرُوْنُ هُوَ اَفْصَحُ

یو سړے | پس ویریږم زهٔ | چه دوی به ما ووژنی | او زما ورور | هارون ؑ | هغه | زیات فصیح دے

وو ، په دے ویریږم چه مړ م نهٔ کړی ۔ او زما د ورور هارون ژبه زمانه زیاته

مِنِّىْ لِسَانًا فَاَرْسِلْهُ مَعِىَ رِدْاً يُّصَدِّقُنِىْٓ ز

له مانه | په ژبه کښې | پس ولیږه دے | ماسره | مددگو ونکے | چه دے زما تصدیق وکړی

روانه چلیږی ، په دے وجه نهٔ هغه ماسره (زما) مددگار جوړ کړه ولیږه چه هغه زما تصدیق وکړی

اِنِّىْٓ اَخَافُ اَنْ يُّكَذِّبُوْنِ ﴿۳۴﴾ قَالَ سَنَشُدُّ عَضُدَكَ بِاَخِيْكَ

بیشکه زهٔ | ویریږم | چه دوی به ما دروغژن وګڼړی | وئے فرمائیل | مونږ به مضبوط کړو | ستا مټے | په ورور ستا

ماسره دا اندیښنه ده چه هغوئ به ما دروغژن وګڼړی ، الله وفرمائیل چه مونږ به ستا د ورور په ذریعه ستا مټے مضبوطے

معانقة ۱۱ وَنَجْعَلُ لَكُمَا سُلْطٰنًا فَلَا يَصِلُوْنَ اِلَيْكُمَا ۚ بِاٰيٰتِنَآ ۚ

او مونږ به درکړو | تاسو دواړو ته | غلبه | پس دوی به نهٔ شی دررسیدے | تاسو ته | په وجه د نخښنو زمونږ

کړو او تاسو دواړو له به غلبه درکړو نو هغوئ به درله لاس قدر له هم درونږلے نهٔ شی ، زمونږ د نخښنو په وجه

اَنْتُمَا وَمَنِ اتَّبَعَكُمَا الْغٰلِبُوْنَ ﴿۳۵﴾ فَلَمَّا جَآءَهُمْ

تاسو دواړه | او کوم خلق چه | ستاسو پیروی وکړی | غالب به وی | پس هر کله چه | راغے دوی ته

به تاسو او ستاسو ملگری غالب راځی ۔ پس هر کله چه موسیٰ ؑ هغوئ ته

مُّوْسٰى بِاٰيٰتِنَا بَيِّنٰتٍ قَالُوْا مَا هٰذَآ اِلَّا سِحْرٌ مُّفْتَرًى

موسیٰ | زمونږ په واضحه نخښو سره | دوی ووئیل | نهٔ دے دا | مکر | جادو | تړلے شوے

زمونږ ځرګنده دلیلونه یوړل نو هغوئ ووئیل چه دا خو د ځانه جوړ شوے جادو دے

وَمَا سَمِعْنَا بِهٰذَا فِىٓ اٰبَآئِنَا الْاَوَّلِيْنَ ﴿٣٦﴾ وَقَالَ مُوْسٰى رَبِّىٓ

آورېدلي دي اوږدې لي موږ | دا | له خپلو پخوانو پلارانو نيکونو نه | او وُويل | موسیٰؑ | زما ربّ

او موږ چرې دا سې خبرې د پلارنيکه په وختونو کښې هم آورېدلې نه دي . او موسیٰؑ ورته وويل چه زما ربّ

اَعْلَمُ بِمَنْ جَآءَ بِالْهُدٰى مِنْ عِنْدِهٖ وَمَنْ تَكُوْنُ لَهٗ

ښهٔ پوهه دے | په هغه چا | چه راوړی | هدايت | د ده له طرف نه | او په هغه چا | چه د هغهٔ د پاره

ډېر ښهٔ پېژنی چه چا د هغهٔ د طرف نه سم دين راوړے دے او د چا د آخرت انجام

عَاقِبَةُ الدَّارِ ۭ اِنَّهٗ لَا يُفْلِحُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿٣٧﴾ وَقَالَ فِرْعَوْنُ

د آخرت | کور | بېشکه نهٔ کاميابيږی | ظالمان خلق | او وُويل | فرعون

ښهٔ کېدونکے دے ، يقيناً چه ظالمان هيچرې کامياب به نهٔ شي . او فرعون وويل چه

يٰٓاَيُّهَا الْمَلَاُ مَا عَلِمْتُ لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرِىْ ۚ فَاَوْقِدْ

اے درباريانو! | زهٔ نهٔ پېژنم | تاسو د پاره | بل څوک معبود | خپل ځان نه سيوا | پس او بل کړه

اے درباريانو ! ما ته خو تاسو د پاره د ځان نه سيوا بل خدائے نهٔ ښکاری ، نو اے هامانه!

لِىْ يٰهَامٰنُ عَلَى الطِّيْنِ فَاجْعَلْ لِّىْ صَرْحًا لَّعَلِّىٓ

زما د پاره | اے هامانه! | په خټه | بيا جوړ کړه | زما د پاره | يو محل | د پاره د دے چه زهٔ

ماله خټه په اور کښې پخه کړه او يوه ماڼۍ راله جوړه کړه شايد چه زهٔ

اَطَّلِعُ اِلٰىٓ اِلٰهِ مُوْسٰى ۙ وَاِنِّىْ لَاَظُنُّهٗ مِنَ الْكٰذِبِيْنَ ﴿٣٨﴾

وُګورم | د موسیٰؑ د معبود طرف ته | او بېشکه زهٔ | ګمان کوم په ده | له دروغ ويونکو نه

(په هغې کښې) د موسیٰؑ خدائے وُليدے شم ، او زهٔ خو دا سړے دروغژن ګڼم

وَاسْتَكْبَرَ هُوَ وَجُنُوْدُهٗ فِى الْاَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ وَظَنُّوْٓا

او تکبر وکړو | دهٔ | او د دهٔ لښکرو | په زمکه کښې | په ناحقه | او دوی خيال وکړو

او فرعون او د هغهٔ لښکرو په ناحقه په زمکه کښې سرکشي وکړه او دائے خيال وو چه

اَنَّهُمْ اِلَيْنَا لَا يُرْجَعُوْنَ ﴿٣٩﴾ فَاَخَذْنٰهُ وَجُنُوْدَهٗ فَنَبَذْنٰهُمْ

چه بېشکه دوی به | زمونږ طرف ته | بېرته نهٔ شی راګرځولے | نو مونږ ونيولو دے | او لښکرے د دهٔ | بيا مونږ وُغورزول دوی

مونږ ته به هيچرې پستنه نهٔ راځی . نو مونږ هغه او د هغهٔ لښکرے وُنيوے او بيا مونږ هغوئ

فِى الْيَمِّ ۚ فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الظّٰلِمِيْنَ ﴿٤٠﴾ وَجَعَلْنٰهُمْ

په درياب کښې | پس وګوره | څنګه | شو | انجام | د ظالمانو | او جوړ کړل مونږ دوی

په درياب کښې وُغورزول نو ته ګوره چه د دغې ظالمانو آخره خاتمه څنګه شوه ؟ او مونږ هغوئ

اَئِمَّةً يَّدْعُوْنَ اِلَى النَّارِ ۚ وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ لَا يُنْصَرُوْنَ ﴿٤١﴾

پېشوايان | چه بلل به دوی (خلق) | طرف د اور ته | او په ورځ | د قيامت به | د دوی مدد نهٔ شي کېدے

پېشوايان جوړ کړی وو چه هم د دوزخ طرف ته به ئے (خلق) رابلل او د قيامت په ورځ به (هم) د هغوئ څهٔ مدد نهٔ شي کېدے

وَاَتْبَعْنٰهُمْ فِیْ هٰذِهِ الدُّنْيَا لَعْنَةً ۚ وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ هُمْ
او ورپسې کړو مونږ دوی پسې | په دې دنيا کښې | لعنت | او په ورځ د قيامت به | دوی
او په دې دنيا کښې مو ورپسې لعنت ولګولو او د قيامت په ورځ به (هم) د هغوئ حال
مِّنَ الْمَقْبُوْحِيْنَ ﴿۴۲﴾ وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ مِنْۢ بَعْدِ مَاۤ
له بد حاله خلقو نه وی | او بیشکه | مونږ ورکړے وو | موسیٰ ته | کتاب | پس له هغې نه چه
ډير خراب وی ، او مونږ موسیٰ له د پخوانو امتونو د تباه کولو نه پس
اَهْلَكْنَا الْقُرُوْنَ الْاُوْلٰى بَصَآئِرَ لِلنَّاسِ وَهُدًى
مونږ هلاک کړل | اُمتونه | پخوانی | دليلونه | خلقو د پاره | او هدايت
کتاب ورکړو چه د (هغه زمانې د) خلقو د پاره د هوښيارتيا ذريعه وه او سراسر هدايت
وَّرَحْمَةً لَّعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُوْنَ ﴿۴۳﴾ وَمَا كُنْتَ بِجَانِبِ الْغَرْبِيِّ
او رحمت | د پاره د دې چه دوی | نصيحت حاصل کړی | او نهٔ وے تهٔ | په طرف د | مغرب کښې
او رحمت وو چه دوئ ترے نه سبق واخلی. او تهٔ (د کوهِ طور) قبلنيز اړخ ته موجود نهٔ وے
اِذْ قَضَيْنَاۤ اِلٰى مُوْسَى الْاَمْرَ وَمَا كُنْتَ مِنَ الشّٰهِدِيْنَ ﴿۴۴﴾
هرکله چه مونږ ورکړل | موسیٰ ته | حکمونه | او نهٔ | وے تهٔ | له حاضرو خلقو نه
څهٔ وخت چه مونږ موسیٰ له حکمونه ورکول او تهٔ په هغو خلقو کښې شامل نهٔ وے کوم چه حاضر وو ،
وَلٰكِنَّاۤ اَنْشَاْنَا قُرُوْنًا فَتَطَاوَلَ عَلَيْهِمُ الْعُمُرُ ۚ وَمَا كُنْتَ
او ليکن مونږ پيدا کړی وو | ډير اُمتونه | بيا اُوږده شول | په دوی باندې | عمرونه | او نهٔ وے تهٔ
بيا مونږ ډير قومونه پيدا کړل بيا په هغوئ اوږده زمانه تيره شوه او نهٔ د مدين
ثَاوِيًا فِیْۤ اَهْلِ مَدْيَنَ تَتْلُوْا عَلَيْهِمْ اٰيٰتِنَا ۙ وَلٰكِنَّا كُنَّا
اُوسيدونکے | په اهل د مدين کښې | چه تا تلاوت کولے | دوی ته | زمونږ آيتونه | او ليکن مونږ يُو
په خلقو کښې هم ديره نهٔ وے چه زمونږ آيتونه دِ ورته آدرولے ، بلکه دا خو هم مونږ يُو
مُرْسِلِيْنَ ﴿۴۵﴾ وَمَا كُنْتَ بِجَانِبِ الطُّوْرِ اِذْ نَادَيْنَا وَلٰكِنْ
رسول ليږونکی | او نهٔ وے تهٔ | په طرف | د طور | هرکله چه مونږ آواز وکړو | او ليکن (دا خو)
چه رسولان مو ورته ليږل ۔ او نهٔ تهٔ دغه وخت د طور (غر) په لمنه کښې موجود وے هرکله چه مونږ (موسیٰ) ته آواز
رَّحْمَةً مِّنْ رَّبِّكَ لِتُنْذِرَ قَوْمًا مَّاۤ اَتٰىهُمْ مِّنْ نَّذِيْرٍ
رحمت دے | ستا د رب | چه تهٔ وويروے | هغه خلق | چه نهٔ دے راغلے هغوئ ته | څوک ويرونکے
کړے وو خو دا ستا د رب له طرف نه يوه مهربانی ده چه تهٔ هغه قوم (د نافرمانئ د نتيجو نه) وويرے کوم ته چه له تا نه
مِّنْ قَبْلِكَ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُوْنَ ﴿۴۶﴾ وَلَوْلَاۤ اَنْ تُصِيْبَهُمْ
له تا نه وړاندې | شايد چه دوی | نصيحت واخلی | او که چرے نهٔ وے (دا خبره) | چه رسيدلے دوی ته
وړاندې څوک ويرونکے نهٔ دے راغلے کيدے شی چه هغوئ (ستا) نصيحت قبول کړی او که چرے دا خبره نهٔ وے چه به دوئ

مُّصِيبَةٌۢ بِمَا قَدَّمَتْ اَيْدِيهِمْ فَيَقُولُوا رَبَّنَا

څهٔ مصيبت | په سبب دَ هغې چه | وړاندې ليږلے دے | لاسونو دَ دوی | پس دوی به ووائی | اے زمونږه ربه!

بانې به دَ خپلو عملونو دَ لاسه مصيبت راغلے وو ، نو بيا به ئے دا وينا کانے کولے چه اے زمونږه ربه!

لَوْلَآ اَرْسَلْتَ اِلَيْنَا رَسُولًا فَنَتَّبِعَ اٰيٰتِكَ وَنَكُونَ

ولے راونهٔ ليږلو تا | زمونږ طرف ته | څوک رسول | چه پيروی کړے مونږ | ستا دَ آيتونو | او شوے وے مونږ

تا مونږ ته (په دنيا کښے) ولے رسول راونهٔ ليږلو چه مونږ ستا په حکمونو عمل کړے وے ، او مؤمنان

مِنَ الْمُؤْمِنِينَ ﴿٤٧﴾ فَلَمَّا جَآءَهُمُ الْحَقُّ مِنْ عِنْدِنَا قَالُوا

له مسلمانانو نه | بيا هر کله چه | راغے دوی ته | حق | زمونږ له طرف نه | نو دوی ووئيل

شوی وے . خو څهٔ وخت چه دے خلقو ته زمونږ دَ اړخ نه حق راورسيدو نو دوئ وائی چه

لَوْلَآ اُوتِيَ مِثْلَ مَآ اُوتِيَ مُوسٰى ۭ اَوَلَمْ يَكْفُرُوا بِمَآ

ولے ورنهٔ کړے شو | په شان دَ هغې چه | ورکړے شوے وو | موسیٰ ته | آيا دوی انکار ونهٔ کړو | دَ هغه څهٔ نه

دے نبی ته هم هغه څهٔ ولے ورنهٔ کړے شو چه موسیٰ ته ورکړے شوے وو، آيا څهٔ چه له دے نه وړاندې موسیٰ ته

اُوتِيَ مُوسٰى مِنْ قَبْلُ ۚ قَالُوا سِحْرٰنِ تَظٰهَرَا ۠ وقفة

چه ورکړے شوی وو | موسیٰ ته | له دے نه وړاندې | دوی ووئيل | چه هغه دواړه جادو دی | دَ يو بل موافق

ورکړے شوی وو نو دوئ دَ هغې نه انکار نهٔ وو کړے ؟ هغوئ چه دوئ وئيلی وو چه دا دواړه (قرآن او تورات) جادو دے دَ يو بل سره

وَقَالُوٓا اِنَّا بِكُلٍّ كٰفِرُونَ ﴿٤٨﴾ قُلْ فَاْتُوا بِكِتٰبٍ

او دوی ووئيل | بيشکه مونږ | دَ هر يو انکار کوونکی يُو | ووايه | پس راوړئ | يو کتاب

موافق او داوائی چه مونږ هم دَ دواړو نه انکاريان يُو . (اے پيغمبره!) ورته ووايه کهٔ چرے تاسو په خپله دعوی

مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ هُوَ اَهْدٰى مِنْهُمَآ اَتَّبِعْهُ

له طرفه دَ الله نه | چه هغه | زيات هدايت ورکوونکے وی | له دے دواړو نه | چه زهٔ پيروی وکړم دَ هغې

کښے رښتينی يئ نو تاسو دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه يو داسے کتاب راوړئ چه دَ دے دواړو کتابونو (قران او تورات)

اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِينَ ﴿٤٩﴾ فَاِنْ لَّمْ يَسْتَجِيبُوا لَكَ فَاعْلَمْ

کهٔ چرے يئ تاسو | رښتينی | بيا کهٔ چرے | دوی قبوله نهٔ کړی خبره | ستا | نو پوهه شه

نه په هدايت کښے زيات ښهٔ وی نو زهٔ به هم دَ هغې پيروی وکړم بيا کهٔ چرے دوی تا ته جواب درنهٔ کړے شی نو پوهه شه

اَنَّمَا يَتَّبِعُونَ اَهْوَآءَهُمْ ۭ وَمَنْ اَضَلُّ مِمَّنِ اتَّبَعَ

چه بيشکه | دوی پيروی کوی | دَ خپلو خواهشونو | او څوک | زيات ګمراه دے | له هغه چا نه | چه پيروی کوی

چه دوی صرف په خپلو خواهشاتو پسے روان دی ، او دَ هغه سړی نه به زيات ګمراه څوک وی چه دَ الله تعالیٰ

هَوٰىهُ بِغَيْرِ هُدًى مِّنَ اللّٰهِ ۭ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِي

دَ خپل خواهش | بغير | دَ هدايت نه | دَ الله دَ طرف نه | بيشکه الله | لاره نهٔ ښائی

دَ هدايت نه بغير دَ خپل خواهش پيروی کوی ، بيشکه الله تعالیٰ ظالمانو خلقو ته

الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ ۝٥٠ وَلَقَدْ وَصَّلْنَا لَهُمُ الْقَوْلَ لَعَلَّهُمْ

نو خلقوته | اوبیشکه | پرله پسے ولیږلو موږ | دوی دَپاره | (خپل) کلام | دَپاره دَدے چه دوی

نه ښائی۔ او خلقو دَپاره موږ خپل حکمونه پرله پسے لیږلو ۔ چه هغوئی ترے نه

يَتَذَكَّرُوْنَ ۝٥١ اَلَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِهٖ هُمْ بِهٖ

نصیحت حاصل کړی | هغه خلق چه | ورکړے دے موږ دوی ته | کتاب | له دِے نه وړاندِ | دوی | په دے

سبق واخلی۔ کومو خلقو ته چه موږ (دَ قرآن نه) وړاندِ کتاب ورکړو هغوئی په دے (قرآن) باندِ هم

يُؤْمِنُوْنَ ۝٥٢ وَاِذَا يُتْلٰى عَلَيْهِمْ قَالُوْٓا اٰمَنَّا بِهٖٓ

ایمان راوړی | اوهر کله چه | لوستلے شی | دوی ته | (نو) دوی وائی | ایمان راوړے دے موږ | په دے

ایمان لری او هر کله چه دوی ته قرآن لوستلے شی نو دوی وائی چه موږ په دے ایمان راوړے

اِنَّهُ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّنَآ اِنَّا كُنَّا مِنْ قَبْلِهٖ مُسْلِمِيْنَ ۝٥٣

بیشکه دا | ربښتیا دے | زموږ دَرب له طرف نه | بیشکه وُو موږ | له دِے نه وړاندِ | فرمانبردار

دے، دا زموږ دَرب له طرف نه برحق دے موږ خو (دَدِے دَراتلو نه) وړاندِ فرمانبردار یُو۔

اُولٰٓئِكَ يُؤْتَوْنَ اَجْرَهُمْ مَّرَّتَيْنِ بِمَا صَبَرُوْا وَيَدْرَءُوْنَ

هم داخلق دی | چه دوئی ته به ورکولے شی | دَدوی اجر | دوه ځله | ځکه چه | دوی صبر وکړو | او دوی لرے کوی

هم داخلق دی کومو نه چه به دَ دوی دَ صبر په وجه دوه ځله اجر ورکولے شی او دا خلق دَ نیکئ

بِالْحَسَنَةِ السَّيِّئَةَ وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ ۝٥٤ وَاِذَا

په ښیګړے سره | بدی | او له هغه څه نه | چه موږ ورکړل دوی ته | خرڅ کوی | او هر کله چه

په ذریعه بدی لرے کوی او څه چه موږ دوی ته ورکړی دی له هغے نه خرڅ کوی۔ او هر کله چه

سَمِعُوا اللَّغْوَ اَعْرَضُوْا عَنْهُ وَقَالُوْا لَنَآ اَعْمَالُنَا

دوی اوُری | فضول خبره | نو مخ واړوی | له هغے نه | او وائی چه | موږ دَپاره | زموږ عملونه دی

عبث خبره واوُری نو مخ ترے نه وګرځوی او وائی چه زموږ عملونه زموږ دَپاره او

وَلَكُمْ اَعْمَالُكُمْ ز سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ ز لَا نَبْتَغِى الْجٰهِلِيْنَ ۝٥٥

او تاسو دَپاره | ستاسو عملونه دی | سلام دے | په تاسو باندِ | موږ نهٔ غواړو | جاهلان

ستاسو عملونه تاسو دَپاره دی، زموږ له طرف نه په تاسو سلام دے، موږ دَ جاهلانو (ملګرتیا) نهٔ غواړو۔

اِنَّكَ لَا تَهْدِىْ مَنْ اَحْبَبْتَ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يَهْدِىْ مَنْ

بیشکه ته | هدایت نهٔ شے کولے | چا ته چه ستا خوښه وی | او لیکن | الله | لاره ښائی | چا ته چه

اے پیغمبره!) چا ته چه ته غواړے (په خپل خواهش سره) هدایت نهٔ شے کولے خو الله تعالیٰ چه چا ته غواړی نو

يَّشَآءُ ج وَهُوَ اَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِيْنَ ۝٥٦ وَقَالُوْٓا اِنْ نَّتَّبِعِ

هغه غواړی | او هغه | ښهٔ پوهه دے | په لاره موندونکو | او دوی وائی | که چرے | موږ پیروی وکړو

هدایت ورته کوی او هدایت قبلوونکی هغهٔ ته په ښهٔ شان معلوم دی او دوئی وائی چه که موږ تا سره په دے

الْهُدٰى مَعَكَ نُتَخَطَّفْ مِنْ اَرْضِنَا ؕ اَوَلَمْ نُمَكِّنْ

دَ هدايت | تاسره | نو مونږ به وتښتولے شو | له خپلے زمکے نه | آيا ځائے نهٔ دے ورکړے مونږ

هدايت روان شو ، نو دَ خپل ملک نه به وشړلے شو ، آيا مونږ دوئ له دَ

لَهُمْ حَرَمًا اٰمِنًا يُّجْبٰۤى اِلَيْهِ ثَمَرٰتُ كُلِّ شَيْءٍ رِّزْقًا

دوی ته | دَ امن والا په حرم کښے | چه راسولے شي دَدے طرف ته | ميوے | دَ هر قسم | روزی

امن او امان په حرم کښے بنيے مضبوطے کړی نهٔ دی ، کوم ځائے نه چه دَ هر قسم ميوے رسولے شي داز مونږ له

مِّنْ لَّدُنَّا وَلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿٥٧﴾ وَكَمْ اَهْلَكْنَا

زمونږ له طرف نه | او ليکن | اکثر له دوی نه | نهٔ پوهيږی | او څومره هلاک کړل مونږ

طرف نه دَ دوی رزق دے خو په دوی کښے اکثر خلق په دے خبره نهٔ پوهيږی ۔ او مونږ دلسے ډير کلی تباه

مِنْ قَرْيَةٍۭ بَطِرَتْ مَعِيْشَتَهَا ۚ فَتِلْكَ مَسٰكِنُهُمْ

کلی | چه غرور به ئے کولو | په خپل گزران | پس دا دی | کوروته دَ دوی

کړل چه په خپلو سامانونو بانديٖ ځان ته غاوره وو نو دا دَ دوی (تباه شوی) کوروته (ستاسو په وړاندي) دی

لَمْ تُسْكَنْ مِّنْۢ بَعْدِهِمْ اِلَّا قَلِيْلًا ؕ وَكُنَّا نَحْنُ الْوٰرِثِيْنَ ﴿٥٨﴾

(چه) نهٔ دی آباد شوی | ورو ستو له دوی نه | مگر لږ | او شو هم مونږ | وارثان

چه دَدے خلقو نه پس ډير کم آباد شوی دی۔ او (آخر) هم مونږ ئے وارثان شو۔

وَمَا كَانَ رَبُّكَ مُهْلِكَ الْقُرٰى حَتّٰى يَبْعَثَ فِيْۤ اُمِّهَا

او نهٔ دے | ستا ربّ | هلاکوونکے | دَ کلو | ترڅو چه | راؤليږی | په مرکز دَ هغے کښے

او (اے پيغمبره!) ستا رب تر هغے پورے کلی نهٔ تباه کوی ترڅو چه دَ هغے په مرکز کښے څوک پيغمبر

رَسُوْلًا يَّتْلُوْا عَلَيْهِمْ اٰيٰتِنَا ۚ وَمَا كُنَّا مُهْلِكِي الْقُرٰۤى

څوک پيغمبر | چه تلاوت کوی | دوی ته | زمونږ دَ آيتونو | او نهٔ يُو مونږ | هلاکوونکی | دَ کلو

راؤنهٔ ليږی چه زمونږ آيتونه ور ته ولولی ، او مونږ هيڅ يو کلے نهٔ تباه کوو مگر صرف په دے

اِلَّا وَاَهْلُهَا ظٰلِمُوْنَ ﴿٥٩﴾ وَمَاۤ اُوْتِيْتُمْ مِّنْ شَيْءٍ

مگر | دا چه اوسيدونکی دَ هغے | ظالمان وی | او هر هغه څهٔ | چه درکړے شول تاسو ته | له څهٔ څيز نه

صورت کښے چه هرکله دَ هغے اوسيدونکی نافرمانی اختيار کړی او تاسو له چه څهٔ درکړے شوی دی هغه دَ

فَمَتَاعُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَزِيْنَتُهَا ۚ وَمَا عِنْدَ اللّٰهِ خَيْرٌ

پس (هغه) سامان دے | دَ ژوند | دَ دُنيا | او ښائست دَدے | او هغه څهٔ | چه دَ الله سره دی | هغه ښهٔ دی

دُنيا دَ ژوند سامان او دَ دے زيب و زينت دے ۔ او څهٔ چه دَ الله تعالیٰ سره دی هغه ډير ښهٔ

وَّاَبْقٰى ؕ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ﴿٦٠﴾ اَفَمَنْ وَّعَدْنٰهُ وَعْدًا حَسَنًا

او باقی پاتے کيدونکی | پس آيا تاسو عقل نهٔ لرئ ؟ | نو آيا هغه څوک | چه وعده کړے دَ مونږ دَ هغهٔ سره | وعده | ښه

او باقی پاتے کيدونکی دی آيا تاسو خلق نهٔ پوهيږئ ؟ آيا هغه څوک چه مونږ ورسره ښه وعده کړے ده

فَهُوَ لَاقِيهِ كَمَنْ مَّتَّعْنٰهُ مَتَاعَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا
بیا هغه | دهٔ ته ملاویدونکے دهٔ | په شان د هغه کس دے | چه ورکړو مونږ دهٔ ته | سامان | د ژوند د دُنیا
په هغه به ئے خامخا بیا مومی د هغه چا په شان کیدے شی کوم له چه مونږ د دنیا د ژوند سامان ورکړے دے

ثُمَّ هُوَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ مِنَ الْمُحْضَرِينَ ٦١ وَيَوْمَ يُنَادِيهِمْ
بیا به دے وی | په ورځ | د قیامت | له حاضر کړے شوو نه | او په کومه ورځ چه | هغه آواز به ورکړی دوی ته
او بیا به د قیامت په ورځ (د دوزخ) په حاضرانو کښے شامل وی ؟ او په هغه ورځ به الله تعالیٰ ورته آواز وکړی

فَيَقُولُ أَيْنَ شُرَكَآءِيَ الَّذِينَ كُنْتُمْ تَزْعُمُونَ ٦٢ قَالَ
بیا به وُفرمائی | کوم ځائے دی | زما (هغه) شریکان | د کوم چه | به تاسو گمان کولو ؟ | وُبه وائی
او تپوس به وُکړی چه زما هغه شریکان څهٔ شول چه تاسو به شریک گڼړل ؟ نو په چا باندِ چه

الَّذِينَ حَقَّ عَلَيْهِمُ الْقَوْلُ رَبَّنَا هٰٓؤُلَآءِ الَّذِينَ
هغه کسان | چه ثابت شو | په هغوئی باندِ | حکم (د عذاب) | اے زمونږه ربه! | دا هغه خلق دی | کوم چه
د الله تعالیٰ عذاب ثابت شوے وی هغوئی به ووائی اے زمونږه ربه ! هم دا هغه خلق دی کوم چه مونږ

أَغْوَيْنَا ج أَغْوَيْنٰهُمْ كَمَا غَوَيْنَا ج تَبَرَّأْنَآ إِلَيْكَ
مونږ گمراه کړی دی | مونږ گمراه کړی دی دوی | لکه څنگه چه | گمراه شوی وُو مونږ | مونږ بیزاره کیږو (له دوئی) | طرف ستا ته
بےلارے کړی وو، لکه څنگه چه مونږ خپله بےلارے وُو د غشان مونږ دوئی گمراه کړل اوس مونږ ستا په وړاندِ د دوئی نه بیزاره یُو

مَا كَانُوٓا إِيَّانَا يَعْبُدُونَ ٦٣ وَقِيلَ ادْعُوا شُرَكَآءَكُمْ
نهٔ وُو دوی | چه زمونږ | عبادت ئے کولے | او وُبه وئیلے شی | راوُبلئ | خپل شریکان
دوئی خو به زمونږ عبادت نهٔ کولو۔ او (مشرکانو ته به) ووئیلے شی چه خپل شریکان راوُبلئ نو دوئی

فَدَعَوْهُمْ فَلَمْ يَسْتَجِيبُوا لَهُمْ وَرَأَوُا الْعَذَابَ ج لَوْ
پس دوئی به ئے راوُبلی | نو هغوئی به جواب نهٔ ورکوی | دوئی ته | او دوئی به ووینی | عذاب | اے کاش!
به ئے راوُبلی خو هغوئی به هیڅ جواب ورنهٔ کړی، او دوئی به (په خپلو سترگو) عذاب وُوینی، کاش!

أَنَّهُمْ كَانُوا يَهْتَدُونَ ٦٤ وَيَوْمَ يُنَادِيهِمْ فَيَقُولُ مَاذَآ
چه دوئی | وے | سمه لار موندونکی | او په کومه ورځ | چه هغه آواز وُکړی دوی ته | بیا به وُفرمائی | چه څهٔ
چه دوئی په سمه لار روان راغلی وے۔ او په کومه ورځ چه (الله تعالیٰ) دوئی راوغواړی او تپوس وکړی چه تاسو

أَجَبْتُمُ الْمُرْسَلِينَ ٦٥ فَعَمِيَتْ عَلَيْهِمُ الْأَنْبَآءُ يَوْمَئِذٍ
جواب ورکړے وو تاسو | پیغمبرانو ته؟ | پس بند به شی | په دوی باندِ | خبرونه | په دغه ورځ
پیغمبرانو ته څهٔ جواب ورکړے وُو ؟ نو په دغه ورځ به د هغوئی ټول جوابونه هیر شی او په خپل

فَهُمْ لَا يَتَسَآءَلُونَ ٦٦ فَأَمَّا مَنْ تَابَ وَءَامَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا
پس دوئی به | د یو بل نه تپوس نهٔ شی کولے | خو څوک چه | توبه وکړی | او ایمان راوُړی | او عملونه وُکړی | نیک
مینځ کښے به د یو بل نه تپوس هم نهٔ شی کولے۔ خو څوک چه توبه وُباسی او ایمان راوُړی او نیک عملونه کوی

فَعَسٰۤى اَنْ يَّكُوْنَ مِنَ الْمُفْلِحِيْنَ ﴿٦٧﴾ وَرَبُّكَ يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ

نو اُمید دے | چه وی به دے | له خلاصی موندونکو نه | او ستا رب | پیدا کوی | هغه څه چه وُغواړی

نو اُمید دے چه دغه خلق به کامیابه شی ـ او ستا رب چه څه غواړی ـ هغه پیدا کوی

وَيَخْتَارُ ؕ مَا كَانَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ ؕ سُبْحٰنَ اللّٰهِ وَتَعٰلٰى

او (څه چه) هغه خوښوی | نشته دے | دَ دوئ | اختیار | پاک دے | الله | او ډیر لوړ دے

او (هم هغه په کښے) خوښوی ، دَ دوئ هیڅ اختیار نشته ـ الله تعالیٰ پاک دے او دَ دوئ دَ شریکانو

عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ﴿٦٨﴾ وَرَبُّكَ يَعْلَمُ مَا تُكِنُّ صُدُوْرُهُمْ وَمَا

له هغه څه نه | چه شریکوی ئے دوی | او ستا رب | پوهیږی | په هغه څه | چه پټوی ئے | دَ دوی سینے | او په هغه څه

نه ډیر اوچت دے ـ او ستا رب ته ټول څیزونه معلوم دی کوم چه دَ دوئ په زړونو کښے پټ پراته دی او څه چه

يُعْلِنُوْنَ ﴿٦٩﴾ وَهُوَ اللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ؕ لَهُ الْحَمْدُ

چه دوی ئے ښکاره کوی | او هم دے الله دے | نشته څوک بل معبود | سیوا دَ ده نه | ده دَ پاره دی ټول تعریفونه

دوئ ښکاره کوی او الله هغه ذات دے دَ کوم نه سیوا چه بل معبود نشته ، په دنیا او آخرت دواړو

فِى الْاُوْلٰى وَالْاٰخِرَةِ ۫ وَلَهُ الْحُكْمُ وَاِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ﴿٧٠﴾ قُلْ

په دُنیا کښے | او په آخرت (کښے) | او هم دَ ده دے حکم | او دَ ده طرف ته به | بیرته کرځولے شئ | دُ وایه

کښے هم دَ هغهٔ تعریف دے ، او حکم صرف دَ هغهٔ چلیږی او تاسوله هم دَ هغهٔ طرف ته واپس تلل دی (اے نبی!) ته دا

اَرَءَيْتُمْ اِنْ جَعَلَ اللّٰهُ عَلَيْكُمُ الَّيْلَ سَرْمَدًا اِلٰى يَوْمِ

آیا لیدلی دی تاسو | که چیرے | کړی | الله | په تاسو باندِ | شپه | همیشه دَ پاره | تر ورځے

ووایه چه دا خو راته وښایئ چه که الله تعالیٰ دربانِ همیشه تر قیامته پورے نوره شپه جوړه

الْقِيٰمَةِ مَنْ اِلٰهٌ غَيْرُ اللّٰهِ يَاْتِيْكُمْ بِضِيَآءٍ ؕ اَفَلَا

دَ قیامت | نو څوک معبود دے | دَ الله نه سیوا | چه راولی تاسوله | رڼرا | پس آیا نهٔ

کړی نو دَ الله تعالیٰ نه سیوا بل څوک داسے معبود دے چه تاسوله رڼرا درکړے شی ، نو آیا تاسو

تَسْمَعُوْنَ ﴿٧١﴾ قُلْ اَرَءَيْتُمْ اِنْ جَعَلَ اللّٰهُ عَلَيْكُمُ النَّهَارَ

آوری تاسو | دُ وایه | آیا کتلی دی تاسو | که چیرے کړی | الله | په تاسو باندِ | ورځ

نهٔ آورئ ؟ (بیا) ورته ووایه چه دا خو راته وښایئ چه که الله تعالیٰ دربانِ همیشه تر قیامته پورے

سَرْمَدًا اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ مَنْ اِلٰهٌ غَيْرُ اللّٰهِ يَاْتِيْكُمْ بِلَيْلٍ

همیشه دَ پاره | تر ورځے | دَ قیامت | نو څوک دے معبود | دَ الله نه سیوا | چه راولی تاسوله | شپه

ورځ جوړه کړی ، نو دَ الله تعالیٰ نه سیوا بل څوک داسے معبود دے چه تاسوله شپه

تَسْكُنُوْنَ فِيْهِ ؕ اَفَلَا تُبْصِرُوْنَ ﴿٧٢﴾ وَمِنْ رَّحْمَتِهٖ جَعَلَ لَكُمُ

چه تاسو آرام وکړئ | په هغے کښے | پس آیا تاسو نهٔ ګورئ ؟ | او په خپل رحمت سره | ده جوړه کړله | تاسو دَ پاره

راولی چه تاسو په کښے آرام وکړئ نو آیا تاسو ګورئ نه ؟ او دَ هغهٔ یوه مهربانی دا ده چه تاسو له

الَّيۡلَ وَالنَّهَارَ لِتَسۡكُنُوۡا فِيۡهِ وَلِتَبۡتَغُوۡا مِنۡ فَضۡلِهٖ

شپه | او ورځ | چه تاسو آرام وکړئ | په دے کښے | او د پاره د دے چه تاسو ولټوئ | د ده فضل (روزی)

شپه او ورځ دواړه جوړ کړل چه تاسو د شپے آرام وکړئ او (د ورځے) ځان له د هغهٔ مقرره کړے روزی ولټوئ

وَلَعَلَّكُمۡ تَشۡكُرُوۡنَ ﴿۷۳﴾ وَيَوۡمَ يُنَادِيۡهِمۡ فَيَقُوۡلُ اَيۡنَ شُرَكَآءِىَ

او د پاره د دے چه تاسو | شکر وکړئ | او په کومه ورځ چه | هغه آواز وکړی دوی ته | پس وبه فرمائی | کوم ځائے دی زما شریکان

او چه د هغهٔ شکر وباسئ - او په کومه ورځ چه الله تعالیٰ به ورته په اوچت آواز ووائی چه اوس زما هغه

الَّذِيۡنَ كُنۡتُمۡ تَزۡعُمُوۡنَ ﴿۷۴﴾ وَنَزَعۡنَا مِنۡ كُلِّ اُمَّةٍ شَهِيۡدًا

هغه چه | تاسو به ئے | گمان کولو | او مونږ به بهر راوباسو | له هر یو اُمّت نه | یو گواه

شریکان څهٔ شول کوم چه تاسو به گنړل ؟ او مونږ به د هر یو اُمت نه یو یو گواه بهر راوباسو -

فَقُلۡنَا هَاتُوۡا بُرۡهَانَكُمۡ فَعَلِمُوۡۤا اَنَّ الۡحَقَّ لِلّٰهِ

پس وبه وایو مونږ | راوړئ | خپل دلیل | پس دوی به پوهه شی | چه رښتینی خبره | د الله ده

نو بیا به ورته ووایو چه اوس خپل خپل دلیل راوړاندِ کړئ نو هغوئ به پوهه شی چه حقه خبره هم هغه ده چه الله تعالیٰ ویلے ده

ع ۱۵/۱۰ وَضَلَّ عَنۡهُمۡ مَّا كَانُوۡا يَفۡتَرُوۡنَ ﴿۷۵﴾ اِنَّ قَارُوۡنَ

او ورک به شی | له دوی نه | هغه څهٔ چه | له ځانه به دوی جوړول | بیشکه | قارون

او چلے جوړے کړے تولے دروغ خبرے به ترے نه هیرے شی ، بیشکه چه قارون د موسیٰ

كَانَ مِنۡ قَوۡمِ مُوۡسٰى فَبَغٰى عَلَيۡهِمۡ وَاٰتَيۡنٰهُ

وو | له قوم د موسیٰ نه | پس ده ظلم وکړو | په دوی باندِ | او مونږ ورکړے وے ده ته

د قوم سړے وو ، خو د خپل قوم په مقابله کښے غرور ئے شروع کړو ، او مونږ ورله

مِنَ الۡكُنُوۡزِ مَاۤ اِنَّ مَفَاتِحَهٗ لَتَنُوۡٓاُ بِالۡعُصۡبَةِ اُولِى الۡقُوَّةِ

خزانے | دومره چه | کنجیانے د هغے | درنے وے | په یو جماعت | طاقتور

دومره ډیرے خزانے ورکړے وے چه د هغے کنجیانے به د مضبوطو کسانو په روعه ډله باندِ درنے وے

اِذۡ قَالَ لَهٗ قَوۡمُهٗ لَا تَفۡرَحۡ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ الۡفَرِحِيۡنَ ﴿۷۶﴾

هرکله چه | وویئیل | ده ته | د ده قوم | چه مهٔ غاوره کیږه | بیشکه الله | نهٔ خوښوی | غاوره کسان

څهٔ وخت چه د ده قوم ده ته وویئیل چه غاوره کیږه مه یقیناً غاوره کسان د الله تعالیٰ خوښ نهٔ وی

وَابۡتَغِ فِيۡمَاۤ اٰتٰٮكَ اللّٰهُ الدَّارَ الۡاٰخِرَةَ وَلَا تَنۡسَ نَصِيۡبَكَ

او ولټوه | په هغه څهٔ کښے | چه درکړی دی تا ته الله | کور د آخرت | او مهٔ هیروه | حصه خپله

او الله تعالیٰ چه تا له کوم مال درکړی دی په هغے کښے د آخرت د پاره څهٔ عمل وکړه او د دنیا په مال کښے خپله برخه

مِنَ الدُّنۡيَا وَاَحۡسِنۡ كَمَاۤ اَحۡسَنَ اللّٰهُ اِلَيۡكَ وَلَا تَبۡغِ

له دنیا نه | او نیکی کوه | لکه څنگه چه | احسان کړے دے | الله | په تا | او مهٔ لټوه

(آخرت ته وړل) مهٔ هیروه او لکه چه الله تعالیٰ تا سره احسان کړے دے د غسے ته هم (د خلقو سره) احسانونه کوه او به ملک

الْفَسَادَ فِي الْأَرْضِ ۖ إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْمُفْسِدِينَ ﴿٧٧﴾ قَالَ
فساد | په زمکه کښې | بیشکه | الله | نهٔ خوښوی | فساد کوونکی | دهٔ ووئیل
کښې فساد و نه مهٔ خوروه، بیشکه فساد یان خلق دَ الله تعالیٰ خوښ نهٔ وی. قارون ووئیل
إِنَّمَا أُوتِيتُهُ عَلَىٰ عِلْمٍ عِندِي ۚ أَوَلَمْ يَعْلَمْ أَنَّ اللَّهَ
بیشکه | راکړے شوے دَے مانه دا | په هغه پوهه | چه ما سره دهٔ | آیا دے نهٔ پوهیدو | چه الله
چه دا (مالونه) خو مانه زما دَ علم (او زما دَ لیاقت) په وجه ملاؤ دی، آیا هغه په دے پوهه نهٔ شو چه
قَدْ أَهْلَكَ مِن قَبْلِهِ مِنَ الْقُرُونِ مَنْ هُوَ أَشَدُّ مِنْهُ قُوَّةً
هلاک کړی دی | وړاندِ له دهٔ | ډیرو اُمتونه | چه | هغه زیات سخت وو | له دهٔ نه | په قوت کښې
الله تعالیٰ دَ هغهٔ نه وړاندِ داسے ډیر اُمتونه تباه کړی دی چه دَ هغهٔ نه په زور کښې زیات ؤو
وَأَكْثَرُ جَمْعًا ۚ وَلَا يُسْأَلُ عَن ذُنُوبِهِمُ الْمُجْرِمُونَ ﴿٧٨﴾
او زیات ؤو | په جمع کښې | او تپوس به نهٔ شی کیدے | دَ دوی دَ ګناهونو په حقله | له مجرمانو نه
او ملګری ئے ډیر زیات وو، او له مجرمانو نه به دَ ګناهونو په حقله تپوس پښتنے نه هیڅ حاجت نهٔ وی.
فَخَرَجَ عَلَىٰ قَوْمِهِ فِي زِينَتِهِ ۖ قَالَ الَّذِينَ يُرِيدُونَ
بیا دے راووتلو | دَ خپل قوم په وړاندِ | په خپل پوره شان سره | ووئیل | هغه خلقو چه | غوښتلو ئے
نو (یوه ورځ) هغه په خپل پوره شان سره دَ خپل قوم په مخکښے راؤوتلو، نو خوک چه دَ دنیا طلب ګاردو هغوئ ووئیل
الْحَيَاةَ الدُّنْيَا يَا لَيْتَ لَنَا مِثْلَ مَا أُوتِيَ قَارُونُ
ژوند | دَ دُنیا | اے کاش! چه مونږ سره وے | په شان | دَ هغه څهٔ | چه ورکړی شوی دی | قارون ته
چه اے کاش! مونږ سره هم دَ غسے څیزونه موجود وے لکه چه قارون ته ورکړی شوی دی
إِنَّهُ لَذُو حَظٍّ عَظِيمٍ ﴿٧٩﴾ وَقَالَ الَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ وَيْلَكُمْ
بیشکه دے | نصیب والا دے | لوئے | او ووئیل | هغه خلقو | چا ته چه ورکړے شوے وو | علم | افسوس په تاسو
یقیناً دے خو ډیر خوش نصیبه دے. او خوک چه دَ علم خاوندان ؤو هغوئ ووئیل چه اے بد نصیبو
ثَوَابُ اللَّهِ خَيْرٌ لِّمَنْ آمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا ۚ وَلَا يُلَقَّاهَا
دَ الله ثواب (اجر) | ډیر ښه دے | هغه چا دَ پاره | چه ایمان ئے راؤړو | او عمل ئے ؤکړو | نیک | او نهٔ ملاویږی هغه (ثواب)
چه دَ الله تعالیٰ ثواب ډیر زیات غوره دے کوم چه دَ هغه کسانو نصیب کیږی چه ایمان راؤړی او نیک کارونه کوی او دا خبره
إِلَّا الصَّابِرُونَ ﴿٨٠﴾ فَخَسَفْنَا بِهِ وَبِدَارِهِ الْأَرْضَ فَمَا كَانَ
مګر | صبر کوونکوته | نو مونږ ورښخ کړل | دے | او دَ دهٔ کور | په زمکه کښې | پس نهٔ وهٔ
هغه چا ته بښودے شی چه صبر کوی. نو مونږ قارون او دَ هغه ما نړئ (دوا ړه) په مزکه کښے ورښخ کړل، نو بیا داسے یو
لَهُ مِن فِئَةٍ يَنصُرُونَهُ مِن دُونِ اللَّهِ وَمَا كَانَ
دَ دهٔ دَ پاره | هیڅ یوه ډله | چه دَ دهٔ مدد ئے کړے وے | سیوا | دَ الله نه | او نهٔ وو دے
ټولے نهٔ وو چه دَ الله تعالیٰ په مقابله کښے ئے دَ دهٔ مدد کړے وے، او نهٔ هغهٔ په خپله

مِنَ الْمُنْتَصِرِيْنَ ﴿۸۱﴾ وَاَصْبَحَ الَّذِيْنَ تَمَنَّوْا مَكَانَهٗ

له انتقام اخستونکونه | او صبا کړه | هغه خلقو چه | چه ارمان ئے کولو | د ده د مرتبے

خپل ځان بچ کړے شو۔ او کوم خلق چه پرون پوړے د هغهٔ په شان د جوړیدلو

بِالْاَمْسِ يَقُوْلُوْنَ وَيْكَاَنَّ اللّٰهَ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ

پرون | ووئیل | (چه) هائے افسوس | الله | فراخه کوی | رزق | چا د پاره

ارمانیان ؤو ووئیل چه رښتیا دی چه هم الله تعالیٰ په خپلو بندګانو کښے د چا په حقله غواړی

يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ وَيَقْدِرُ ۚ لَوْلَآ اَنْ مَّنَّ اللّٰهُ عَلَيْنَا

چه غواړی | له خپلو بندګانونه | او کموی | که چرے احسان نهٔ کولے | الله | په مونږ باندے

روزی ورله فراخه کوی او (چا د پاره چه غواړی) کموی۔ که چرے په مونږ باندے د الله تعالیٰ احسان نهٔ وے نو مونږ

لَخَسَفَ بِنَا ؕ وَيْكَاَنَّهٗ لَا يُفْلِحُ الْكٰفِرُوْنَ ﴿۸۲﴾ تِلْكَ الدَّارُ ع ۸ ۱۱

نو هغهٔ به مونږ ورښخ کړی ووو | هائے افسوس! | چه نهٔ کامیا بیږی | کافران خلق | دا | کور

به هم په زمکه کښے ورښخ کړی ؤو رښتیا دی چه کافران نهٔ کامیا بیږی۔ دا د آخرت کور مونږ هغه خلقو

الْاٰخِرَةُ نَجْعَلُهَا لِلَّذِيْنَ لَا يُرِيْدُوْنَ عُلُوًّا فِي الْاَرْضِ

د آخرت | مونږ مقرر د ؤو دا | هغه خلقو د پاره | چه نهٔ غواړی | لوئی | په زمکه کښے

د پاره مقرر ساتلے دے چه په زمکه کښے تکبر او فساد کول نهٔ

وَلَا فَسَادًا ؕ وَالْعَاقِبَةُ لِلْمُتَّقِيْنَ ﴿۸۳﴾ مَنْ جَآءَ بِالْحَسَنَةِ

او نهٔ فساد | او انجام (ښهٔ) | پرهیزګارانو د پارهٔ دے | څوک چه | راغے | په نیکئ سره

غواړی ، او آخرت خو هم د پرهیزګارانو ښهٔ دے۔ څوک چه (د الله دربارته) نیکی راوړی

فَلَهٗ خَيْرٌ مِّنْهَا ۚ وَمَنْ جَآءَ بِالسَّيِّئَةِ فَلَا يُجْزَى

نو هغهٔ د پارهٔ دی | بهتر | له هغې نه | او چا چه | راوړله | بدی | نو بدله به نهٔ ملاویږی

نو هغهٔ ته به د خپل عمل غوره بدله ورکولے شی ، او څوک چه بدی ځان سره راوړی نو بدکاروکسانو ته

الَّذِيْنَ عَمِلُوا السَّيِّاٰتِ اِلَّا مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۸۴﴾ اِنَّ الَّذِيْ

هغه خلقو ته | چه عملونه ئے وکړل بد | مګر موافق د هغه څهٔ | چه دوی به کول | بیشکه هغه (الله) چا چه

به فقط هغه هومره بدله ورکولے شی څومره بدکارونه چه به هغوئ کول۔ یقیناً هغه الله چا چه په تا

فَرَضَ عَلَيْكَ الْقُرْاٰنَ لَرَآدُّكَ اِلٰى مَعَادٍ ؕ قُلْ رَّبِّيْٓ

فرض کړو | په تا باندے | قرآن | خامخا واپس ګرځونکے دے تا لره | طرف د واپس کیدو ځائے ته | ووایه | زما رب

باندے (د) قرآن (حکمونه او عمل) فرض کړے دے هم هغه به تا (اصلی) مقام ته واپس وګرځوی۔ (اے نبی!) ته ورته ووایه

اَعْلَمُ مَنْ جَآءَ بِالْهُدٰى وَمَنْ هُوَ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴿۸۵﴾

ښهٔ پوهه دے | چه څوک | راغے | په هدایت سره | او څوک دے | په ګمراهئ کښے | ښکاره

چه زما رب ښهٔ پوهیږی چه چا ښتینے دین راوړے دے او څوک په ښکاره ګمراهئ کښے پروت دے۔

وَمَا كُنْتَ تَرْجُوٓا اَنْ يُّلْقٰٓى اِلَيْكَ الْكِتٰبُ اِلَّا رَحْمَةً
او تا اُمید نهٔ لرلو | چه نازل به کړے شي | ستا طرف ته | کتاب | مګر په رحمت
اوستا خو دا اُمید نهٔ وو چه دا کتاب به در باندې نازل شي ، دا خو صرف ستا دَ

مِّنْ رَّبِّكَ فَلَا تَكُوْنَنَّ ظَهِيْرًا لِّلْكٰفِرِيْنَ ﴿٨٦﴾ وَلَا يَصُدُّنَّكَ
ستا دَ ربّ | پس هیڅکله مهٔ کیږه ته | مددګار | دَ کافرانو | او دوئ دِ تا منع نهٔ کړي
رب رحمت وو نو ته هیچرے دَ دے کافرانو پشت پناه مهٔ کوه - او هر کله چه تا ته دَ الله

عَنْ اٰيٰتِ اللّٰهِ بَعْدَ اِذْ اُنْزِلَتْ اِلَيْكَ وَادْعُ اِلٰى رَبِّكَ
دَ الله دَ آیتونو نه | پس له هغے نه | چه هر کله نازل کړے شول | ستا طرف ته | او دعوت ورکوه | طرف دَ ربّ خپل ته
حکمونه راورسیدل اُوس ته خیال سا ته چه دوئ ترے نه تا منع نهٔ کړے شي او دَ خپل رب طرف ته بلنه کوه

وَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿٨٧﴾ وَلَا تَدْعُ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ
او ته هرګز مهٔ کیږه | له مشرکانو نه | او ته مهٔ بله | دَ الله سره | معبود بل
او په مشرکانو کښے مهٔ شامليږه - او دَ الله تعالیٰ سره هیچرے دَ بل معبود بلنه مهٔ کوه

لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ كُلُّ شَيْءٍ هَالِكٌ اِلَّا وَجْهَهٗ
نشته دے څوک بل معبود | بے له دهٔ نه | هر څیز | هلاکیدونکے دے | دَ دهٔ دَ مخ (ذات) نه سیوا
دَ هغهٔ نه سیوا بل معبود نشته ، هر څیز فنا کیدونکے دے دَ هغهٔ نه سیوا

لَهُ الْحُكْمُ وَاِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ﴿٨٨﴾
هم دَ دهٔ دے | حکم | او هم دَ دهٔ طرف ته | به تاسو واپس کیږئ
حکم صرف دَ هغهٔ چلیږي او تاسو ټول به ورته خامخا واپس کیږئ۔

وقف لازم

سُوْرَةُ الْعَنْكَبُوْتِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | تِسْعٌ وَّسِتُّوْنَ اٰيَةً وَّسَبْعُ رُكُوْعَاتٍ
سوره عنکبوت په مکه کښے نازل شو | (شروع) دَ الله په نوم چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے | په دے کښے (٦٩) آیتونه او (٧) رکوع کانې
دَ الله په نوم شروع کوم چه لوئے مهربان دَ ډیر زیات رحم خاوند دے

الٓمّٓ ﴿١﴾ اَحَسِبَ النَّاسُ اَنْ يُّتْرَكُوْٓا اَنْ يَّقُوْلُوْٓا اٰمَنَّا
الٓمّٓ - | آیا خیال وکړو | خلقو | چه دوی به پریښودے شي | چه دوئ وویل | چه مونږ ایمان راوړو
الٓمّٓ - آیا دَ دے خلقو دا خیال دے چه په دومره قدرے وینا به پریښودلے شئ چه مونږ ایمان راوړے دے

وَهُمْ لَا يُفْتَنُوْنَ ﴿٢﴾ وَلَقَدْ فَتَنَّا الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ
او دوئ به | نهٔ شي آزمائیلے | او البته مونږ آزمیښت وُکړو | په هغه خلقو چه | له دوی نه وړاندې وو
او دَ دوئ به نور آزمیښت نهٔ کیږي ؟ او مونږ خو دَ دوئ نه وړاندې خلق هم آزمائیلي دي

فَلَيَعْلَمَنَّ اللّٰهُ الَّذِيْنَ صَدَقُوْا وَلَيَعْلَمَنَّ الْكٰذِبِيْنَ ﴿٣﴾
نو ضرور به معلوم (ښکاره) کړي | الله | هغه خلق چه | رښتیائے وُوئیل | او ضرور به معلوم کړي | دروغ ویونکي
نو الله تعالیٰ به خامخا رښتیني او دروغژن خلق (جدا جدا) ښکاره کوي

أَمْ حَسِبَ الَّذِينَ يَعْمَلُونَ السَّيِّاٰتِ أَنْ يَّسْبِقُوْنَا ؕ

آیا گمان وُکړو | هغه خلقو چه | کوی | بد کارونه | چه وړاندې به شی دوی په مونږ باندې

آیا څوک چه بد کارونه کوی دَ هغوئ دا خیال دے چه زمونږ نه به چرته بل خوا وُتښتی؟

سَآءَ مَا يَحْكُمُوْنَ ۴ مَنْ كَانَ يَرْجُوْا لِقَآءَ اللّٰهِ

بَدْ دی | هغه څۀ چه | دوی ئے فیصله کوی | څوک چه | اُمید لری | الله سره دَ ملاقات

ډیره غلطه اندازه ده چه دوئ ئے لګوی۔ څوک چه دَ الله تعالیٰ سره دَ ملاقات اُمید ساتی

فَاِنَّ اَجَلَ اللّٰهِ لَاٰتٍ ؕ وَهُوَ السَّمِيْعُ

نو بیشکه | مقرر شوے وخت | دَ الله | خامخا راتلونکے دے | او هغه | آوریدونکے

نو (دې پوهه دِ شی چه) دَ الله تعالیٰ مقرر شوے وخت ضرور راتلونکے دے او هغه هر څۀ آوری په

الْعَلِيْمُ ۵ وَمَنْ جٰهَدَ فَاِنَّمَا يُجَاهِدُ لِنَفْسِهٖ ؕ

پوهه دے | او څوک چه | جهاد کوی | نو بیشکه | دے جهاد کوی | دَ خپل ځان دَ پاره

هر څۀ پوهه دے۔ او څوک چه محنت کوی نو هغه دَ خپل ځان (دَ فائدے) دَ پاره محنت کوی۔

اِنَّ اللّٰهَ لَغَنِىٌّ عَنِ الْعٰلَمِيْنَ ۶ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

بیشکه | الله | بے نیازه دے | دَ عالمونو نه | او هغه خلقو | چه ایمان ئے راوړو

یقیناً الله تعالیٰ دَ ټول کائنات نه بے پروا دے۔ او هغه خلق چه ایمان ئے راوړو

وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَنُكَفِّرَنَّ عَنْهُمْ سَيِّاٰتِهِمْ

او عمل ئے وکړو | نیک | مونږ به ضرور لرے کړو | له دوئ نه | بدیانے دَ دوئ

او هغوی نیک عملونه وکړل ، مونږ به دَ هغوئ ګناهونه دَ هغوئ نه لرے کړو

وَلَنَجْزِيَنَّهُمْ اَحْسَنَ الَّذِىْ كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ۷ وَوَصَّيْنَا

او مونږ به ضرور جزا ورکړو دوئ ته | ډیره ښهٔ | دَ هغے (عمل) | چه دوی به کولو | او حکم وکړو مونږ

او کوم نیک عملونه چه هغوئ کول دَ هغے ډیره ښهٔ بدله به ورکړو ، او مونږ انسان ته

الْاِنْسَانَ بِوَالِدَيْهِ حُسْنًا ؕ وَاِنْ جٰهَدٰكَ لِتُشْرِكَ

انسان ته | خپل مور پلار سره | دَ نیکئ کولو | او که چرے | دوی زور راچوی په تا | چه ته شریک کړے

دَ مور پلار سره دَ ښهٔ سلوک حکم ورکړے دے او (دا حکم مو هم ورکړے دے چه) که هغوئ دواړه تا مجبوره کړی

بِىْ مَا لَيْسَ لَكَ بِهٖ عِلْمٌ فَلَا تُطِعْهُمَا ؕ اِلَىَّ مَرْجِعُكُمْ

ما سره | هغه څۀ چه | نشته دے | تا ته | دَ هغے | څۀ علم | نو دَ دوئ اطاعت مهٔ کوه | زما طرف ته | تاسو له واپس راتلل دی

چه ته ما سره څوک شریک جوړ کړے دَ کوم چه تا سره علم نشته نو دَ هغوئ دا خبره مهٔ منه تاسو ټول به ما ته پسته راځئ

فَاُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ۸ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا

نو زهٔ به تاسو ته وُښایم | هغه څۀ | چه تاسو به کول | او کوم خلق چه | ایمان راوړی | او وے کړل

نو زهٔ به تاسو ته خپلو کړو کارونو خبر ، دُم ۔ او څوک چه ایمان راوړی او دَ نیکئ کارونه

الصّٰلِحٰتِ لَنُدْخِلَنَّهُمْ فِي الصّٰلِحِيْنَ ﴿٩﴾ وَمِنَ النَّاسِ مَنْ

نیک کارونه | مونږ به ضرور داخل کړو دوی | په نیکانو کښے | او ځنے له خلقو نه | هغه څوک دی

کوی ، نو مونږ به ئے ضرور په نیکانو کښے شامل کړو ، او ځنے خلق داسے دی چه وائی

يَّقُوْلُ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ فَاِذَآ اُوْذِيَ فِي اللّٰهِ جَعَلَ فِتْنَةَ

چه وائی | مونږ ایمان راوړو | په الله | بیا هر کله چه | تکلیف ورکړے شو | په (لاره د) الله کښے | (نو) وګڼے ګڼړل | تکلیف ورکول

مونږ په الله تعالیٰ باندے ایمان راوړے دے خو چه د الله تعالیٰ په لاره کښے ورته (لږ ډیر) تکلیف ورکړے شی نو

النَّاسِ كَعَذَابِ اللّٰهِ ؕ وَلَئِنْ جَآءَ نَصْرٌ مِّنْ رَّبِّكَ

د خلقو | په شان د عذاب د الله | او که چرے | راشی | څه مدد | ستا د رب له طرف نه

د خلقو د لاس تکلیف داسے وګڼړی لکه د الله تعالیٰ عذاب چه وی او که چرے ستا د رب له طرف نه (تا ته) امداد راورسی

لَيَقُوْلُنَّ اِنَّا كُنَّا مَعَكُمْ ؕ اَوَلَيْسَ اللّٰهُ بِاَعْلَمَ بِمَا

نو دوی به ضرور وائی | چه بیشکه مونږ وو | تاسو سره | آیا نه دے | الله | ښه پوهه | په هغه څه

نو (مومنانو ته) وائی چه مونږ خو تاسو سره وو آیا الله تعالیٰ ته هغه هر څه معلوم نه دی چه د

فِيْ صُدُوْرِ الْعٰلَمِيْنَ ﴿١٠﴾ وَلَيَعْلَمَنَّ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

چه په سینو کښے دی | د عالمونو | او ضرور به معلوم کړی | الله | هغه خلق | چه ایمان ئے راوړو

مخلوق په سینو کښے (پټ) دی ، او کوم خلقو چه ایمان راوړے دے الله تعالیٰ به ئے ضرور ښکاره کړی

وَلَيَعْلَمَنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ ﴿١١﴾ وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

او ضرور به معلوم کړی | منافقان (هم) | او وائی | هغه خلق | چه کافران دی | هغه خلقو ته | چه ایمان ئے راوړے دے

او کوم چه منافقان دی هغوی به هم ضرور ښکاره کړی. او کوم خلق چه کافران دی هغوی مومنانو ته وائی چه زمونږ

اتَّبِعُوْا سَبِيْلَنَا وَلْنَحْمِلْ خَطٰيٰكُمْ ؕ وَمَا هُمْ بِحٰمِلِيْنَ

چه تاسو پیروی وکړئ | زمونږ د لارے | او مونږ به اوچت کړو | ستاسو ګناهونه | او نه دی دوی | اوچتونکی

مسلک اختیار کړئ اوستاسو د ګناهونو پیټی زمونږ په ذمه شو ، حال دا دے چه دوی د هغوی له ګناهونو

مِنْ خَطٰيٰهُمْ مِّنْ شَيْءٍ ؕ اِنَّهُمْ لَكٰذِبُوْنَ ﴿١٢﴾ وَلَيَحْمِلُنَّ

له ګناهونو د هغوی نه | د څه شیز | بیشکه دوی | خو دروغژن دی | او خامخا به دوی اوچتوی

نه بخرے قدر له هم په ځان اخستے نه شی (بلکه) دوی سراسر دروغژن دی. او دوی به خپل پیټی هم

اَثْقَالَهُمْ وَاَثْقَالًا مَّعَ اَثْقَالِهِمْ ز وَلَيُسْئَلُنَّ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ

خپل بارونه | او بارونه | سره د بارونو خپلو | او ضرور به له دوی نه پښتنه کولے شی | په ورځ د قیامت

اوچت کړی وی او د خپلو سره نور پیټی هم ، او د قیامت په ورځ به ترے نه د دے

عَمَّا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ ﴿١٣﴾ع وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا نُوْحًا اِلٰى قَوْمِهٖ فَلَبِثَ ع ۱۳/۱۳

له هغه څه نه | چه دوی به دروغ جوړول | او بیشکه | مونږ ولیږلو | نوح | د ده د قوم طرف ته | نو دے پاتے شو

دروغو جوړولو په حقله ضرور تپوس کیږی. او مونږ نوح خپل قوم ته ولیږلو نو هغه په

فِيهِمْ اَلْفَ سَنَةٍ اِلَّا خَمْسِيْنَ عَامًا ؕ فَاَخَذَهُمُ الطُّوْفَانُ

په دوی کښے | زر کلونه | مگر | پنځوس | کاله (کم) | پس ونیول دوی | طوفان

کښے پنځوس کم زر کاله پاتے شو ، نو بیا هغوئ طوفان راونیول

وَهُمْ ظٰلِمُوْنَ ﴿۱۴﴾ فَاَنْجَيْنٰهُ وَاَصْحٰبَ السَّفِيْنَةِ وَجَعَلْنٰهَآ

او دوی | ظالمان وو | بیا مونږ نجات ورکړو ده ته | او کشتئ والو ته | او جوړه کړه مونږ دا

او دغه خلق ډیر ظالمان وو ، بیا مونږ هغه او په کشتئ کښے سواره ټول بچ کړل ، او دا واقعه مو د ټولے

اٰيَةً لِّلْعٰلَمِيْنَ ﴿۱۵﴾ وَاِبْرٰهِيْمَ اِذْ قَالَ لِقَوْمِهِ اعْبُدُوا اللّٰهَ

نخښه | د پاره د عالمونو | او ابراهیم | هر کله چه ده ووئیل | خپل قوم ته | چه عبادت کوئ | د الله

دنیا د پاره عبرت وګرځوله ۔ او ابراهیم مو ولیږلو چه خپل قوم ته ئے ووئیل چه د الله تعالی عبادت کوئ

وَاتَّقُوْهُ ؕ ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ﴿۱۶﴾ اِنَّمَا

او ویریږئ ده نه | دا | ډیره ښه ده | تاسو د پاره | که چرے | تاسو پوهیږئ ؟ | بیشکه

او د هغه نه ویره کوی ، دا خبره تاسو د پاره غوره ده که تاسو پوهیږئ ؟ تاسو الله تعالی

تَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اَوْثَانًا وَّتَخْلُقُوْنَ اِفْكًا ؕ اِنَّ الَّذِيْنَ

تاسو عبادت کوئ | سیوا | د الله نه | د بتانو | او تړئ تاسو | دروغ | بیشکه | هغه خلق چه

هیر کړے دے او د بتانو په عبادت پسے شوی یئ او د ځان نه دروغ تراشئ ، تاسو چه د الله تعالی

تَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ لَا يَمْلِكُوْنَ لَكُمْ رِزْقًا فَابْتَغُوْا

تاسو ئے بندګی کوئ | سیوا | د الله نه | دوی اختیار نه لری | تاسو د پاره | د رزق | پس تاسو ولټوئ

نه سیوا د نورو چا عبادت نو نه کوئ نو هغوئ تاسو له هیڅ روزی درکولے نه شی نو خپل رزق

عِنْدَ اللّٰهِ الرِّزْقَ وَاعْبُدُوْهُ وَاشْكُرُوْا لَهٗ ؕ اِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ﴿۱۷﴾

د الله سره | رزق | او عبادت وکړئ د ده | او شکر وکړئ | د ده | هم د ده طرفته | تاسو له واپس تلل دی

د الله تعالی سره ولټوئ او د هغه عبادت کوئ او د هغه شکر ادا کوئ او هغه ته به پسته ورځئ ۔

وَاِنْ تُكَذِّبُوْا فَقَدْ كَذَّبَ اُمَمٌ مِّنْ قَبْلِكُمْ ؕ وَمَا

او که چرے | دروغ گڼړئ تاسو | نو بیشکه دروغ گڼړلی وو | ډیرو امتونو | له تاسو نه وړاندې (هم) | او نه دی

او که چرے تاسو (حقه خبره) دروغ گڼړئ نو (دا څه نوے خبره نه ده) تاسو نه وړاندې هم ډیرو قومونو دروغ گڼړلے ده ، او د

عَلَى الرَّسُوْلِ اِلَّا الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ ﴿۱۸﴾ اَوَلَمْ يَرَوْا كَيْفَ يُبْدِئُ

په پیغمبر | مگر پیغام رسول | ښکاره | ایا نه دی کتلی دوی | چه څنګه | په اول ځل پیدا کوی

پیغمبر په ذمه خو بس خپل پیغام ښکاره رسول دی ۔ ایا دے خلقو ته معلومه نه ده چه الله تعالی څنګه په اول ځل

اللّٰهُ الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيْدُهٗ ؕ اِنَّ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرٌ ﴿۱۹﴾ قُلْ

الله | مخلوق | بیا به دوباره پیدا کړی دا | بیشکه دا | الله ته | اسان دی | ووایه

مخلوق پیدا کوی او بیا به ئے څنګه سره دوباره پیدا کوی ؟ دا کار الله تعالی ته ډیر اسان دے ۔ ووایه

سِيْرُوْا فِى الْاَرْضِ فَانْظُرُوْا كَيْفَ بَدَاَ الْخَلْقَ ثُمَّ اللّٰهُ

وګرځئ | په زمکه کښې | بیا وګورئ | چه څنګه | په اول ځل پیدا کړو | مخلوق | بیا به الله

چه په ملک کښې وګرځئ نو وګورئ چه الله تعالیٰ څنګه په اول ځل مخلوق پیدا کړے دے، بیا به هم الله

يُنْشِئُ النَّشْاَةَ الْاٰخِرَةَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ⑳

پیدا کړی | پیدا کول | په دویم ځل | بیشکه الله | په هر څیز باندې | قادر دے۔

مخلوق په دویم ځل پیدا کړی ، بیشکه الله تعالیٰ په هر څیز باندې قدرت لری

يُعَذِّبُ مَنْ يَّشَآءُ وَيَرْحَمُ مَنْ يَّشَآءُ ۚ وَاِلَيْهِ تُقْلَبُوْنَ ㉑

دے به عذاب ورکړی | چاله چه وغواړی | او رحم به وکړی | په چا چه وغواړی | او د دهٔ طرف ته به | تاسو بیرته ګرځولے شئ

هغه چاله چه غواړی عذاب ورکوی او چا باندې چه غواړی رحم کوی او هغهٔ ته به تاسو ټول بیرته ورځئ۔

وَمَآ اَنْتُمْ بِمُعْجِزِيْنَ فِى الْاَرْضِ وَلَا فِى السَّمَآءِ ۫ وَمَا

او نهٔ یئ | تاسو | عاجزکوونکی | په زمکه کښې | او نهٔ | په آسمان کښې | او نشته دے

او تاسو نهٔ په زمکه او نهٔ د آسمان د پاسه د هغهٔ مقابله کولے شئ ، او د الله تعالیٰ

ع ٢ ٩ ١٤ لَكُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ مِنْ وَّلِيٍّ وَّلَا نَصِيْرٍ ㉒ ع وَالَّذِيْنَ

تاسو د پاره | سیوا | د الله نه | څوک دوست | او نهٔ (څوک) مددګار | او کوم خلق چه

نه سیوا هیڅوک ستاسو کارساز او مددګار نشته ۔ او څوک چه د

كَفَرُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَلِقَآئِهٖۤ اُولٰٓئِكَ يَئِسُوْا مِنْ رَّحْمَتِيْ

منکر دی | د آیتونو | د الله | او د دهٔ د ملاقات | هم دا خلق | نا اُمیده شول | زما د رحمت نه

الله تعالیٰ د آیتونو او د هغهٔ د ملاقات نه انکار کوی ، دا سے خلق زما د رحمت نه نا اُمید دی

وَاُولٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ㉓ فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهٖۤ

او هم دے خلقو د پاره دے | عذاب | دردناک | پس نهٔ وو | جواب | د دهٔ د قوم

او هم دغه خلق دی چه دردناک عذاب ورله مقرر دے ۔ نو د ابراهیمؑ د قوم د طرف نه بس دا (یو)

اِلَّآ اَنْ قَالُوا اقْتُلُوْهُ اَوْ حَرِّقُوْهُ فَاَنْجٰىهُ اللّٰهُ مِنَ النَّارِ ؕ

مګر دا چه | دوی ووئیل | تاسو وُوژنئ دے | یا وُسوزوئ دے | پس خلاصے ورکړو دهٔ ته | الله | له اور نه

جواب وو چه دے مړ کړئ یا ئے وُسوزوئ مګر الله تعالیٰ هغه د اور د عذاب نه بچ کړو

اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ㉔ وَقَالَ اِنَّمَا اتَّخَذْتُمْ

بیشکه | په دے کښې | نخښے دی | د پاره د هغه قوم | چه ایمان راوړی | او دهٔ ووئیل | بیشکه تاسو نیولی دی

بیشکه چه په دِے کښې د مؤمنانو د پاره ډیرے نخښے دی۔ او ابراهیمؑ ووئیل چه تاسو د الله تعالیٰ

مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ اَوْثَانًا ۙ مَّوَدَّةَ بَيْنِكُمْ فِى الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ

سیوا | د الله نه | بتان | (د په وجه د) دوستیٔ | په خپل مینځ کښې | په ژوند د دنیا کښے

نه بغیر ځان له چه کوم بتان خوښ کړی دی نو دا ستاسو د دنیا د مینې محبت په وجه دی ،

ثُمَّ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ يَكْفُرُ بَعْضُكُمْ بِبَعْضٍ وَّيَلْعَنُ

بیا به | په ورځ | دَ قیامت | ځنې له تاسو نه | انکار کوی | دَ ځنو | او لعنت به کوی

بیا به دَ قیامت په ورځ دَ یو بل مخالف شئ ، او په یو بل به

بَعْضُكُمْ بَعْضًا ز وَّمَاْوٰىكُمُ النَّارُ وَمَا لَكُمْ

په تاسو کښې ځنې | په ځنو باندې | او ځلئے به ستاسو | دوزخ وی | او نهٔ (به وی) | تاسو دَ پاره

لعنتونه وایئ ، او ستاسو ټیکاونړه به دوزخ وی ، او هیڅوک به درسره

مِّنْ نّٰصِرِيْنَ ﴿٢٥﴾ قلے فَاٰمَنَ لَهٗ لُوْطٌ م وَقَالَ اِنِّيْ مُهَاجِرٌ

څوک مددګار | پس ایمان راوړو | په دهٔ | لوط | او وُئے وئیل | بیشکه زهٔ | هجرت کوونکے یم

امداد نهٔ کوئ ، نو لوط دَ هغهٔ تصدیق وکړو ، او ابراهیم ووئیل چه زهٔ دَ خپل رب دَ پاره وطن

اِلٰى رَبِّيْ ط اِنَّهٗ هُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿٢٦﴾ وَوَهَبْنَا لَهٗٓ اِسْحٰقَ

خپل رب طرف ته | بیشکه هم دے دے | غالب | دَ حکمت خاوند | او مونږ عطا کړل | دهٔ ته | اسحاق

پریږدم ، هغه ډیر زبردست دے دَ حکمتونو خاوند دے ـ او مونږ ورته (ځوئے) اسحاق او (نوسے)

وَيَعْقُوْبَ وَجَعَلْنَا فِيْ ذُرِّيَّتِهِ النُّبُوَّةَ وَالْكِتٰبَ

او یعقوب | او کیښودلو مونږ | دَ دهٔ په اولاد کښې | نبوت | او کتاب

یعقوب ورکړو ، او دَ هغهٔ په اولاد کښې مو دَ پیغمبرئ او دَ کتاب سلسله جاری وساتله

وَاٰتَيْنٰهُ اَجْرَهٗ فِي الدُّنْيَا ج وَاِنَّهٗ فِي الْاٰخِرَةِ

او ورکړو مونږ دهٔ ته | دَ دے اجر | په دنیا کښې | او بیشکه دے به | په آخرت کښې

او هغهٔ له مو په دُنیا کښې هم غټ اجر ورکړو ، او په آخرت کښې به (هم) په نیکانو

لَمِنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿٢٧﴾ وَلُوْطًا اِذْ قَالَ لِقَوْمِهٖٓ اِنَّكُمْ لَتَاْتُوْنَ

له صالحانو نه وی | او (مونږ ولیږلو) لوط | هر کله چه دهٔ ووئیل | خپل قوم ته | بیشکه تاسو | کوئ

خلقو کښې شمیر وی ـ او لوط مو پیغمبر کړو کله چه هغهٔ خپل قوم ته ووئیل چه آیا تاسو دا سے دَ

الْفَاحِشَةَ ز مَا سَبَقَكُمْ بِهَا مِنْ اَحَدٍ مِّنَ الْعٰلَمِيْنَ ﴿٢٨﴾

کار دَ بے حیائی | چه نهٔ دے کړے وړاندې له تاسو نه | دا کار | هیڅ کس | له جهان دَ خلقو نه ـ

بے حیائی کار کوئ چه تاسو نه وړاندې په ټوله دُنیا کښې هیچرے بل چا نهٔ دے کړے ؟

اَئِنَّكُمْ لَتَاْتُوْنَ الرِّجَالَ وَتَقْطَعُوْنَ السَّبِيْلَ ۵ لا

آیا تاسو (خلق) | راځئ | سړو ته ؟ | او وهئ | لارے

تاسو دَ ناریتو سره بد فعلی کوئ ، او لارے شوکوئ

وَتَاْتُوْنَ فِيْ نَادِيْكُمُ الْمُنْكَرَ ط فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهٖٓ

او تاسو کوئ | په خپلو محفلونو کښې | خراب کارونه | پس نهٔ وو | جواب | دَ دهٔ دَ قوم

او په ډک مجلس کښې نامناسب کارونه کوئ ـ نو دَ قوم جواب ورته بس یوازے

وقف لازم

اِلَّآ اَنۡ قَالُوا ائۡتِنَا بِعَذَابِ اللّٰهِ

مکر | داچه | دوی ووئیل | راوله په مونږ | عذاب | دَ الله

دا وو چه څه (لاهو شه) ته دَ الله تعالیٰ هغه عذاب راوله

اِنۡ كُنۡتَ مِنَ الصّٰدِقِيۡنَ ﴿۲۹﴾ قَالَ رَبِّ انۡصُرۡنِىۡ

که چرے یئ ته | له رښتیاویونکو نه | ده ووئیل | اے زماربه! | مدد راکره ماته

که چرے ته په خپله وعده کښے رښتینے یئ؟ لوط دعا وُکره چه اے زماربه! ته دَ دے

عَلَى الۡقَوۡمِ الۡمُفۡسِدِيۡنَ ﴿۳۰﴾ وَلَمَّا جَآءَتۡ رُسُلُنَاۤ اِبۡرٰهِيۡمَ ع ۳ ۱۵

په قوم | دَ مفسدانو | اوهرکله چه | راغلے | زمونږ رالیږلے شوے (فرښتے) | ابراهیمؑ ته

فساد یانو په مقابله کښے زما مدد وکره. اوڅهٔ وخت چه زمونږ فرښتو ابراهیمؑ ته (دَ ځوئے پیداکیدلو)

بِالۡبُشۡرٰى ۙ قَالُوۡۤا اِنَّا مُهۡلِكُوۡۤا اَهۡلِ هٰذِهِ الۡقَرۡيَةِ ۚ اِنَّ

په زیری سره | (نو) دوی ووئیل | بیشکه مونږ | هلاکوونکی یُو | دَ دے کلی اوسیدونکو لره | بیشکه

زیرے یوړو نو دائے هم ورته ووئیل چه مونږ خو دَ دغے کلی خلق تباه کول غواړو ځکه چه

اَهۡلَهَا كَانُوۡا ظٰلِمِيۡنَ ﴿۳۱﴾ قَالَ اِنَّ فِيۡهَا لُوۡطًا ؕ قَالُوۡا

اوسیدونکی دَ دے | وُو | ظالمان | ده ووئیل | بیشکه | په هغے کښے | لوطؑ (هم) دے | دوی ووئیل

دغه خلق ډیر بد عمله دی - ابراهیمؑ ورته ووئیل چه هلته خو لوطؑ اوسیږی، هغوئ ووئیل

نَحۡنُ اَعۡلَمُ بِمَنۡ فِيۡهَا ۫ لَنُنَجِّيَنَّهٗ وَاَهۡلَهٗۤ

مونږ | ښهٔ پوهه یُو | په هغه چاچه | په هغے کښے دی | مونږ به ضرور نجات ورکړو دهٔ ته | او دَ دهٔ دکور خلقو ته

چه مونږ ته ښهٔ معلوم دی چه په هغے کښے څوک څوک دی؟ مونږ به لوطؑ او دَ هغهٔ دَ کور خلق ضرور بچ کړو

اِلَّا امۡرَاَتَهٗ ۖ كَانَتۡ مِنَ الۡغٰبِرِيۡنَ ﴿۳۲﴾ وَلَمَّاۤ اَنۡ جَآءَتۡ

سیوا | دَ دهٔ دَ بی بی نه | وی به هغه | له وروستو پاتے کیدونکو نه | اوهرکله چه | راغلے

خو یوازے ښځه به ئے په پاتے کیدونکی کښے وی ، او هرکله چه لوطؑ ته زمونږ فرښتے

رُسُلُنَا لُوۡطًا سِىۡٓءَ بِهِمۡ وَضَاقَ بِهِمۡ ذَرۡعًا وَّقَالُوۡا

زمونږ فرښتے | لوطؑ ته | نو غمژن شو | په وجه دَ دوی | او تنگ شو | دَ دوی په وجه | په زړهٔ کښے | او دوی ووئیل

راغلے نو هغه پرے غمژن شو او زړهٔ ئے لنړ تنگ شو او فرښتو ووئیل

لَا تَخَفۡ وَلَا تَحۡزَنۡ ۫ اِنَّا مُنَجُّوۡكَ وَاَهۡلَكَ اِلَّا

مهٔ ویریږه | او مهٔ غمژن کیږه | بیشکه مونږ به | نجات درکړو تاته | او ستا دَ کور خلقو ته | سیوا

چه تهٔ اندیښنه او غم مهٔ کوه ، مونږ به تا او ستا دَ کور خلق ضرور بچ کړو ، خو یوه

امۡرَاَتَكَ كَانَتۡ مِنَ الۡغٰبِرِيۡنَ ﴿۳۳﴾ اِنَّا مُنۡزِلُوۡنَ عَلٰۤى اَهۡلِ

ستا دَ بی بی نه | وی به هغه | له وروستو پاتے کیدونکو نه | بیشکه مونږ | نازلوونکی یُو | په اوسیدونکو

ستا ښځه چه دَ نورو پاتے کیدونکو سره به وروستو پاتے کیږی ، مونږ به دَ دے کلی په خلقو باندِ

هٰذِهِ الْقَرْيَةِ رِجْزًا مِّنَ السَّمَآءِ بِمَا كَانُوْا يَفْسُقُوْنَ ﴿٣٤﴾

دَ دِے کلی | عذاب | له آسمان نه | په دِے وجه چه | دوی به بد کاری کوله

دَ ... بره نه عذاب راکوزوو ، ځکه چه دوئ بد عمله دی

وَلَقَدْ تَّرَكْنَا مِنْهَآ اٰيَةًۢ بَيِّنَةً لِّقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ ﴿٣٥﴾

او بیشکه مونږ پریښودله | له دغه کلی نه | نخښه | واضحه | دَ پاره دَ هغه خلقو | چه دَ عقل نه کار اخلی

او مونږ دَ دغے (تباه شوی) کلی څۀ ښکاره نخښے دَ عقلمندو دَ پاره تر اوسه پریښودی دی

وَاِلٰى مَدْيَنَ اَخَاهُمْ شُعَيْبًا ۙ فَقَالَ يٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ

او (مونږ ولیږلو) دَ مدین طرف ته | دَ دوی ورور | شعیب | نو ده ووئیل | اے زما قومه! | عبادت وکړئ دَ الله

او دَ مدین خلقو ته مو دَ هغوئ ورور شعیبؑ ولیږلو ، نو هغۀ ورته ووئیل اے زما قومه! تاسو الله تعالیٰ عبادت کوئ

وَارْجُوا الْيَوْمَ الْاٰخِرَ وَلَا تَعْثَوْا فِى الْاَرْضِ مُفْسِدِيْنَ ﴿٣٦﴾

او اُمید لرئ | دَ ورځے | دَ آخرت | او مۀ گرځئ تاسو | په زمکه کښے | فساد کوونکی.

او دَ آخرت دَ ورځے اُمید ساتئ او په ملک کښے فساد مۀ کوئ ـ

فَكَذَّبُوْهُ فَاَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ فَاَصْبَحُوْا فِىْ دَارِهِمْ

پس دوی دروغژن وگڼلو دے | پس ونیول دوی لره | زلزلے | پس دوی شول په وخت دَ صبا | په خپلو کورونو کښے

نو هغوئ شعیبؑ دروغژن وگڼلو نو زلزلے راگیر کړل ، او هغوئ سحر په خپلو کورونو کښے پړمخے

جٰثِمِيْنَ ﴿٣٧﴾ وَعَادًا وَّثَمُوْدَا۠ وَقَدْ تَّبَيَّنَ لَكُمْ مِّنْ مَّسٰكِنِهِمْ

پړمخے پرېوتلی | او (هلاک مو کړل) عاد | او ثمود | او (دا) واضحه شو | تاسو ته | دَ دوئ له کورونو نه

پراته وو ـ او عاد او ثمود مو هلاک کړل او دغه تباهی خوو ، ته دَ هغوئ باقی پاتے کورونو نه ښکاره ده

وَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطٰنُ اَعْمَالَهُمْ فَصَدَّهُمْ عَنِ السَّبِيْلِ

او ښائسته کړی وُو دَ دوی دَ پاره | شیطان | عملونه دَ دوی | پس دۀ منع کړی وُو دوی | دَ لارے نه

او شیطان ورته خپل (بد) کارونه ښائسته ښکاره کړی وو نو هغوئ ئے دَ سمے لارے نه منع کړی وُو

وَكَانُوْا مُسْتَبْصِرِيْنَ ﴿٣٨﴾ وَقَارُوْنَ وَفِرْعَوْنَ وَهَامٰنَ

او وُو دوئ | هوښیار | او قارون | او فرعون | او هامان (مو هم هلاک کړ)

سره دَ دے چه هغوئ ډیر هوښیاران وو ، او قارون او فرعون او هامان مو هم هلاک کړل

وَلَقَدْ جَآءَهُمْ مُّوْسٰى بِالْبَيِّنٰتِ فَاسْتَكْبَرُوْا فِى الْاَرْضِ

او بیشکه راغلے وو دوی ته | موسیٰؑ | په واضحه نخښو سره | نو دوی تکبّر وکړو | په زمکه کښے

او هغوئ ته موسیٰؑ ښکاره نخښے دَ رسولے ، خو هغوئ ملک کښے سرکشی کوله

وَمَا كَانُوْا سٰبِقِيْنَ ﴿٣٩﴾ فَكُلًّا اَخَذْنَا بِذَنْۢبِهٖ ۚ فَمِنْهُمْ

او نۀ | وُو دوی | وړاندِ وتونکی | پس هر یو | مونږ ونیولو | دَ دۀ په گناه | نو په دوی کښے (څۀ)

او هغوئ زمونږ (دَ نیوکے) نه وړاندے تښتیدے شول ـ نو مونږ تول دَ هغوئ دَ گناهونو په وجه ونیول ، نو په څنو باند

مَّنْ اَرْسَلْنَا عَلَيْهِ حَاصِبًا ۚ وَمِنْهُمْ مَّنْ اَخَذَتْهُ الصَّيْحَةُ

هغه دی | چه راولیږلو مونږ | په هغوی باندِ | دَ کانړو باران | او ځنې له دوئي نه | هغه څوک وو | چه ونیولو هغه لره | سخت آواز

خو مونږ کانړي ورول او څوک یوے چغے راونیول

وَمِنْهُمْ مَّنْ خَسَفْنَا بِهِ الْاَرْضَ ۚ وَمِنْهُمْ مَّنْ

او ځنے له دوئي نه | هغه څوک ؤو | چه ښکته بوتلل مونږ | هغوی | په زمکه (کښے) | او ځنے له دوئي نه | هغه څوک وو

او څه داسے ؤو چه مونږ هغوی په زمکه ورننویستل ، او څهٔ خلق مونږ غرق

اَغْرَقْنَا ۚ وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيَظْلِمَهُمْ وَلٰكِنْ كَانُوْٓا اَنْفُسَهُمْ

چه غرق کړل مونږ | او نهٔ دے | الله (داسے) | چه ظلم ئے کولو په دوی | لیکن | دوی به | په خپلو ځانونو

کړل ، او الله تعالیٰ په هغوی ظلم نهٔ دے کړے بلکه هغوی په خپله په ځانونو

يَظْلِمُوْنَ ۝٤٠ مَثَلُ الَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اَوْلِيَآءَ

ظلم کولو | مثال | دَ هغو خلقو | چه وُئے نیول | سیوا | دَ الله نه | (نور) دوستان

ظلم کولو ، کومو خلقو چه الله تعالیٰ پرېښودے دے او نور معبودان ئے جوړ کړی دی

كَمَثَلِ الْعَنْكَبُوْتِ ۚ اِتَّخَذَتْ بَيْتًا ۗ وَاِنَّ اَوْهَنَ الْبُيُوْتِ

په شان دَ مثال | دَ جولاگی دے | چه جوړ ئے کړو | یو کور | او بیشکه | ډیر زیات کمزورے دَ کورونو نه

دَ هغوی مثال دَ جولاگی دے چه هغهٔ ځان له یوه جاله جوړه کړه ؛ او په کورونو کښے کمزورے کور

لَبَيْتُ الْعَنْكَبُوْتِ ۘ لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ ۝٤١ اِنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ

کور | دَ جولاگی دے | کاش ! | دوی پوهیدلے | بیشکه الله | پوهه دے

دَ جولاگی کور دے ، کاش ! هغوی په دے خبره پوهیدلے . بیشکه الله تعالیٰ ته هغه ټول څیزونه

مَا يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖ مِنْ شَيْءٍ ۗ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ۝٤٢

په هغه څهٔ چه دوی ئے بلی | سیوا دَ الله نه | هر څیز چه وی | او دے | غالب | خاوند دَ حکمت دے

معلوم دی چه دوی ئے دَ الله تعالیٰ نه بغیر بلنه کوی او هغه دَ قدرت او دَ حکمتونو خاوند دے .

وَتِلْكَ الْاَمْثَالُ نَضْرِبُهَا لِلنَّاسِ ۚ وَمَا يَعْقِلُهَآ اِلَّا

او دا | مثالونه دی | مونږ بیانوو دا | خلقو دَ پاره | او نهٔ پوهیږی په دے باندِ | مگر

او دا هغه مثالونه دی چه مونږ ئے خلقو ته بیانوو . او په دے باندِ هغه خلق پوهیږی چه

الْعٰلِمُوْنَ ۝٤٣ خَلَقَ اللّٰهُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ ۗ

پوهه خلق | پیدا کړل | الله | آسمانونه | او زمکه | په رښتیا سره

دَ پوهے خاوندان دی . الله تعالیٰ آسمانونه او زمکه ډیر په مناسبه طریقه پیدا کړی دی .

اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّلْمُؤْمِنِيْنَ ۝٤٤ ع

بیشکه | په دے کښے | نخښه ده | مؤمنانو دَ پاره

په دے کښے مؤمنانو دَ پاره غټ دلیل پروت دے .

وقف لازم

ع ۴/۱۶

اُتْلُ مَآ اُوْحِيَ اِلَيْكَ مِنَ الْكِتٰبِ وَاَقِمِ الصَّلٰوةَ ؕ
تلاوت کوہ | دَ هغه څهٔ | چه وحی ئے شوه | ستا طرف ته | له کتاب نه | او قائم کړه | مونځ
(اے نبیؐ!) کوم کتاب چه تاته دَ وحی په ذریعه راغلے دے هغه لوله ، او دَ مونځ پابندی ساته
اِنَّ الصَّلٰوةَ تَنْهٰى عَنِ الْفَحْشَآءِ وَالْمُنْكَرِ ؕ وَلَذِكْرُ اللّٰهِ
بیشکه | مونځ | منع کوی | دَ بے حیایئ | او له ناخوښه کارنه | او خامخا یادول | دَ الله
یقینًا مونځ دَ خرابو او دَ بے حیایئ دَ کارونو نه منع کوی ، الله تعالیٰ یادول ډیره
اَكْبَرُ ؕ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تَصْنَعُوْنَ ﴿۴۵﴾ وَلَا تُجَادِلُوْٓا اَهْلَ الْكِتٰبِ
ډیر لوئے دی | او الله | پوهیږی | په هغه څهٔ | چه تاسو ئے کوئ | او بحث مهٔ کوئ | دَ اهل کتابو سره
غټه خبره ده ، او الله تعالیٰ ستاسو په کارونو پوهه دے او اهلِ کتابو سره په سختئ نه بلکه
اِلَّا بِالَّتِيْ هِيَ اَحْسَنُ ۖ اِلَّا الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مِنْهُمْ وَقُوْلُوْٓا
مگر | په داسے طریقه | چه هغه ډیره ښه وی | سیوا | دَ هغو خلقو نه | چه ظالمان دی | له دوی نه | او وایئ چه
په مناسبه طریقه سره بحث کوئ . هن! هٔوک چه په کښے زیاتے وکړی او تاسو داؤ وایئ
اٰمَنَّا بِالَّذِيْٓ اُنْزِلَ اِلَيْنَا وَاُنْزِلَ اِلَيْكُمْ وَاِلٰهُنَا وَاِلٰهُكُمْ
مونږ ایمان راوړو | په هغه څهٔ | چه نازل کړے شول | په مونږ | او چه نازل کړے شول | په تاسو | او زمونږ معبود | او ستاسو معبود
چه زمونږ په هغه کتاب هم ایمان دے چه مونږ ته راغلے دے او په هغه کتاب هم چه تاسو ته راغلے دے او زمونږ او ستاسو معبود
وَاحِدٌ وَّنَحْنُ لَهٗ مُسْلِمُوْنَ ﴿۴۶﴾ وَكَذٰلِكَ اَنْزَلْنَآ اِلَيْكَ
یو دے | او مونږ | هم دَ هغهٔ | فرمانبرداریُو | او دغه شان | مونږ نازل کړو | ستا طرف ته
یو دے ، او مونږ دَ هغهٔ ټول حکمونه منو ، او هم دغسے مونږ تاته داکتاب راؤلیږلو
الْكِتٰبَ ؕ فَالَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يُؤْمِنُوْنَ بِهٖ ۚ وَمِنْ
کتاب (قرآن) | پس هغه خلق چه | ورکړے دے مونږ هغوئ ته | کتاب | هغوئ ایمان راوړی | په هغے | او څخه
نو چاته چه مونږ (پخوا) کتاب ورکړے وو اوس هغوئ په دے کتاب (هم) ایمان راوړی ، او په دوئ
هٰٓؤُلَآءِ مَنْ يُّؤْمِنُ بِهٖ ؕ وَمَا يَجْحَدُ بِاٰيٰتِنَآ اِلَّا الْكٰفِرُوْنَ ﴿۴۷﴾
له دوی نه | هغه څوک دی چه ایمان راوړی | په هغے | او نهٔ | کوی انکار | زمونږ له آیتونو نه | مگر | کافران
(مشرکانو) کښے هم ځنے خلق په دے کتاب ایمان راوړی او زمونږ دَ آیتونو نه خو دَ کافرانو نه بغیر نور څوک انکار نهٔ کوی
وَمَا كُنْتَ تَتْلُوْا مِنْ قَبْلِهٖ مِنْ كِتٰبٍ وَّلَا تَخُطُّهٗ بِيَمِيْنِكَ
او نهٔ لوستلو تا | له دے نه وړاندے | څهٔ کتاب | او نهٔ تا لیکلو هغه | په خپل ښی لاس
او دَ دے نه وړاندے نهٔ چرے تا کتاب لوستلے وُو ، او نهٔ دِ په خپل ښی لاس کتاب لیکلے شو
اِذًا لَّارْتَابَ الْمُبْطِلُوْنَ ﴿۴۸﴾ بَلْ هُوَ اٰيٰتٌۢ بَيِّنٰتٌ
په دے صورت کښے | ضرور به شک کولو | دروغژن کوونکو | بلکه | هغه (قرآن) | آیتونه دی | واضحه
کنی دے باطل پرستو به دریاندے شکونه کول ، بلکه دا کتاب خو ښکاره دلیلونه دی

فِىۡ صُدُوۡرِ الَّذِيۡنَ اُوۡتُوا الۡعِلۡمَؕ وَمَا يَجۡحَدُ بِاٰيٰتِنَاۤ اِلَّا

په سینو کښې | دَ هغو کسانو | کوموته چه ورکړے شو | علم | او نۀ | کوی انکار | زمونږ له آیتونو نه | مګر

دَ هغه خلقو په سینو کښې کوموله چه علم ورکړ شوے دے۔ او زمونږ دَ آیتونو نه څوك نۀ بلکه

الظّٰلِمُوۡنَ ۝۴۹ وَقَالُوۡا لَوۡلَاۤ اُنۡزِلَ عَلَيۡهِ اٰيٰتٌ مِّنۡ رَّبِّهٖؕ

ظالمان | او دوی وویل | ولے را ونۀ لیږلے شوے | په دۀ باندې | نخښې | دَ دۀ دَ رب له طرف نه

ظالمان انکار کوی. او دوی وائی چه په دے پیغمبر باندې دَ خپل رب له طرف نه څۀ (غیبی) نخښې ولے رانغلے؟

قُلۡ اِنَّمَا الۡاٰيٰتُ عِنۡدَ اللّٰهِؕ وَاِنَّمَاۤ اَنَا نَذِيۡرٌ مُّبِيۡنٌ ۝۵۰ اَوَلَمۡ يَكۡفِهِمۡ

ووايه | بیشکه | نخښې | دَ الله سره دی | او بیشکه | زۀ | ویروونکے یم | ښکاره | آیا کافی نۀ ده دوی ته

ورته ووايه چه نخښې خو دَ الله تعالیٰ په قبضه کښې دی او زۀ خو یو ویروونکے یم چه صفا صفا وینا کوم۔ آیا دوی له دا خبره

اَنَّاۤ اَنۡزَلۡنَا عَلَيۡكَ الۡكِتٰبَ يُتۡلٰى عَلَيۡهِمۡؕ اِنَّ

چه مونږ | نازل کړے دے | په تا باندې | دا کتاب (قرآن) | چه لوستلے شی | دوی ته | بیشکه

کافی نۀ ده چه مونږ تا نه دا کتاب رالیږلے دے چه دوی ته لوستلے شی؟ بیشکه چه په

فِىۡ ذٰلِكَ لَرَحۡمَةً وَّذِكۡرٰى لِقَوۡمٍ يُّؤۡمِنُوۡنَ ۝۵۱ قُلۡ كَفٰى

په دے کښې | رحمت دے | او نصیحت | دَ پاره دَ هغه قوم | چه یقین کوی | ووايه | بس دے

دے کتاب کښې دَ ایماندارو دَ پاره رحمت او نصیحت پروت دے۔ (اے نبیؐ!) ته ورته ووايه

بِاللّٰهِ بَيۡنِىۡ وَبَيۡنَكُمۡ شَهِيۡدًاۚ يَعۡلَمُ مَا فِى السَّمٰوٰتِ

الله | زما په مینځ کښې | او ستاسو په مینځ کښې | ګواه | هغه پوهیږی | په هغه څۀ | چه په آسمانونو

چه یوازے الله زما او ستاسو ترمینځه ګواهئ له بس دے۔ هغۀ ته دَ آسمانونو او دَ زمکے هر څۀ معلوم دی

وَالۡاَرۡضِؕ وَالَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا بِالۡبَاطِلِ وَكَفَرُوۡا بِاللّٰهِ ۙ اُولٰٓئِكَ

او زمکه کښې دی | او کوم خلق چه | ایمان راوړی | په دروغو باندې | او انکار ئے وکړو | دَ الله | هم دوی دی

دی۔ او څوك چه په ناحقو باور ساتی او دَ الله تعالیٰ نه انکار کوی نو هم دغه

هُمُ الۡخٰسِرُوۡنَ ۝۵۲ وَيَسۡتَعۡجِلُوۡنَكَ بِالۡعَذَابِؕ وَلَوۡلَاۤ اَجَلٌ

نقصان موندونکی | او دوی له تا نه زر غواړی | عذاب | او که چرے نۀ وے | وخت

خلق تاوانیان دی۔ او دا خلق دَ عذاب په غوښتلو کښې تندی کوی. او که چرے (دَ دې) یو دَ هر

مُّسَمًّى لَّجَآءَهُمُ الۡعَذَابُؕ وَلَيَاۡتِيَنَّهُمۡ بَغۡتَةً وَّهُمۡ لَا يَشۡعُرُوۡنَ ۝۵۳

مقرر | نو خامخا به راغلے وو په دوی | عذاب | او خامخا به راشی په دوی | ناګهانه | او دوی به | نۀ وی پوهه

شی) وخت مقرر نۀ وے نو په دوی باندې به عذاب راغلے وو او عذاب به په دوی ناګهانه راځی او دوی ته به خبر هم نۀ وی

يَسۡتَعۡجِلُوۡنَكَ بِالۡعَذَابِؕ وَاِنَّ جَهَنَّمَ لَمُحِيۡطَةٌ ۢ بِالۡكٰفِرِيۡنَ ۝۵۴

دوی زر غواړی له تا نه | عذاب | او بیشکه | دوزخ | راګیر کړی دی | کافران

دوی په تا باندې دَ عذاب راتللو تلوار کوی، او په دے کښې شک نشته چه دَ کافرانو نه به جهنم راتاویږی

يَوْمَ يَغْشٰىهُمُ الْعَذَابُ مِنْ فَوْقِهِمْ وَمِنْ تَحْتِ اَرْجُلِهِمْ

په کومه ورځ | چه پټ به کړی دوی لره | عذاب | دَ دوی دَ پاسه نه | او دَ دوی دَ بنپو لاندې نه

په کومه ورځ چه عذاب به پټ کړی دَ برَه نه او دَ بنپو دَ لاندې نه راخور شی

وَيَقُوْلُ ذُوْقُوْا مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ۝٥٥ يٰعِبَادِيَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا

او وُبه وائی الله | وُڅکئ (مزه) | دَ هغه څهٔ | چه تاسو به کول | اے زما بندګانو! | چه | ایمان مو راوړے دے

او الله تعالیٰ به ورته ووائی چه تاسو چه څهٔ کول دَ هغې خوند وُڅکئ۔ اے زما ایماندارو بندګانو!

اِنَّ اَرْضِيْ وَاسِعَةٌ فَاِيَّايَ فَاعْبُدُوْنِ ۝٥٦ كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ

بیشکه | زما زمکه | ارته ده | پس خاص زما | عبادت کوئ | هر کس | څکوُنکے دے (مزه)

بیشکه زما زمکه ډیره وسیع ده نو تاسو خالص زما عبادت کوئ۔ هر ژوندے به یو ځل خامخا دَ مرګ خوند

الْمَوْتِ ۫ ثُمَّ اِلَيْنَا تُرْجَعُوْنَ ۝٥٧ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا

دَ مرګ | بیا به | زمونږ طرف ته | تاسو واپس راګرځولے شئ | او کوم خلق چه | ایمان راوړی | او عملونه ئے وُکړل

څکی ، بیا تاسو ټول به مانه پسته راځئ۔ او چا چه ایمان راوړے دے او نیک کارونه

الصّٰلِحٰتِ لَنُبَوِّئَنَّهُمْ مِّنَ الْجَنَّةِ غُرَفًا تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا

نیک | مونږ به ضرور ځائے ورکړو دوی ته | دَ جنت | په بالاخانو (کښې) | چه بهیږی به | لاندې دَ هغې نه

کوی مونږ به ورله دَ جنت په بالاخانو کښې ځائے ورکړو چه دَ هغې لاندې به ویالے

الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ؕ نِعْمَ اَجْرُ الْعٰمِلِيْنَ ۝٥٨ الَّذِيْنَ صَبَرُوْا

نهرونه | همیشه به وی دوی | په هغې کښې | څهٔ ښهٔ | اجر دے | دَ عمل کوونکو | کوم خلق چه | صبر وکړو

بهیږی تل تر تله به په کښې اوسیږی دَ (نیک) عمل کوونکو بدله ډیره ښه ده (یعنی) کوم چه صبر وکړو

وَعَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ ۝٥٩ وَكَاَيِّنْ مِّنْ دَآبَّةٍ لَّا تَحْمِلُ

او په خپل رب باندې | توکل کوی | او څومره | ژندهٔ سردی | چه نهٔ وُچتوی

او په خپل رب باندې توکل کوی۔ او ډیر داسے ژندهٔ سرشته چه خپل ځان له روزی سنبال

رِزْقَهَا ۖ اَللّٰهُ يَرْزُقُهَا وَاِيَّاكُمْ ۖ وَهُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ۝٦٠

خپله روزی | الله | رزق ورکوی هغوئی ته | او تاسو ته هم | او دے | اوُریدونکے | پوهه دے۔

نهٔ ساتی ، الله تعالیٰ هغوئی له هم روزی ورکوی او تاسو له هم ، او هغه هر څهٔ اوری په هر څهٔ پوهه دے

وَلَئِنْ سَاَلْتَهُمْ مَّنْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَسَخَّرَ

او که چرے | تپوس وکړے تهٔ له دوی نه | چه چا | پیدا کړل | اسمانونه | او زمکه | او په کار ئے ولګول

او که چرے تهٔ ترے نه تپوس وکړے چه هغه ذات څوک دے چه اسمانونه او زمکه ئے پیدا کړی دی او نمر او

الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ لَيَقُوْلُنَّ اللّٰهُ ۚ فَاَنّٰى يُؤْفَكُوْنَ ۝٦١ اَللّٰهُ

نمر | او سپوږمئ | ضرور به ووائی دوی | چه الله | بیا کوم خوا | دوی اړولی روان دی؟ | الله

سپوږمئ ئے په کار لګولی دی؟ نو دوئ به ضرور ووائی چه الله نو بیا دوئ کوم خوا اړولی روان دی؟ الله

يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ وَيَقْدِرُ لَهٗ

فراخه کوی | روزی | دَهغه چاچه | دے ئے غواړی | له خپلو بندګانو نه | او تنګوی | چادَپاره (چه غواړی)

هغه ذات دے چه په خپلو بندګانو کښے په خپله خوښه دَ چا روزی فراخه کړی او دَ چا روزی تنګوی

اِنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَیْءٍ عَلِيْمٌ ﴿٦٢﴾ وَلَئِنْ سَاَلْتَهُمْ مَّنْ نَّزَّلَ

بیشکه | الله | په هر | خیز | پوهه دے | اوکه چرے | تاسو تپوس وکړئ له دوئ نه | چه چا | رانښکته کړے

بیشکه الله تعالیٰ په هر څهٔ ډیر ښهٔ پوهه دے۔ اوکهٔ تهٔ دَ دوئ نه تپوس وکړے چه چا دَ بره نه

مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَاَحْيَا بِهِ الْاَرْضَ مِنْۢ بَعْدِ مَوْتِهَا

له آسمان نه | اوبهٔ | بیائے ژوندئ کړله | په دے سره | زمکه | پس | دَ دے له مرګ نه

اوبهٔ راؤورولے ، نو مزکه ئے پرے دَ مړه کیدو نه پس بیا راژوندئ کړه؟

ع ٦ ١٢ ٢ لَيَقُوْلُنَّ اللّٰهُ ؕ قُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ ؕ بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُوْنَ ﴿٦٣﴾

نو دوی به ضرور ووائی | الله | ووایه | ټول تعریفونه الله لَره دی | بلکه | اکثر له دوی نه | نهٔ پوهیږی

نو دوئ به ووائی چه الله تهٔ ووایه چه ټول تعریفونه الله دَپاره دی، خو په دوئ کښے اکثر کسان نهٔ پوهیږی.

وَمَا هٰذِهِ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَآ اِلَّا لَهْوٌ وَّلَعِبٌ ؕ وَاِنَّ الدَّارَ

او نهٔ دے | دا | ژوندون | دَ دنیا | مګر | لوبے | او تماشه | او بیشکه | کور

او دَ دُنیا دا ژوندون دَ لوبو او دَ تماشو نه بغیر نور هیڅ حقیقت نهٔ لری او اصل ژوندون

وقف لازم اَلْاٰخِرَةَ لَهِیَ الْحَيَوَانُ ۘ لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ ﴿٦٤﴾ فَاِذَا رَكِبُوْا فِی الْفُلْكِ

دَ آخرت | هم دا دے | (اصل) ژوند | کاش | دوی پوهیدلے | بیا هر کله چه | دوی سواره شی | په کشتئ کښے

دَ آخرت دے ، کاش! چه دوئ پوهیدلے. نو هر کله چه دوئ په کشتئ کښے سواره

دَعَوُا اللّٰهَ مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ ۚ فَلَمَّا نَجّٰىهُمْ

نو دوئ بلی | الله | خالص کوونکی | دَپاره دَده | عبادت | بیا هر کله چه | نجات ورکړی دوی ته

شی نو بیا په خالص اعتقاد سره دَ الله پاک بلنه کوی. خو څهٔ وخت چه مونږ ئے اوچے

اِلَى الْبَرِّ اِذَا هُمْ يُشْرِكُوْنَ ﴿٦٥﴾ لِيَكْفُرُوْا بِمَآ اٰتَيْنٰهُمْ ۚ

طرف دَ اوچے ته | نو ناګهانه دوی | شرک کوی | چه دوی انکار وکړی | دَ هغه څهٔ | چه مونږ ورکړی دَ دوی ته

غاړے ته راخلاص کړو نو فوراً الله تعالیٰ له شریکان راپیدا کړی نو څهٔ چه مونږ دوی له ورکړی دی دَ هغے ناشکری کوی.

وَلِيَتَمَتَّعُوْا ۛ وقفة فَسَوْفَ يَعْلَمُوْنَ ﴿٦٦﴾ اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّا جَعَلْنَا

او چه دوی فائده واخلی | پس زر به | دوی ته معلومه شی | آیا دوی نهٔ دی لیدلی | چه مونږ جوړ کړو

او دَپاره دَ دے چه څو ورځے مزے واخلی نو ډیر زر به (په ځان) پوهه شی ، آیا دوئ چرے غور نهٔ دے کړے چه مونږ حرم

حَرَمًا اٰمِنًا وَّيُتَخَطَّفُ النَّاسُ مِنْ حَوْلِهِمْ ؕ اَفَبِالْبَاطِلِ

حرم | دَ امن والا | او تښتولے شی | خلق | چار چاپیره دَ دوی نه | پس آیا دوی باطل ته

دَ امن ځائے ګرځولے دے. او دَ ګیر چاپیره (علاقو) نه خلق (په زوره) بیوړے شی نو آیا دوئ بیا هم په

يُؤْمِنُوْنَ وَبِنِعْمَةِ اللّٰهِ يَكْفُرُوْنَ ﴿۶۷﴾ وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ

ايمان راوړی | او په نعمت دَ الله | ناشکری کوی | او څوک | زيات ظالم دے | له هغه چانه

باطلو معبودانو باندې ايمان راوړی او دَ الله تعالیٰ دَ نعمتونو ناقدري کوی۔ او دَ هغه چانه غټ ظالم څوک کيدے شی

افْتَرٰی عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا اَوْ كَذَّبَ بِالْحَقِّ لَمَّا جَآءَهٗ ؕ

چه وتړی | په الله باندې | دروغ | يا دروغژن کړی | حق | هر کله چه | هغه راشی دهٔ ته

چه په الله تعالیٰ باندې دروغ وتړی ، يا چه حقه خبره ورته ورسيږی نو هغے ته دروغ ووائی

اَلَيْسَ فِيْ جَهَنَّمَ مَثْوًى لِّلْكٰفِرِيْنَ ﴿۶۸﴾ وَالَّذِيْنَ جٰهَدُوْا

آيا نهٔ دے | په دوزخ کښے | ځائے | دَ پاره دَ کافرانو | او کومو خلقو چه | محنت وکړو

آيا دَ کافرو ټيکاڼه به په دوزخ کښے نهٔ وی ؟ او څوک چه زمونږ دَ دين په لاره کښے

ع ۷/۶ فِيْنَا لَنَهْدِيَنَّهُمْ سُبُلَنَا ؕ وَاِنَّ اللّٰهَ لَمَعَ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۶۹﴾

زمونږ په لاره کښے | خامخا به مونږ وښايو هغوئ ته | لارے خپلے | او بيشکه الله | سره دے | دَ نيکانو

کوشش کوی نو مونږ به ورته خپلے لارے وښايو او بيشکه الله تعالیٰ نيکانو خلقو سره دے ۔

سُوْرَةُ الرُّوْمِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | سِتُّوْنَ اٰيَةً وَّسِتُّ رُكُوْعَاتٍ

سورة روم په مکه کښے نازل شوا او په | (شروع) دَ الله په نوم چه لوئے مهربان ډير زيات رحم کوونکے دے | دے کښے ۶۰ آيتونه او ۶ رکوع گانے دی

دَ الله په نوم شروع کوم چه لوئے مهربان دَ ډير زيات رحم خاوند دے

الٓمّٓ ﴿۱﴾ غُلِبَتِ الرُّوْمُ ﴿۲﴾ فِيْۤ اَدْنَى الْاَرْضِ وَهُمْ

الٓمّٓ | مغلوب شول | روميان | په ډير نزدے | زمکه کښے | او دوی به

الٓمّٓ ۔ روميانو (دَ شام دَ ملک) په نزدے علاقه کښے (دَ ايران دَ لاسه) ښيلات وکړو او هغوئ به دَ دے

مِّنْۢ بَعْدِ غَلَبِهِمْ سَيَغْلِبُوْنَ ﴿۳﴾ فِيْ بِضْعِ سِنِيْنَ ؕ۬

پس | دَ مغلوبه کيدونه | غالب کيږی | په څو | کالو کښے

ښيلات نه پس په يو څو کاله کښے دننه دننه بيا غالب شی ۔

لِلّٰهِ الْاَمْرُ مِنْ قَبْلُ وَمِنْۢ بَعْدُ ؕ وَيَوْمَئِذٍ يَّفْرَحُ

هم دَ الله په اختيار کښے دی ټول کارونه | وړاندې له دے نه | او پس له دے نه | او په دغه ورځ به | خوشحاله وی

وړاندې هم اختيار دَ الله تعالیٰ وو او وروستو هم (اختيار) دَ هغه دے، او په دغه ورځ به مسلمانان

الْمُؤْمِنُوْنَ ﴿۴﴾ بِنَصْرِ اللّٰهِ ؕ يَنْصُرُ مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَهُوَ

مؤمنان | په مدد دَ الله | دے مدد ورکوی | چا ته چه | وغواړی | او دے

خوشحاله شی دَ الله تعالیٰ په امداد ، هغه چه دَ هر چا په حقله وغواړی نو مدد ورکړی ۔ او هغه زبردست

الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ ﴿۵﴾ وَعْدَ اللّٰهِ ؕ لَا يُخْلِفُ اللّٰهُ وَعْدَهٗ

غالب | مهربان دے | وعده ده دَ الله | خلاف نهٔ کوی | الله | دَ خپلے وعدے

دے رحم کوونکے دے ۔ دا دَ الله تعالیٰ وعده ده، الله تعالیٰ دَ خپلے وعدے نه خلاف هيڅرے نهٔ کوی.

وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ ۝٦ يَعْلَمُوْنَ ظَاهِرًا

او لیکن | اکثر | خلق | نهٔ پوهیږی | دوی پیژنی | ښکاره (حالت)

خو اکثر خلق په دے نهٔ پوهیږی ـ دا خلق خو بس دَ دنیا دَ ژوند په

مِّنَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ وَهُمْ عَنِ الْاٰخِرَةِ هُمْ غٰفِلُوْنَ ۝٧

دَ ژوند | دَ دنیا | او دوی | له آخرت نه | بے خبره دی

ښکاره مخ پوهیږی، او دَ آخرت نه بالکل ناخبره پاتے دی

اَوَلَمْ يَتَفَكَّرُوْا فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ ۗ مَا خَلَقَ اللّٰهُ السَّمٰوٰتِ

آیا نهٔ | کوی غور دوی | په خپلو زړونو کښے | چه نهٔ دی پیدا کړی | الله | آسمانونه

آیا دوئ په خپلو زړونو کښے دا فکر نهٔ دے کړے، چه الله تعالیٰ آسمانونه او زمکه او دَ دے دواړو

وَالْاَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَآ اِلَّا بِالْحَقِّ وَاَجَلٍ مُّسَمًّى

او زمکه | او څهٔ چه | دَ دے دواړو په مینځ کښے دی | مګر | په درست تدبیر سره | او یو وخت | مقرر دَ پاره

ترمینځهٔ څیزونه هسے نه بلکه دَ یو حکمت دَ لاندِ او دَ یو مے مقرر نیټے دَ پاره پیدا کړی دی؟

وَاِنَّ كَثِيْرًا مِّنَ النَّاسِ بِلِقَآئِ رَبِّهِمْ لَكٰفِرُوْنَ ۝٨

او بیشکه | ډیر | له خلقو نه | دَ ملاقات دَ رب خپل نه | منکر دی

او ډیر خلق هم دَ خپل رب سره دَ ملاقات کیدلو نه منکر دی.

اَوَلَمْ يَسِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ فَيَنْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ

آیا دوی وُنهٔ ګرځیدل | په زمکه کښے | چه دوی لیدلے | څنګه | شو | انجام

آیا دوئ په ملک کښے نهٔ دی ګرځیدلی چه وګوری چه دَ دوئ نه دَ مخکښنو خلقو انجام

الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ۭ كَانُوْٓا اَشَدَّ مِنْهُمْ قُوَّةً وَّ

دَ هغو خلقو | چه له دوی نه وړاندِ وو | هغوئ وُو | ډیر زیات | له دوی نه | په طاقت کښے | او

څهٔ شو ؟ هغوئ (خو) دَ دوئ نه په طاقت کښے هم زیات وو او په

اَثَارُوا الْاَرْضَ وَعَمَرُوْهَآ اَكْثَرَ مِمَّا عَمَرُوْهَا

هغوئ واړوله | زمکه | او ولے آباده کړے وه | زیاته | له دِے نه چه | دوئ آباده کړے ده

زمکه کښے ئے کروندے هم (ډیرے) کړے وے، او څومره چه (نن) دوئ آباده کړے ده دَ دِے نه ډیره زیاته ئے آباده کړے

وَجَآءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ ۭ فَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيَظْلِمَهُمْ

او راغلی وُو دوئ ته | دَ دوئ پیغمبران | په واضحه دلیلونو سره | پس نهٔ وو | الله (دا سے) | چه ظلم ئے کولو په دوئ

وه، او هغوئ ته خپلو پیغمبرانو معجزے هم راوړے وے، او الله تعالیٰ پرے یاندِ زیاتے نهٔ کولو خو

وَلٰكِنْ كَانُوْٓا اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ ۝٩ ثُمَّ كَانَ عَاقِبَةَ الَّذِيْنَ

او لیکن | وُو دوئ | چه په خپلو ځانونو باندِ | ظلم کولو | بیا | شو | انجام | دَ هغه خلقو

هغوئ به په خپله په ځان زیاتے کولو، بیا کومو خلقو چه بد کارونه وکړل دَ هغوئ

أَسَاءُوا السُّوٓآى اَنْ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَكَانُوْا بِهَا
كومو چه بدي وكړه | بد ه | دے دپاره چه | دوی دروغ وګڼل | آیتونو د الله | او دوی به هغے پورے
انجام ډیر بد شو ، ځکه چه هغوئ د الله تعالیٰ آیتونه دروغ ګڼل او په هغے پورے

يَسْتَهْزِءُوْنَ ⑩ اَللّٰهُ يَبْدَؤُا الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيْدُهٗ ثُمَّ
ټوقے کولے | الله | په اول ځل پیدا کوی | مخلوق | بیا به | دوباره ژوندی کړی دا | بیا به
ئے خندا مانے کولے ۔ هم الله تعالیٰ مخلوق په اول ځل پیدا کوی بیا په دویم ځل به ئے هم هغه را پیدا کوی، بیا به

اِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ⑪ وَيَوْمَ تَقُوْمُ السَّاعَةُ يُبْلِسُ الْمُجْرِمُوْنَ ⑫
د ده طرف ته | تاسو ورګرځولے شئ | او په کومه ورځ چه | قائم شی | قیامت | مایوسه به شی | مجرمان
هم د هغه طرف ته تاسو واپس کیږئ ۔ او په کومه ورځ چه قیامت راشی نو مجرمان به مایوسه پاتے شی

وَلَمْ يَكُنْ لَّهُمْ مِّنْ شُرَكَآئِهِمْ شُفَعٰٓؤُا وَكَانُوْا بِشُرَكَآئِهِمْ
او نه به وی | دوی دپاره | د دوی له شریکانو نه | څوک سفارشی | او وی به دوی | له خپلو شریکانو نه
او د دوئ په جوړو کړو شریکانو کښے هیڅوک به ئے سفارشی پیدا نه شی ، او دوئ به د خپلو شریکانو نه (په

كٰفِرِيْنَ ⑬ وَيَوْمَ تَقُوْمُ السَّاعَةُ يَوْمَئِذٍ يَّتَفَرَّقُوْنَ ⑭
منکر | او په کومه ورځ چه | قائم شی | قیامت | په دغه ورځ به | دوی جدا جدا شی
خپله) منکر شی ۔ او په کومه ورځ چه قیامت راشی نو په هغه ورځ به دا خلق جدا جدا (تولی) شی

فَاَمَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فَهُمْ فِيْ رَوْضَةٍ
پس کوم خلق چه | ایمان راوړی | او هغوئ عمل وکړی | نیک | پس هغوئ به | په باغ (جنت) کښے
نو چا چه ایمان راوړے وو او نیک کارونه ئے کړی وو نو هغوئ به په (د جنت) په باغ کښے

يُّحْبَرُوْنَ ⑮ وَاَمَّا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَكَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا وَلِقَآئِ الْاٰخِرَةِ
خوشحاله وی | او کوم خلق چه | منکر شول | او دروغ ئے وګڼل | زمونږ آیتونه | او ملاقات د آخرت
خوشحاله (ناست) وی ۔ او چا چه کفر (غوره) کړے وو او زمونږ آیتونه او د آخرت راتلل ئے دروغ ګڼلی وو نو

فَاُولٰٓئِكَ فِي الْعَذَابِ مُحْضَرُوْنَ ⑯ فَسُبْحٰنَ اللّٰهِ حِيْنَ تُمْسُوْنَ
پس هم دوی به | په عذاب کښے | حاضر کړی شوی وی | پس پاکی بیانوئ د الله | هر کله چه | ماښام کوئ تاسو
هغوئ به په عذاب کښے (ګرفتار) حاضر ولی شی ۔ نو تاسو د ماښام او د سحر په وختونو کښے د الله

وَحِيْنَ تُصْبِحُوْنَ ⑰ وَلَهُ الْحَمْدُ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ
او هر کله چه | صبا کوئ تاسو | او هم د ده لره دی | ټول تعریفونه | په آسمانونو کښے | او زمکه (کښے)
پاکیزګی بیانوئ ۔ او په آسمانونو کښے او په زمکه کښے هم د هغه تعریف دے

وَّعَشِيًّا وَّحِيْنَ تُظْهِرُوْنَ ⑱ يُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ
او د ورځے په آخر کښے | او هر کله چه | تاسو د زوال په وخت کښے داخلیږئ | دے راوباسی | ژوندے | له مړی نه
او د هغه تسبیح کوئ او د ورځے په آخری وخت کښے او د ماسپښین ۔ هغه د مړی نه ژوندے راوباسی ،

وَيُخْرِجُ الْمَيِّتَ مِنَ الْحَيِّ وَيُحْيِي الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا

اوراوباسی | مړے | له ژوندی نه | اوژوندئ کوی | زمکه | پس | دَمړه کیدو دَې نه

او دَ ژوندی نه مړے ، اوزمکه دَ مړه کیدو (اوچیدو) نه پس بیا راژوندئ کوی

وَكَذَٰلِكَ تُخْرَجُونَ ⑲ وَمِنْ آيَاتِهِ أَنْ خَلَقَكُم مِّن تُرَابٍ

اوهم دغه شان به | تاسو راوویستلی شئ | اودَدهٔ له نخښونه دی | چه | دهٔ پیدا کړئ تاسو | له خاورو نه

او دغه شان به تاسو (هم) راوویستلی شئ ۔ اودهغهٔ بله نخښه دا ده چه تاسوئ دَ خاورو نه پیدا کړئ ، نو

ثُمَّ إِذَا أَنتُم بَشَرٌ تَنتَشِرُونَ ⑳ وَمِنْ آيَاتِهِ أَنْ

بیا | ناګهانه | تاسو | سړی شوئ | (هرځائے) خوارهٔ شوئ | اودَدهٔ له نخښونه (دی) | چه

په لږو ورځو کښے (سم دم) سړی شوئ چه خوارهٔ وارهٔ ګرځئ ، او دَ هغهٔ په نخښو کښے یوه دا ده چه تاسو

خَلَقَ لَكُم مِّنْ أَنفُسِكُمْ أَزْوَاجًا لِّتَسْكُنُوا إِلَيْهَا

پیدائے کړل | تاسو دَپاره | ستاسو له جنس نه | ښځے | چه تاسو آرام بیا مومئ | دَ دوی سره

له ئے ستاسو دَ خپل جنس نه جوړے راپیدا کړے ، چه آرام ورسره بیا مومئ

وَجَعَلَ بَيْنَكُم مَّوَدَّةً وَرَحْمَةً إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ

اوپیدائے کړلو | ستاسو په مینځ کښے | محبت | اورحمت | بیشکه | په دے کښے | نخښے دی

اوستاسو دَ ښځے خاوند) ترمینځهٔ ئے مینه او همدردی پیدا کړه ، په دے کښے دَ هغه خلقو دَ پاره نخښے

لِّقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ ㉑ وَمِنْ آيَاتِهِ خَلْقُ السَّمَاوَاتِ

دَهغه قوم دَپاره | چه فکر کوی | اودَدهٔ له نخښونه (دی) | پیدا کول | دَ آسمانونو

پرتے دی چه دَ فکرنه کار اخلی ۔ او دَ هغهٔ په نخښو کښے دَ آسمانونو او دَ زمکے پیدا کول

وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافُ أَلْسِنَتِكُمْ وَأَلْوَانِكُمْ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ

اودَ زمکے | او اختلاف | ستاسو دَ ژبو | اوستاسو دَ رنګونو | بیشکه | په دے کښے

هم دی ، اوستاسو دَ ژبو او دَ رنګونو جدا جدا کول هم دی ، بیشکه په دے کښے دَ پوهانو خلقو

لَآيَاتٍ لِّلْعَالِمِينَ ㉒ وَمِنْ آيَاتِهِ مَنَامُكُم بِاللَّيْلِ وَالنَّهَارِ

نخښے دی | عالمانو دَپاره | اودَدهٔ له نخښونه (دی) | ستاسو اوده کیدل | په شپه | اوورځ کښے

دَپاره نخښے (او دلیلونه) دی ۔ او دَ هغهٔ په نخښو کښے دَ شپے او دَ ورځے ستاسو اوده کیدل دی

وَابْتِغَاؤُكُم مِّن فَضْلِهِ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّقَوْمٍ

اوستاسو لټول دی | دَ دهٔ له فضل نه | بیشکه | په دے کښے | نخښے دی | دَپاره دَ هغه قوم

او دَ هغهٔ دَ فضل نه (روزی) تلاش کول دی ۔ بیشکه په دے کښے هغه خلقو دَ پاره نخښے دی چه (په غور

يَسْمَعُونَ ㉓ وَمِنْ آيَاتِهِ يُرِيكُمُ الْبَرْقَ خَوْفًا

چه اوری | اودَدهٔ له نخښونه (دی) | چه دے ښائی تاسو ته | آسمانی بریښنا | دَ ویرے

خبره اوری ۔ او دَ هغهٔ په نخښو کښے یوه دا ده چه تاسو ته دَ بریښنا برق ښائی په کښے (دَ تندر) دیره هم

وَّطَمَعًا وَّيُنَزِّلُ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَيُحْيِ بِهِ الْاَرْضَ

او د امید (په توګه) | او دے نازلوی | له آسمان نه | اوبه | پس دے ژوندئ کوی | په دَسره | زمکه

او د (دَ باران) امید و نه هم. او هغه دَ بره نه اوبه راوروی. بیا زمکه دَ اُوچیدو نه پس را ژوندئ

بَعْدَ مَوْتِهَا ؕ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ ﴿۲۴﴾

پس | دَ مره کیدو دَ هغې نه | بیشکه | په دے کښے | نخښے دی | دَ پاره دَ هغه قوم | چه عقل لری۔

او تازه کړی۔ بیشکه په دے کښے دَ هغه خلقو دَ پاره نخښے دی چه دَ عقل نه کار اخلی۔

وَمِنْ اٰيٰتِهٖٓ اَنْ تَقُوْمَ السَّمَآءُ وَالْاَرْضُ بِاَمْرِهٖ ؕ

او دَ دهٔ له نخښو نه (دی) | چه قائم دے | آسمان | او زمکه | دَ دهٔ په حکم

او دَ هغهٔ بوه نخښه داده چه آسمان او زمکه دَ هغهٔ په حکم په ځائے قائم دی۔

ثُمَّ اِذَا دَعَاكُمْ دَعْوَةً ۖ مِّنَ الْاَرْضِ ۖ اِذَآ اَنْتُمْ تَخْرُجُوْنَ ﴿۲۵﴾

بیا هر کله چه | راوبلی تاسو | په یوځل بللو سره | نو له زمکے نه به | ناګهانه تاسو | راوځئ

نو څهٔ وخت چه هغه تاسو دَ زمکے دَ دننه نه راوبلی نو تاسو به ناګهانه راوځئ۔

وَلَهٗ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ كُلٌّ لَّهٗ قٰنِتُوْنَ ﴿۲۶﴾ وَهُوَ الَّذِيْ

او هم دَ دهٔ دی | څهٔ چه | په آسمانونو کښے | او زمکه (کښے دی) | هر یو | هم دَ دهٔ | فرمانبردار دے | او هم دے دے چه

او څومره خلق چه په آسمانونو او په زمکه کښے موجود دی دا ټول دَ هغهٔ مخلوق دے، ټول دَ هغهٔ تابع دی او الله هغه ذات دے

يَبْدَؤُا الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيْدُهٗ وَهُوَ اَهْوَنُ عَلَيْهِ ؕ وَلَهُ

پیدا کوی په اول ځل | مخلوق | بیا به هم دے دوباره پیدا کړی دا | او هغه زیات آسان دی | ده دَ پاره | او هم دَ دهٔ

چه مخلوق په اول ځل پیدا کوی او بیا به ئے سر دوباره هم را پیدا کوی او دا کار ورته زیات آسان دے۔ او په آسمانونو

الْمَثَلُ الْاَعْلٰى فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿۲۷﴾

شان | ډیر اُوچت دے | په آسمانونو کښے | او زمکه (کښے) | او هم دے | غالب | دَ حکمت خاوند دے

او په زمکه کښے دَ هغهٔ شان ډیر اوچت دے او هغه ډیر زبردست دَ حکمتونو خاوند دے۔

ضَرَبَ لَكُمْ مَّثَلًا مِّنْ اَنْفُسِكُمْ ؕ هَلْ لَّكُمْ مِّنْ مَّا

بیان کړو دهٔ | تاسو دَ پاره | یو مثال | له حال ستاسو نه | آیا تاسو دَ پاره | دَ هغو څخه

الله تعالیٰ تاسو دَ پاره (دَ توحید) یو مثال، هم له تاسو نه بیان کړے دے چه آیا دَ کومو غلامانو چه تاسو مالکان یئ په

مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ مِّنْ شُرَكَآءَ فِيْ مَا رَزَقْنٰكُمْ فَاَنْتُمْ

چه مالکان ئے وی | ستاسو ښی لاسونه (یعنی غلامان) | څوک شریک شته؟ | په هغه څهٔ کښے | چه مونږ درکړے دے تاسو ته | چه تاسو

هغوئ کښے څوک داسے هم شته چه په هغه رزق کښے کوم چه مونږ تاسو له درکړے دے، ستاسو برابر

فِيْهِ سَوَآءٌ تَخَافُوْنَهُمْ كَخِيْفَتِكُمْ اَنْفُسَكُمْ ؕ كَذٰلِكَ نُفَصِّلُ

په هغے کښے | برابر شئ | ویریږئ تاسو له هغوئ نه | لکه چه تاسو ویریږئ | له خپل ځان نه | دغه شان | مونږ بیانوو

شریک دی؟ چه تاسو دَ هغوئ داسے خیال وساتئ لکه په خپل مینځ کښے دَ یو بل چه ساتئ؟ مونږ هوښیارو خلقو ته

الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ ﴿۲۸﴾ بَلِ اتَّبَعَ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْٓا

نخښې | دپاره دَ هغه قوم | چه پوهیږی | بلکه | پیروی وکړه | هغه خلقو | چه ظالمان دی

دَ غسې صفا صفا دلیلونه اوروو . نا ، بلکه دا ظالمان بے پوهے (او بے دلیله) په خپلو

اَهْوَآءَهُمْ بِغَيْرِ عِلْمٍ ۚ فَمَنْ يَّهْدِيْ مَنْ اَضَلَّ اللّٰهُ ۗ

دَ خپلو خواهشاتو | بغیر دَ علم نه | بیا څوک دے | چه لار ه وښائی | هغه چا ته چه | ګمراه ئے کړی | الله

خواهشونو پسے روان دی ـــــ نو دا سے خلق به څوک په سمه لار راوړی کوم چه الله ګمراه کړی وی؟

وَمَا لَهُمْ مِّنْ نّٰصِرِيْنَ ﴿۲۹﴾ فَاَقِمْ وَجْهَكَ لِلدِّيْنِ حَنِيْفًا ۗ

او نشته دے | دوی دَپاره | څوک مددګار | پس ته قائم کړه | خپل مخ | دَ دین طرف ته | یو طرف شوے

او دَ هغوئ به هیڅوک مددګارنه وی ـــــ ، نو ته همیشه خپل مخ دَ دین طرف ته ساته یو مخیزے اوسیږه

فِطْرَتَ اللّٰهِ الَّتِيْ فَطَرَ النَّاسَ عَلَيْهَا ۗ لَا تَبْدِيْلَ لِخَلْقِ اللّٰهِ ۗ

دا دَ الله فطرت دے | چه پیدا ئے کړل | خلق | په هغې باندې | نشته هیڅ بدلیدل | په دین دَ الله کښے

دَ الله تعالیٰ په فطرت قائم اوسیږه چه الله تعالیٰ پرے ټول خلق پیدا کړی ، دَ الله تعالیٰ پیدا کړی څیز ونه بدلول پکار نه دی

ذٰلِكَ الدِّيْنُ الْقَيِّمُ ۙ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۳۰﴾

هم دا دے | دین | درست | او لیکن | اکثر | خلق | نه پوهیږی

پس دغه سم دین دے . خو اکثر خلق نه پوهیږی ـــــ .

مُنِيْبِيْنَ اِلَيْهِ وَاتَّقُوْهُ وَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَلَا تَكُوْنُوْا

رجوع کوونکی | دَ دهٔ طرف ته | او ووېریږئ له دهٔ نه | او قائم کړئ | مونځ | او مه کیږئ تاسو

(خلقو!) الله تعالیٰ طرف ته رجوع وکړئ او دَ هغهٔ نه ویریږئ او دَ مونځ پابندی ساتئ او په مشرکانو کښے مهٔ

مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿۳۱﴾ مِنَ الَّذِيْنَ فَرَّقُوْا دِيْنَهُمْ وَكَانُوْا

له شرک کوونکو نه | له هغه کسانو نه | چه ټوټې ټوټې ئے کړو | خپل دین | او شول دوئ

شاملیږئ . کومو خلقو چه خپل دین ټکړے ټکړے کړو او فرقې فرقې

شِيَعًا ۗ كُلُّ حِزْبٍۢ بِمَا لَدَيْهِمْ فَرِحُوْنَ ﴿۳۲﴾ وَاِذَا مَسَّ

ډلے ډلے | هره یوه | ډله | په هغه څهٔ | چه دوئ سره دی | خوشحاله دی | او هر کله چه ورسیږی

شول هره فرقه هم په دے خوشحاله ده څهٔ چه دوی سره دی ، او څهٔ وخت چه خلقو

النَّاسَ ضُرٌّ دَعَوْا رَبَّهُمْ مُّنِيْبِيْنَ اِلَيْهِ ثُمَّ اِذَآ اَذَاقَهُمْ

خلقو ته | تکلیف | (نو) دوی بلی | خپل رب | رجوع کوونکی | دَ دهٔ طرف ته | بیا | هر کله چه | هغهٔ وڅکوی دوی

ته تکلیف ورسیږی نو خپل رب ته زاری ـــــ شروع کړی ، بیا هر کله چه هغه دَ خپل رحمت مزه په

مِّنْهُ رَحْمَةً اِذَا فَرِيْقٌ مِّنْهُمْ بِرَبِّهِمْ يُشْرِكُوْنَ ﴿۳۳﴾

له خپل طرف | (مزه) دَ رحمت | (نو) څهٔ وخت | یوه ډله | له دوی نه | دَ خپل رب سره | شریک نیسی

هغوئ وڅکوی نو ځنے کسان خپل رب له شریکان پیدا کول شروع کړی ـــــ

لِيَكْفُرُوا بِمَآ اٰتَيْنٰهُمْ ۚ فَتَمَتَّعُوا ۗ فَسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ۞۳۴

چه ناشکری وکړی | دَ هغه څهٔ | چه ورکړی دی مونږ دوی ته | پس فائده واخلئ | پس زر به | تاسو پوهه شئ

حاصل دا چه زمونږ دَ وربخښلو نعمتونو ناشکری کوی نو تاسو فائدے واخلئ، ډیر زر به تاسو ته (انجام) معلوم شی

اَمْ اَنْزَلْنَا عَلَيْهِمْ سُلْطٰنًا فَهُوَ يَتَكَلَّمُ بِمَا كَانُوْا بِهٖ

یا نازل کړے دے مونږ | په دوئ باندِ | څهٔ دلیل | پس دغه دلیل بیانوی | هغه څهٔ | چه دوی دے | دَ الله سره

آیا مونږ دے کافرانو ته څهٔ سند رالیږلے دے چه هغه .ورته دَ شرک خبرے

يُشْرِكُوْنَ ۞۳۵ وَاِذَآ اَذَقْنَا النَّاسَ رَحْمَةً فَرِحُوْا بِهَا ۚ وَاِنْ

شریکوی | او هر کله چه | مونږ وُڅکوو | خلقو ته | څهٔ رحمت | نو دوی خوشحاله شی | په هغے | او که چرے

بیانوی ؟ او هر کله چه مونږ دِے خلقو ته دَ خپلے مهربانئ لږ ډیر خوند وُښایو نو دوئ پرے خوشحاله شی (او شکر

تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ ۢ بِمَا قَدَّمَتْ اَيْدِيْهِمْ اِذَا هُمْ يَقْنَطُوْنَ ۞۳۶

ورسیږی دوی ته | څهٔ بدی | په وجه دَ هغے چه | وړاندِ لیږلی دی | دَ دوی لاسونو | نو ناګهانه دوی | نا اُمیده شی

نهٔ کوی) او که دَ خپل عمل دَ لاسه پرے څهٔ قدرے مصیبت راشی لو زر نا اُمیده شی (او صبر نهٔ کوی) ۔

اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّ اللّٰهَ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيَقْدِرُ ۚ اِنَّ

آیا دوی نهٔ دی کتلی | چه | الله | فراخه کوی | رزق | هغه چاته | چه وُغواړی | او تنګوی | بیشکه

آیا دوئ ته معلومه نهٔ ده چه الله تعالیٰ دَ چا په حقله وُغواړی نو روزی ورله فراخه کړی او چا دَ پاره چه وغواړی تنګه کړی

فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ۞۳۷ فَاٰتِ ذَا الْقُرْبٰى حَقَّهٗ

په دے کښے | نخښے دی | دَ پاره دَ هغه قوم | چه ایمان لری | پس ورکړه | رشته دار ته | دَ دهٔ حق

بیشکه په دِے کښے دَ ایماندارو خلقو دَ پاره ډیرے نخښے دی۔ نو تاسو خپلو رشته دارانو ته، مسکینانو

وَالْمِسْكِيْنَ وَابْنَ السَّبِيْلِ ۚ ذٰلِكَ خَيْرٌ لِّلَّذِيْنَ يُرِيْدُوْنَ

او مسکین | او مسافر ته (هم) | هم دا | غوره دی | هغه خلقو دَ پاره | چه غواړی

او مسافرو ته دَ هغوئ حق ورکوئ ۔ دا خبره دَ هغه خلقو دَ پاره ډیره غوره ده چه دَ الله تعالیٰ

وَجْهَ اللّٰهِ ۫ وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ۞۳۸ وَمَآ اٰتَيْتُمْ مِّنْ رِّبًا

رضا | دَ الله | او هم دا خلق دی | کامیاب | او څهٔ چه تاسو ورکوئ | له سود نه

رضامندی غواړی او هم دا خلق فلاح بیا مونددونکی دی او تاسو خلق چه (کوم رقم) په سود ورکوئ

لِّيَرْبُوَا۠ فِيْٓ اَمْوَالِ النَّاسِ فَلَا يَرْبُوْا عِنْدَ اللّٰهِ ۚ وَمَآ

چه ډیرشی هغه | په مالونو کښے | دَ خلقو | پس نهٔ ډیریږی هغه | په نزد دَ الله | او څهٔ چه

دَ خلقو په مال کښے ملاوُ شی زیات شی نو دا سے څیز دَ الله تعالیٰ سره نهٔ ډیریږی ۔ او چه کوم زکوٰة دَ الله

اٰتَيْتُمْ مِّنْ زَكٰوةٍ تُرِيْدُوْنَ وَجْهَ اللّٰهِ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُضْعِفُوْنَ ۞۳۹

تاسو ورکوئ | له صدقے نه | چه غواړئ تاسو | رضا دَ الله | پس دا خلق | هم دوی دی دوچند کوونکی

رضا دَ پاره ورکوئ نو دا سے خلق (خپل مالونه) دَ الله تعالیٰ سره لا په څو څو چنده زیاتوی

اَللّٰهُ الَّذِیْ خَلَقَكُمْ ثُمَّ رَزَقَكُمْ ثُمَّ یُمِیْتُكُمْ ثُمَّ یُحْیِیْكُمْ

(هم) الله دے | کوم چه | پیدا کړی تاسو | بیا | ده روزی درکړه تاسو ته | بیا | به مړه کړی تاسو | بیا به | ژوندی کړی تاسو

الله تعالی هغه ذات دے چه تاسوئے پیدا کړئ بیائے روزی درکړه بیا به درباندې مرګ راولی او بیا به مو (دوباره) ژوندی

هَلْ مِنْ شُرَكَآىِٕكُمْ مَّنْ یَّفْعَلُ مِنْ ذٰلِكُمْ مِّنْ شَیْءٍ

آیا | څوک شته ستاسو له شریکانو نه | چه وکړی | له دے (کارونو) نه | څۀ څیز

کوی - آیا ستاسو په شریکانو کښے څوک داسے شته چه په دے کارونو کښے یو هم وکړے شی ؟

سُبْحٰنَهٗ وَ تَعٰلٰى عَمَّا یُشْرِكُوْنَ ﴿۴۰﴾ ظَهَرَ الْفَسَادُ فِی الْبَرِّ

پاک دے دے | او ډیر لوئے دے | له هغه څۀ نه | چه دوی ئے شریکوی | ظاهر شو | فساد | په وچه

الله تعالی د دوی د پیدا کړو شریکانو نه پاک او ډیر اوچت دے - په اوچه او لوند ه (هر ځائے) کښے د خلقو د (بد)

وَ الْبَحْرِ بِمَا كَسَبَتْ اَیْدِی النَّاسِ لِیُذِیْقَهُمْ بَعْضَ

او په دریاب کښے | په وجه د هغه څه | چه کړی دی | لاسونو | د خلقو | د پاره د دے چه دے وڅکوی دوی ته (مزه) | د ځنے

عملونو په وجه فساد خور شوے دے ، چه الله تعالی دوی ته د ځنے عملونو (د سزا)

الَّذِیْ عَمِلُوْا لَعَلَّهُمْ یَرْجِعُوْنَ ﴿۴۱﴾ قُلْ سِیْرُوْا فِی الْاَرْضِ

هغه څه چه | دوی کړی دی | د پاره د دے چه دوی | بیرته راوګرځی | ووایه | وګرځئ | په زمکه کښے

خوند وښائی شاید چه دوی منع شی - (اے پیغمبره!) ورته ووایه چه په ټول ملک کښے وګرځئ

فَانْظُرُوْا كَیْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِیْنَ مِنْ قَبْلُ ؕ كَانَ اَكْثَرُهُمْ

بیا وګورئ | چه څنګه | شو | انجام | د هغه خلقو چه | وړاندې وو | وو | اکثر له دوی نه

نو وګورئ چه تاسو نه د مخکنو خلقو انجام څۀ شو ؟ په هغوئ کښے اکثر

مُّشْرِكِیْنَ ﴿۴۲﴾ فَاَقِمْ وَجْهَكَ لِلدِّیْنِ الْقَیِّمِ مِنْ قَبْلِ

مشرکان | پس ته سم کړه | خپل مخ | دین (د اسلام) طرف ته | چه درست دے | وړاندې له دے نه

خلق مشرکان وو ، نو ته خپل مخ سم دین طرف ته کرځیدلے سا ته ، د دے خبرے نه وړاندې چه هغه

اَنْ یَّاْتِیَ یَوْمٌ لَّا مَرَدَّ لَهٗ مِنَ اللّٰهِ یَوْمَىِٕذٍ یَّصَّدَّعُوْنَ ﴿۴۳﴾

چه راشی | هغه ورځ | چه نشته دے بیرته ګرځیدل | د هغے | د الله د طرف نه | په دغه ورځ به | دوی جدا جدا شی -

ورځ راشی چه بیا به د الله تعالی (وینا) نه پسته راګرځیدل نه کیږی ، په هغه ورځ به ټول خلق جدا جدا شی

مَنْ كَفَرَ فَعَلَیْهِ كُفْرُهٗ ۚ وَ مَنْ عَمِلَ صَالِحًا فَلِاَنْفُسِهِمْ

چا چه کفر وکړو | نو هم په هغه دے | (وبال) د ده د کفر | او چا چه عمل وکړو | نیک | نو هغوی هم د ځان د پاره

چا چه انکار وکړو نو د هغه د انکار ضرر به هم هغه ته رسیږی ، او څوک چه نیک کارونه کوی نو خپل ځان له سامان

یَمْهَدُوْنَ ﴿۴۴﴾ لِیَجْزِیَ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ

تیاری کوی | د پاره د دے چه جزا ورکړی الله | هغه خلقو ته | چه ایمان راوړی | او عملونه ئے وکړل | نیک

(د راحت) تیاروی - تو کوم خلق چه ایمان راوړی او هغوئ عملونه هم ښۀ وکړی

مِنۡ فَضۡلِهٖ ؕ اِنَّهٗ لَا یُحِبُّ الۡكٰفِرِیۡنَ ﴿۴۵﴾ وَمِنۡ اٰیٰتِهٖۤ

له خپل فضل نه | بیشکه دے | نهٔ خوښوی | کافران | اودَ دهٔ له نخښنو نه (دی)

هغوی ته به په خپل فضل سره صله ورکړی. بیشکه کافران دَ الله تعالیٰ خوښ نهٔ وی. اودَ هغهٔ په نخښنو کښے یوه دا ده

اَنۡ یُّرۡسِلَ الرِّیٰحَ مُبَشِّرٰتٍ وَّلِیُذِیۡقَكُمۡ مِّنۡ رَّحۡمَتِهٖ وَلِتَجۡرِیَ

چه رالیږی | بادونه | زیرے ورکوونکی | او چه وُڅکوی تاسو ته | له خپل رحمت نه | او چه جاری شی

چه هغه (د باران) زیرے ورکوونکی بادونه رالیږی دَ پاره دَدے چه دَ خپلے مهربانئ خوند دربانِدِ وُڅکی او دِ دے دَ پاره هم

الۡفُلۡكُ بِاَمۡرِهٖ وَلِتَبۡتَغُوۡا مِنۡ فَضۡلِهٖ وَلَعَلَّكُمۡ تَشۡكُرُوۡنَ ﴿۴۶﴾

کشتئ | دَ دهٔ په حکم | او چه تاسو وُلټوئ | دَ دهٔ فضل (روزی) | او چه تاسو | شکر وُکړئ

چه دَ هغهٔ په حکم کشتئ وُچلیږی او چه تاسو (دَ تجارت په ذریعه) دَ هغهٔ مقرره کړے روزی وُلټوئ او چه دَ هغهٔ شکر ادا کړئ.

وَلَقَدۡ اَرۡسَلۡنَا مِنۡ قَبۡلِكَ رُسُلًا اِلٰی قَوۡمِهِمۡ فَجَآءُوۡهُمۡ

او بیشکه | موږ لیږلی دی | ستا نه وړاندِ | پیغمبران | دَ دوی دَ قوم طرف ته | پس هغوئ راغلل دوی ته

او موږ ستا نه وړاندِ ډیر پیغمبران خپلو خپلو قومونو ته لیږلی دی ، نو هغوئ به ورته

بِالۡبَیِّنٰتِ فَانۡتَقَمۡنَا مِنَ الَّذِیۡنَ اَجۡرَمُوۡا ؕ وَكَانَ حَقًّا

په واضحه نخښنو سره | بیا موږ انتقام واخستو | دَ هغو خلقو نه | چه مجرمان وو | او وو | حق

ښکارندے نخښے یوړے ، نو بیا موږ دَ مجرمانو خلقو نه بدله واخسته ، او مؤمنانو له غلبه ورکول

عَلَیۡنَا نَصۡرُ الۡمُؤۡمِنِیۡنَ ﴿۴۷﴾ اَللّٰهُ الَّذِیۡ یُرۡسِلُ الرِّیٰحَ

په موږ بانِدِ | مدد ورکول | مؤمنانو ته | الله هغه دے چه | لیږی | بادونه

زموږ ذمه واری وه . الله تعالیٰ هغه ذات دے چه بادونه رالیږی نو هغه

فَتُثِیۡرُ سَحَابًا فَیَبۡسُطُهٗ فِی السَّمَآءِ كَیۡفَ یَشَآءُ

بیا هغه وچتوی | وریځے | بیا دے خوروی هغه | په آسمان کښے | څنګه چه | دے غواړی

(بادونه) وریځے راوُچتوی بیا چه الله تعالیٰ څنګه غواړی هغسے ئے په فضا کښے خوروی

وَیَجۡعَلُهٗ كِسَفًا فَتَرَی الۡوَدۡقَ یَخۡرُجُ مِنۡ خِلٰلِهٖ

او دے هغه کړی | ټوټے ټوټے | بیا ته وینے | څاڅکی | چه راوُځی | له مینځ دَ هغے نه

او غټو سکی غټو سکی ټړے ئے جوړوی نو تهٔ وینے ګورے چه دَ هغے دَ مینځ نه باران راورِیږی

فَاِذَاۤ اَصَابَ بِهٖ مَنۡ یَّشَآءُ مِنۡ عِبَادِهٖۤ اِذَا هُمۡ

بیا هر کله چه | دے وُرسوی | دا | هغه چاته چه غواړی | له خپلو بندګانو نه | نو هغه وخت | دوی

بیا چه الله تعالیٰ هغه باران په کومو بندګانو بانِدِ وُورِوی نو هغوئ پرِے خوشحالئ

یَسۡتَبۡشِرُوۡنَ ﴿۴۸﴾ وَاِنۡ كَانُوۡا مِنۡ قَبۡلِ اَنۡ یُّنَزَّلَ عَلَیۡهِمۡ

خوشحاله شی | اګر که وُو دوی | له دے نه وړاندِ | چه هغه (باران) نازل شی | په دوی بانِدِ

شروع کړی . اګر که هغوئ دَ باران دَ وریدلو نه وړاندِ دَ دِے خوشحالئ نه وړو مبے

مِّنْ قَبْلِهٖ لَمُبْلِسِيْنَ ﴿٤٩﴾ فَانْظُرْ اِلٰٓى اٰثٰرِ رَحْمَتِ اللّٰهِ كَيْفَ
له دے نه وړاندې | نا اُمیده | پس وګوره | طرف | دَ آثارو | دَ الله دَ رحمت | چه څنګه
قطعي نا امیده وو . نو ته دَ الله تعالیٰ دَ رحمت دِے نخښونه وګوره چه څنګه زمکه دَ مرګ
يُحْيِ الْاَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا ؕ اِنَّ ذٰلِكَ لَمُحْيِ الْمَوْتٰى ۚ
ژوندئ کوی | زمکه | پس دَ مړه کیدلو دَ ئے نه | بیشکه | دے | خامخا ژوندے کوونکے | دَ مړو دے
نه پس بیا راژوندئ کوی ؟ هم دغه خدائے دے چه مړی راژوندی کوی
وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿٥٠﴾ وَلَئِنْ اَرْسَلْنَا رِيْحًا فَرَاَوْهُ
او دے | په هر څیز باندې | قادر دے | او که چرے | راولیږو موږ | باد | پس دوی ووینی هغه
او هغه په هر څۀ باندې قدرت لری ؟ او که موږ په دوئ باندې بل شان سیلئ راوسته او دوی
مُصْفَرًّا لَّظَلُّوْا مِنْۢ بَعْدِهٖ يَكْفُرُوْنَ ﴿٥١﴾ فَاِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتٰى
زیړ شوے | نو دوی به ضرور شی | پس له هغے نه | ناشکری کوونکی | پس بیشکه ته | نۀ شے آورولے | مړو ته
خپل فصل زیړ وو وینی نو دَ ئے نه پس به هم (په زړو نعمتونو) ناشکری وکړی . نو ته مړو ته خبرے آورولے نۀ شے
وَلَا تُسْمِعُ الصُّمَّ الدُّعَآءَ اِذَا وَلَّوْا مُدْبِرِيْنَ ﴿٥٢﴾ وَمَآ اَنْتَ
او نۀ نۀ شے آورولے | کڼو ته | آواز دَ بلنے | هر کله چه | دوی واپس شی | شا ګرځونکی | او نۀ یئے ته
او کڼو ته آواز رسولے نۀ شے هر کله چه هغوئ درنه شا کړی او په شا غاړه درنه روان شی . او نۀ (دَ عقل
بِهٰدِ الْعُمْيِ عَنْ ضَلٰلَتِهِمْ ؕ اِنْ تُسْمِعُ اِلَّا مَنْ يُّؤْمِنُ
لاره ښودونکے | ړندو ته | له ګمراهئ دَ دوئ نه | ته نۀ شے آورولے | مګر هغه چا ته چه | ایمان راوړی
ړانده) دَ ګمراهئ نه سمے لارے ته راګرځولے نۀ شے ، ته خو بس هغه چا ته (دَ دین) خبره آورولے شے چه زموږ
بِاٰيٰتِنَا فَهُمْ مُّسْلِمُوْنَ ﴿٥٣﴾ ۧ اَللّٰهُ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ مِّنْ ضُعْفٍ
زموږ په آیتونو | پس هم دوی | مسلمانان دی | الله هغه دے چه | پیدا ئے کړئ تاسو | (په حالت دَ) کمزورئ کښے
په آیتونو یقین ساتی او هم دغه فرمانبردار دی . الله تعالیٰ هغه ذات دے چه تاسوئے دَ کمزورئ په حالت کښے پیدا کړی
ثُمَّ جَعَلَ مِنْۢ بَعْدِ ضُعْفٍ قُوَّةً ثُمَّ جَعَلَ مِنْۢ بَعْدِ قُوَّةٍ ضُعْفًا
بیا پیدا کړو دَ | پس | له کمزورئ نه | طاقت | بیا ئے پیدا کړه | پس | له طاقت نه | کمزوری
بیا دَ کمزورئ نه پس ئے طاقت درکړو ، بیا ئے دَ (ځوانئ دَ) طاقت نه پس درباندې کمزوری او بوډاتوب
وَّشَيْبَةً ؕ يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ ۚ وَهُوَ الْعَلِيْمُ الْقَدِيْرُ ﴿٥٤﴾ وَيَوْمَ
او بوډاوالے | دے پیدا کوی | څۀ چه دے غواړی | او دے | پوهه | قدرت والا دے | او په کومه ورځ
راوستلو . هغه چه څۀ غواړی نو هغه څیز پیدا کوی او الله تعالیٰ په هر څۀ پوهه دَ قدرتونو خاوند دے او څۀ وخت چه
تَقُوْمُ السَّاعَةُ يُقْسِمُ الْمُجْرِمُوْنَ ۙ۬ مَا لَبِثُوْا غَيْرَ سَاعَةٍ ؕ
چه قائم شی | قیامت | (نو) قسمونه به خوری | مجرمان خلق | چه نۀ وو پاتے شوی دوی | یو ساعت نه زیات
قیامت راشی نو مجرمان به قسمونه خوری ، چه موږ خو دَ یو درنګ شیبے نه زیات پاتے شوی نۀ وو ،

ع ۵
قرأ حفص بضم الضاد وفتحها في ثلاثتها لكن الضم مختار

كَذٰلِكَ كَانُوْا يُؤْفَكُوْنَ ۝٥٥ وَقَالَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ

دغه شان | دوی له لاره نه اړولی روان وو | او ووبه وائی | هغه خلق چه | ورته ورکړے شوے وو | علم

دوئ (په دنیا کښے) هم د غسے اړولی چلیدل۔ او چاله چه علم او ایمان (دواړه نعمتونه) ورکړے شوی

وَالْاِيْمَانَ لَقَدْ لَبِثْتُمْ فِيْ كِتٰبِ اللّٰهِ اِلٰى يَوْمِ الْبَعْثِ ۡ فَهٰذَا

او ایمان | بیشکه ووسیدلی وئی تاسو | (مطابق د) الله د کتاب | تر ورځے د دوباره پاڅیدلو | پس هم دا د

دی هغوئ به ووائی چه تاسو د الله تعالیٰ د لیک مطابق (په موده و موده) د قیامت تر ورځے پورے پاتے شوی یئ نو دا نن د

يَوْمُ الْبَعْثِ وَلٰكِنَّكُمْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ۝٥٦ فَيَوْمَئِذٍ لَّا يَنْفَعُ الَّذِيْنَ

د دوباره پاڅیدلو ورځ | او لیکن تاسو | نهٔ پوهیدلئ۔ | پس په دغه ورځ به | فائده نهٔ ورکوی | هغوته

قیامت هغه ورځ دهٔ ، مګر تاسو به پرے نهٔ پوهیدلئ۔ نو په دغه ورځ به ظالمانو ته خپل عذرونه

ظَلَمُوْا مَعْذِرَتُهُمْ وَلَا هُمْ يُسْتَعْتَبُوْنَ ۝٥٧ وَلَقَدْ ضَرَبْنَا لِلنَّاسِ

چه ظلم ئے وکړو | عذر د هغوئ | او نهٔ به له دوی نه | تو به قبوله شی | او بیشکه | موږ بیان کړی دی | خلقو ته

هیڅ فائده ورنه کړی او نهٔ به د الله تعالیٰ د راضی کولو دوی ته موقع ورکولے شی۔ او موږ د خلقو د فائدے د پاره په

فِيْ هٰذَا الْقُرْاٰنِ مِنْ كُلِّ مَثَلٍ ۭ وَلَئِنْ جِئْتَهُمْ بِاٰيَةٍ

په دے قرآن کښے | د هر قسم | مثالونه | او که چرے | راوړے تهٔ دوی ته | څهٔ معجزه

دے قرآن کښے هر قسم مضامین بیان کړی دی۔ او که چرے تهٔ دے کافرانو ته څهٔ معجزه پیش کړے نو

لَّيَقُوْلَنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اِنْ اَنْتُمْ اِلَّا مُبْطِلُوْنَ ۝٥٨ كَذٰلِكَ

نو ضرور به ووائی | هغه خلق چه | کافران دی | چه نهٔ یئ تاسو | مګر | دروغ ویونکی | دغه شان

بیا هم څوک چه کافران دی هغوئ به دا ووائی چه تاسو خو بس دروغژن یئ۔ دغه شان

يَطْبَعُ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِ الَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ ۝٥٩ فَاصْبِرْ

مهر لګوی الله | په زړونو | د هغو خلقو | چه نهٔ پوهیږی | پس صبر کوه

الله تعالیٰ د هغه خلقو په زړونو مهر لګوی څوک چه نهٔ پوهیږی۔ پس تهٔ صبر کوه

اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ وَّلَا يَسْتَخِفَّنَّكَ الَّذِيْنَ لَا يُوْقِنُوْنَ ۝٦٠

بیشکه | وعده د الله | حقه ده | او بے صبره دِ نهٔ کړی تا | هغه خلق چه | یقین نهٔ لری۔

د الله تعالیٰ وعده د بېشنیږې ده او (خیال ساته) چه دا بے یقینه خلق تا بے قابو نهٔ کړے شی

سُوْرَةُ لُقْمٰنَ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ اَرْبَعٌ وَّثَلٰثُوْنَ اٰيَةً وَّاَرْبَعُ رُكُوْعَاتٍ

سورة لقمان په مکه کښے نازل شوا دے او په دے کښے ۳۴ آیتونه او ۴ رکوع ګانے دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع) د الله په نوم چه لوئے مهربان او ډیر زیات رحم کوونکے دے

د الله په نامه شروع کوم چه لوئے مهربان او ډیر زیات رحم کاوند دے۔

الٓمّٓ ۝١ۚ تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ الْحَكِيْمِ ۝٢ۙ هُدًى وَّرَحْمَةً

الٓمّٓ | دا | آیتونه دی | د کتاب | حکمت والا | هدایت | او رحمت دے

الف۔ لام۔ میم دا د دا سے کتاب آیتونه دی چه په حکمت پوره دے۔ چه نیکانو له هدایت او

لِلْمُحْسِنِيْنَ ۝٣ الَّذِيْنَ يُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ وَيُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ

دَ پاره دَ نیکانو | کوم چه | قائموی | مونځ | او ورکوی | زکوٰة

رحمت دے هغه کسانو له چه دَ مونځ پابندی کوی او زکوٰة ورکوی

وَهُمْ بِالْاٰخِرَةِ هُمْ يُوْقِنُوْنَ ۝٤ اُولٰٓئِكَ عَلٰى هُدًى

او دوئ | په آخرت باندِ | یقین لری | هم دا خلق دی | په هدایت باندِ

او په آخرت باندِ پوره پوره یقین ساتی۔ دغه خلق دی چه دَ خپل رب طرف نه په

مِّنْ رَّبِّهِمْ وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ۝٥ وَمِنَ النَّاسِ مَنْ

دَ خپل رب له طرف نه | او هم دا دی | خلاصے موندونکی | او ځنے له خلقو نه | هغه څوک دی

راغلے سمه لار روان دی او هم دغه کسان نجات موندونکی دی او په خلقو کښے هغه (بدبخت) هم دی

يَّشْتَرِيْ لَهْوَ الْحَدِيْثِ لِيُضِلَّ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ

چه اخلی | فضول کلام | دَ پاره دَدے چه گمراهه کړی | دَ الله دَ لارے نه | بے دَ علم نه

چه دَ الله تعالیٰ نه غافله کونکے خبرے په بیعه اخلی چه خلق پرے بے دَ پوهے نه دَ الله تعالیٰ دَ لارے نه گمراه کړی

وَّيَتَّخِذَهَا هُزُوًا ؕ اُولٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ ۝٦ وَاِذَا

او وُ کړی دِ دے پورے | توقے | هم دا خلق دی | چه دوی دَ پاره | عذاب دے | رسواکوونکے | او هر کله چه

او دَ الله په (رالیږلی) تعلیم پورے ملنډے وکړی، دا سے خلقو له سپکوونکے عذاب مقرر دے۔ او هغهٔ وخت چه

تُتْلٰى عَلَيْهِ اٰيٰتُنَا وَلّٰى مُسْتَكْبِرًا كَاَنْ لَّمْ يَسْمَعْهَا

لوستلے کیږی | دهٔ ته | زمونږ آیتونه | نو مخ واړوی | په غرور سره | لکه چه | دهٔ نهٔ دی آوریدلی هغه

دَ هغهٔ په وړاندِ زمونږ آیتونه لوستلے شی نو دے ترے نه په غرور سره مخ واړوی لکه چه هغهٔ و آوریدلی ئے نهٔ وی

كَاَنَّ فِيْٓ اُذُنَيْهِ وَقْرًا ۚ فَبَشِّرْهُ بِعَذَابٍ اَلِيْمٍ ۝٧

لکه چه | دَ دهٔ په دواړو غوږونو کښے | درونوالے دے | پس زیرے ورکړه دهٔ ته | دَ عذاب | دردناک

لکه چه غوږونه ئے درانهٔ وی۔ نو (اے پیغمبره!) دَ دردناک عذاب زیرے ورته ورکړه

اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَهُمْ جَنّٰتُ

بیشکه | هغه خلق چه | ایمان ئے راوړو | او عملونه ئے وکړل | نیک | هغوی دَ پاره | باغونه دی

بیشکه څوک چه ایماندار دی او دَ نیکئ کارونه کوی، هغوئ له دَ عیش باغونه

النَّعِيْمِ ۝٨ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ؕ وَعْدَ اللّٰهِ حَقًّا ؕ وَهُوَ الْعَزِيْزُ

دَ نعمت | همیشه به وی دوی | په هغے کښے | وعده ده | دَ الله | رشتینے | او دے | غالب

تیار دی چه همیشه به په کښے (خوشحاله) اوسیږی دا دَ الله تعالیٰ پخه وعده ده او هغه زبردست او دَ

الْحَكِيْمُ ۝٩ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ بِغَيْرِ عَمَدٍ تَرَوْنَهَا

حکمت والا دے | دهٔ پیدا کړل | آسمانونه | بے | دَ ستنو | تاسو وینئ دا

حکمتونو خاوند دے۔ هغهٔ آسمانونه بے له ستنو ودرولی دی چه تاسو ئے په خپله وینئ

وَاَلْقٰى فِى الْاَرْضِ رَوَاسِىَ اَنْ تَمِيْدَ بِكُمْ وَبَثَّ

او دهٔ وغورزول | په زمکه کښې | غرونه | چه (نهٔ) خوزی دا | په تاسو | او خوارهٔ کړل

او په زمکه ئے د غرونو (میخونه) لګولی دی چه په تاسو نهٔ جړقیږی او هر قسم

فِيْهَا مِنْ كُلِّ دَآبَّةٍ ؕ وَاَنْزَلْنَا مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَاَنْۢبَتْنَا

په دے کښې | دَ هر قسم ځناور | او مونږ را اُوورولے | له آسمان نه | اُوبهٔ | بیا را زرغون کړل مونږ

ځناور ئے په کښې خوارهٔ کړی دی او مونږ له آسمان نه اُوبهٔ راوُوروے ، او په زمکه کښې

فِيْهَا مِنْ كُلِّ زَوْجٍ كَرِيْمٍ ⑩ هٰذَا خَلْقُ اللّٰهِ فَاَرُوْنِىْ

په دے کښې | دَ هر قسم | جوړے | ښے | دا (څو) | مخلوق دے | دَ الله | پس تاسو وُښایئی ماته

مو هر قسم ښهٔ ښیزونه را زرغون کړل ۔ دا خو دَ الله تعالیٰ جوړ کړی ښیزونه شول نو اوس ماته وُښایئی

مَاذَا خَلَقَ الَّذِيْنَ مِنْ دُوْنِهٖ ؕ بَلِ الظّٰلِمُوْنَ

چه څهٔ | پیدا کړی دی | هغه (معبودانو) | چه دَ دهٔ نه سیوا دی؟ | بلکه | ظالمان

چه دَ الله تعالیٰ نه سیوا بل چا نور څهٔ پیدا کړی دی ؟ اصل خبره دا ده چه دا خلق په ښکاره

فِىْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ع ⑪ وَلَقَدْ اٰتَيْنَا لُقْمٰنَ الْحِكْمَةَ اَنِ اشْكُرْ

په ښکاره ګمراهئی کښے دی | او بیشکه | مونږ ورکړے وو | لقمان ته | حکمت | چه شکر وکړه

ګمراهئی کښے دی ۔ او بیشکه مونږ لقمان ته هوښیارتیا ورکړه (او وُمو وئیل) چه دَ الله تعالیٰ

لِلّٰهِ ؕ وَمَنْ يَّشْكُرْ فَاِنَّمَا يَشْكُرُ لِنَفْسِهٖ ۚ وَمَنْ كَفَرَ

دَ الله | او څوک چه | شکر کوی | نو بیشکه | هغه شکر کوی | دَ خپل ځان دَ پاره | او څوک چه | ناشکری کوی

شکر کوه او څوک چه شکر کوی نو دَ خپل ځان دَ فائدے دَ پاره ئے کوی ، او څوک چه ناشکری کوی

فَاِنَّ اللّٰهَ غَنِىٌّ حَمِيْدٌ ⑫ وَاِذْ قَالَ لُقْمٰنُ لِابْنِهٖ وَهُوَ

نو بیشکه | الله | بے نیازه | دَ تعریف لائق دے | او هر کله چه | وُوئیل | لقمٰن | خپل ځوئے ته | او هغهٔ

نو الله تعالیٰ بے نیازه دَ تعریفونو قابل دے ۔ او څهٔ وخت چه لقمان خپل ځوئے ته دَ نصیحت په

يَعِظُهٗ يٰبُنَىَّ لَا تُشْرِكْ بِاللّٰهِ ؕ اِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ

نصیحت کولو دهٔ ته | اے زما ځویه! | تهٔ شریک مهٔ نیسه | دَ الله سره | بیشکه | شرک | ظلم دے

طور وُوئیل چه اے زما ځویه! تهٔ خدائے له شریک مهٔ پیدا کوه ، بیشکه شرک ډیر لوئے ظلم

عَظِيْمٌ ⑬ وَوَصَّيْنَا الْاِنْسَانَ بِوَالِدَيْهِ ۚ حَمَلَتْهُ اُمُّهٗ

ډیر لوئے | او مونږ حکم وکړو | انسان ته | دَ دهٔ دَ پلار او مور په حقله | وُچت کړو دے | دَ دهٔ مور

دے ۔ او مونږ بنیادم ته دَ مور او پلار په حقله ډیر تاکید کړے دے ۔ (ځکه چه) مور دَ ډیرے کمزورئی

وَهْنًا عَلٰى وَهْنٍ وَّفِصٰلُهٗ فِىْ عَامَيْنِ اَنِ اشْكُرْ لِىْ

ضعف په ضعف باندِ | او له تی نه خلاصول دَ دهٔ | په دوؤ کالو کښے دی | دا چه شکر وکړه | زما

سره په ګیډه کښے سنبال وُ ساتلو او بیا په دوه کاله کښے ئے دَ تی نه خلاص کړو چه اے بنده! تهٔ زما هم او دَ مور پلار

النصف

وَلِوَالِدَيْكَ ۗ إِلَيَّ الْمَصِيرُ ⑭ وَإِنْ جَاهَدَاكَ عَلَىٰ أَنْ تُشْرِكَ

او دَ خپل مور او پلار | هم زما طرف ته واپس راتلل دی | او کهٔ چرے | کوشش کوی دوی په تا | په دے چه ته شریک مقرر کړے

هم شکر کوه او ما ته په خامخا پستنه راتلے ۔ او کهٔ چرے دوئ دواړه دربانډې دا زور راچوی چه ته ما سره بغیر

بِي مَا لَيْسَ لَكَ بِهِ عِلْمٌ فَلَا تُطِعْهُمَا ۖ وَصَاحِبْهُمَا

ما سره | هغه څیز | چه نشته دے | تا ته | دَ هغې | څهٔ علم | نو دَ دوئ فرمانبرداری مهٔ کوه | او تعلق سا ته دَ دوئ سره

دَ څهٔ دلیل نه څوک شریک ومنه ، نو دَ هغوئ دواړو خبره مهٔ منه او په دُنیا کښې هغوی سره

فِي الدُّنْيَا مَعْرُوفًا ۖ وَاتَّبِعْ سَبِيلَ مَنْ أَنَابَ إِلَيَّ ۚ ثُمَّ

په دنیا کښې | په ښه طریقه | او پیروی کوه | دَ لارے | دَ هغه چا | چه رجوع کوی | طرف زما ته | بیا

ښهٔ سلوک ساته ، او دَ هغه چا په لاره روان وُسیږه چه ما ته رجوع کوی ، بیا ستاسو

إِلَيَّ مَرْجِعُكُمْ فَأُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ ⑮ يَا بُنَيَّ

زما طرف ته | ستاسو واپس راتلل دی | پس زهٔ به وښایم تاسو ته | څهٔ چه | تاسو کول - | اے زما څویه!

دَ ټولو ما ته واپس راتلل دی ، بیا به زهٔ ستاسو دَ عملونو نه تاسو خبر کړم ۔ (لقمان ووئیل) اے زما څویه!

إِنَّهَا إِنْ تَكُ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِنْ خَرْدَلٍ فَتَكُنْ فِي صَخْرَةٍ

بیشکه (څهٔ عمل) | کهٔ چرے وی | برابر | دَ دانے | دَ اوړی | بیا وی | په یو کاڼړی کښې

کهٔ یو عمل دَ اوړی دَ دانے هومره نړے وی بیا هغه په یو کاڼړی کښې دننه پټ پروت وی

أَوْ فِي السَّمَاوَاتِ أَوْ فِي الْأَرْضِ يَأْتِ بِهَا اللَّهُ ۚ إِنَّ اللَّهَ

یا | په آسمانونو کښې | یا | په زمکه کښې | حاضر به کړی | هغه | الله | بیشکه | الله

یا په آسمانونو کښې یا په زمکه کښې دننه پټ وی نو الله تعالیٰ به ئے راحاضر کړی. بیشکه الله تعالیٰ ډیر

لَطِيفٌ خَبِيرٌ ⑯ يَا بُنَيَّ أَقِمِ الصَّلَاةَ وَأْمُرْ بِالْمَعْرُوفِ

باریک بین | خبردار دے | اے زما څویه! | قائم کړه | مونځ | او حکم کوه | دَ نیکئ

باریک بین (او) باخبره دے ۔ اے زما څویه! مونځ کوه او خلقو ته دَ نیکئ حکم ورکوه،

وَانْهَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَاصْبِرْ عَلَىٰ مَا أَصَابَكَ ۖ إِنَّ ذَٰلِكَ

او منع کوه | له بدئ نه | او صبر کوه | په هغه څهٔ | چه دررسی تا ته | بیشکه | دا

او دَ بدئ نه خلق منع کوه او چه کوم مصیبت دربانډې راشی نو په هغے صبر کوه۔ بیشکه دا ډیر

مِنْ عَزْمِ الْأُمُورِ ⑰ وَلَا تُصَعِّرْ خَدَّكَ لِلنَّاسِ وَلَا تَمْشِ

دَ همّت | له کارونو نه (دے) | او مهٔ تاوَوه | خپل مخ | له خلقو نه | او مهٔ ځه

دَ همّت کار دے ۔ او خلقو ته خپل مخ مهٔ پړسوه ، او په زمکه

فِي الْأَرْضِ مَرَحًا ۖ إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ كُلَّ مُخْتَالٍ فَخُورٍ ⑱

په زمکه کښې | په غرور سره | بیشکه | الله | نهٔ خوښوی | هر | مغروره | فخر کوونکے

بانډې غاړه مهٔ کړځه ۔ دَ الله تعالیٰ غاړه فخر کوونکی خلق خوښ نهٔ دی

وَاقْصِدْ فِیْ مَشْیِكَ وَاغْضُضْ مِنْ صَوْتِكَ ؕ اِنَّ

او میانه روی کوه | په خپل تګ کښې | او ښکته کړه | خپل آواز | بیشکه

او په خپل تګ کښې اعتدال ساته او په خپل آواز کښې نرمي پیدا کړه ۔ بیشکه په

ع ۲ ۸ ۱۱ اَنْكَرَ الْاَصْوَاتِ لَصَوْتُ الْحَمِیْرِ ۟۱۹ اَلَمْ تَرَوْا اَنَّ اللّٰهَ

ډېر زیات بد | په آوازونو کښې | آواز | دَ خر دے | ایا تاسو نهٔ دی کتلی | چه | الله

آوازونو کښې خراب آواز دَ خر دے ۔ ایا تاسو دا نهٔ وینئ چه الله تعالیٰ

سَخَّرَ لَكُمْ مَّا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا فِی الْاَرْضِ وَاَسْبَغَ

په کار لګولی دی | تاسو دَ پاره | هغه څهٔ | چه په آسمانونو کښې دی | او هغه څهٔ | چه په زمکه کښې دی | او دهٔ پوره کړل

دَ آسمانونو او دَ زمکے ټول څیزونه ستاسو په خدمت باندې لګولی دی ، او تاسو ته ئے

عَلَیْكُمْ نِعَمَهٗ ظَاهِرَةً وَّبَاطِنَةً ؕ وَمِنَ النَّاسِ مَنْ

په تاسو | خپل نعمتونه | ښکاره | او پټ | او ځنې له خلقو نه | هغه څوک دی چه

خپل ښکاره او پټ نعمتونه پوره په پوره درکړی دی ، او ځنې خلق داسے دی چه دَ الله تعالیٰ

یُّجَادِلُ فِی اللّٰهِ بِغَیْرِ عِلْمٍ وَّلَا هُدًی وَّلَا كِتٰبٍ مُّنِیْرٍ ۟۲۰

بحث کوی | دَ الله په حقله | بغیر دَ علم نه | او بغیر دَ هدایت نه | او بغیر دَ روښانه کتاب نه

په حقله بغیر دَ څهٔ واقفیت نه او بغیر دَ څهٔ دلیل نه او بغیر دَ یو روښانه کتاب نه (ناسره) جګړے کوی

وَاِذَا قِیْلَ لَهُمُ اتَّبِعُوْا مَاۤ اَنْزَلَ اللّٰهُ قَالُوْا

او هر کله چه | وو ئیلے شی | دوی ته | چه پیروی وکړئ | دَ هغه څهٔ | چه نازل کړو | الله | (نو) دوی وائی

او هر کله چه ورته وو ئیلے شی چه دَ هغه حکمونو پیروی کوئ چه الله تعالیٰ نازل کړی دی نو دا وائی چه نه

بَلْ نَتَّبِعُ مَا وَجَدْنَا عَلَیْهِ اٰبَآءَنَا ؕ اَوَلَوْ كَانَ الشَّیْطٰنُ

بلکه | مونږ به پیروی کوو | دَ هغه څهٔ چه موندلی دی مونږ | په هغے باندې | خپل پلاران | آیا اګر که | شیطان

مونږ خو به هم په هغه لاره باندې ځو په کومه چه مونږ خپل پلار نیکهٔ روان موندلی دی اګر که په دغه لاره باندې

یَدْعُوْهُمْ اِلٰی عَذَابِ السَّعِیْرِ ۟۲۱ وَمَنْ یُّسْلِمْ وَجْهَهٗۤ اِلَی اللّٰهِ

بللی دوی | طرف دَ عذاب | دَ دوزخ ته | او څوک چه | متوجه کړی | خپل مخ | دَ الله طرف ته

شیطان ئے دَ دوزخ انګار ته رابولی ، او څوک چه خپل مخ الله تعالیٰ ته وسپاری

وَهُوَ مُحْسِنٌ فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقٰی ؕ وَاِلَی اللّٰهِ

او دے | نیکوکار وی | نو بیشکه دهٔ ونیوله | کړئ | مضبوطه | او الله طرف ته دے

او په اخلاص نیکی کوی ، نو هغهٔ مضبوطه کړئ ونیوله ، او آخر دَ ټولو کارونو

عَاقِبَةُ الْاُمُوْرِ ۟۲۲ وَمَنْ كَفَرَ فَلَا یَحْزُنْكَ كُفْرُهٗ ؕ اِلَیْنَا مَرْجِعُهُمْ

آخر | دَ (ټولو) کارونو | او څوک چه کفر وکړی | نو غمژن دِ نهٔ کړی تا | دَ هغهٔ انکار | زمونږ طرف ته دی | دَ دوئ واپس راتلل

انجام الله تعالیٰ ته دے ۔ او چا چه کفر غوره کړو نو ته دَ هغهٔ دَ کفر په وجه مهٔ غمژن کیږه مونږ ته به دوئ ټول بیرته راځی

فَنُنَبِّئُهُمْ بِمَا عَمِلُوْا ۭ اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ﴿۲۳﴾

بیا به مونږ ونښایو دوی ته | څه چه | عمل وکړو دوی | بیشکه الله | ښۀ پوهه دے | په رازونو | دَ سینو

نو مونږ به ورته خپل ټول کارونه په ګوته کوو ، بیشکه الله تعالیٰ ته دَ زړۀ د ټو پټ رازونه ښۀ معلوم دے.

نُمَتِّعُهُمْ قَلِيْلًا ثُمَّ نَضْطَرُّهُمْ اِلٰى عَذَابٍ غَلِيْظٍ ﴿۲۴﴾ وَلَئِنْ

مونږ به فائده ورکړو دوی ته | لږه | بیا به مونږ وشړو دوی | طرف دَ عذاب | سخت ته | او که چرے

مونږ به دوی له لږه شان موقع ورکوؤ او بیا به ئے یو سخت عذاب طرف ته راکاږو ، او که ته ترے نه

سَاَلْتَهُمْ مَّنْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ لَيَقُوْلُنَّ اللّٰهُ ۭ

ته تپوس وکړے له دوی نه | چه چا | پیدا کړل | آسمانونه | او زمکه | نو دوی به ضرور ووائی | هم الله

تپوس وکړے چه دا آسمانونه او زمکه چا پیدا کړی دی ؟ نو په جواب کښے به ووائی چه الله

قُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ ۭ بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۲۵﴾ لِلّٰهِ مَا

ووایه | ټول تعریفونه | الله لره دی | بلکه | اکثر له دوی نه | نۀ پوهیږی | هم دَ الله دی | څه چه

نو ته ورته ووایه چه ټول تعریفونه دَ الله (په کار) دی خو په دوی کښے اکثر خلق نۀ پوهیږی، دَ آسمانونو او دَ

فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ اِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْغَنِيُّ الْحَمِيْدُ ﴿۲۶﴾ وَلَوْ اَنَّ مَا

په آسمانونو کښے | او زمکه کښے دی | بیشکه هم الله دے | بے نیازه | دَ حمد لائق | او که چرے | هغه څه

زمکے هر څیز دَ الله تعالیٰ مال دے . بیشکه چه الله تعالیٰ بے نیازه دَ تعریفونو خاوند دے - او که دَ

فِي الْاَرْضِ مِنْ شَجَرَةٍ اَقْلَامٌ وَّالْبَحْرُ يَمُدُّهٗ مِنْۢ بَعْدِهٖ

چه په زمکه کښے دی | له اُونو نه | قلمونه شی | او دریاب (سیاهی) | چه مدد وکړی دَ دے | له دے نه پس

زمکے په مخ باندے دا ټولے اُونے قلمونه شی او سمندر سیاهی جوړه شی او دَ دے دَ مدد دَ پاره

سَبْعَةُ اَبْحُرٍ مَّا نَفِدَتْ كَلِمٰتُ اللّٰهِ ۭ اِنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ﴿۲۷﴾

اووۀ | دریابونه (نور) | (نو هم به) ختمے نۀ شی | خبرے | دَ الله | بیشکه الله | ډیر غالب | حکمت والا دے

اووۀ سمندرونه نور راشی بیا به هم دَ الله تعالیٰ خبرے ختمے نه شی، بیشکه الله زبردست دَ حکمتونو خاوند دے .

مَا خَلْقُكُمْ وَلَا بَعْثُكُمْ اِلَّا كَنَفْسٍ وَّاحِدَةٍ ۭ اِنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌۢ بَصِيْرٌ ﴿۲۸﴾

نۀ دی پیدا کول ستاسو | او نۀ راپورته کول ستاسو | مګر په شان دَ یو تن | بیشکه الله | اَورېدونکے | لیدونکے دے

ستاسو دَ ټولو په اول ځل راپیدا کول او بیا سر دوباره ژوندی کول بالکل داسے دی لکه دَ یو سړی راپیدا کول الله هر خبره اَوری هر عمل

اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ يُوْلِجُ الَّيْلَ فِي النَّهَارِ وَيُوْلِجُ النَّهَارَ فِي الَّيْلِ

آیا تا نۀ دی کتلی | چه الله | داخلوی | شپه | په ورځ کښے | او داخلوی | ورځ | په شپه کښے

وینی ګوری . آیا تا ته معلومه نۀ ده چه الله تعالیٰ شپه په ورځ کښے او ورځ په شپه کښے ور ننباسی ؟

وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ ۡ كُلٌّ يَّجْرِيْٓ اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى

او دۀ تابع کړی دی | نمر | او سپوږمئ | هر یو | روان دے | تر موده | مقرر ے پورے

او هم دۀ نمر او سپوږمئ په کار باندے لګولی دی چه هر څیز به تر مقرر ے نیټے پورے روان وی

وَاَنَّ اللّٰهَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ﴿٣٩﴾ ذٰلِكَ بِاَنَّ اللّٰهَ هُوَ الْحَقُّ

او بیشکه الله | له هغه څه نه | چه تاسو ئے کوئ | خبردار دے | دا | حُکه چه الله | هم دے دے برحق

او الله تعالیٰ ستاسو په ټولو کارونو خبر دے۔ دا حُکه چه الله تعالیٰ په خپله هستئ کښے په خپله کامل دے

وَاَنَّ مَا يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهِ الْبَاطِلُ ۙ وَاَنَّ اللّٰهَ هُوَ الْعَلِيُّ

او چه کوم څیز (هم) | دوی بلی | سیواله ده نه | هغه باطل دی | او بیشکه | هم الله دے | عالیشان

او دوئ چه دَ الله تعالیٰ نه سیوا دَ نورو چا بلنه کوی هغه ټول باطل دی۔ او الله تعالیٰ دَ هر څیز نه اوچت ډیر

الْكَبِيْرُ ﴿٣٠﴾ اَلَمْ تَرَ اَنَّ الْفُلْكَ تَجْرِيْ فِي الْبَحْرِ بِنِعْمَتِ اللّٰهِ ع ٣ ١١ ١٢

ډیر لوئے | آیا تاسو نه دی کتلی | چه کشتئ | روانه وی | په دریاب کښے | په فضل دَ الله

لوئے دے، آیا تۀ نۀ وینے چه هم دَ الله تعالیٰ په فضل سره کشتئ په دریاب کښے چلیږی

لِيُرِيَكُمْ مِّنْ اٰيٰتِهٖ ؕ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّكُلِّ صَبَّارٍ شَكُوْرٍ ﴿٣١﴾

چه دے وښائی تاسو ته | خپلے نخښے | بیشکه | په دے کښے | نخښے دی | دَ پاره دَ هر | صبر کوونکی | شکر کوونکی

چه تاسو ته دَ خپل قدرت نخښے وُښائی۔ بیشکه چه په دے کښے دَ هر صبر کوونکی او شکر کوونکی دَ پاره نخښے پرتے دی

وَاِذَا غَشِيَهُمْ مَّوْجٌ كَالظُّلَلِ دَعَوُا اللّٰهَ مُخْلِصِيْنَ لَهُ

او هر کله چه | پټ کړی دوی | چپه | په شان دَ سائبان | نو بلی دوی الله | خالص کوونکی | دَ پاره دَ هغه

او هر کله چه (دَ سمندر) چپے دَ څپرو نو په شان په دوئ باندے راوُخیژی نو دوئ ډیر په اخلاص سره دَ الله بلنه شروع

الدِّيْنَ ۚ فَلَمَّا نَجّٰىهُمْ اِلَى الْبَرِّ فَمِنْهُمْ مُّقْتَصِدٌ ؕ

عبادت | بیا هر کله چه | نجات ورکړی دوی ته | دَ اُوچے طرف ته | نو (څوک) له دوی نه | په اعتدال وی

کړی، خو چه هغه ئے دَ اُوچے طرف ته راخلاص کړی نو ډیر لږ خلق په کښے په اعتدال پاتے کیږی

وَمَا يَجْحَدُ بِاٰيٰتِنَآ اِلَّا كُلُّ خَتَّارٍ كَفُوْرٍ ﴿٣٢﴾ يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوْا

او انکار نۀ کوی | زمونږ دَ آیتونو | مگر | وعده ماتوونکے | ناشکر گزار | اے خلقو! | ویریږئ

او زمونږ دَ آیتونو نه خو هغه خلق انکار کوی چه بے لوظه ناشکره وی۔ اے خلقو! دَ خپل رب دَ عذاب

رَبَّكُمْ وَاخْشَوْا يَوْمًا لَّا يَجْزِيْ وَالِدٌ عَنْ وَّلَدِهٖ ۫ وَلَا مَوْلُوْدٌ

له رب خپل نه | او ویره کوئ | له هغه ورځے نه | (چه) په کار به رانۀ شی | (هیڅ) پلار | دَ خپل ځوئے | او نۀ (څوک) ځوئے

نه ویره کوئ او دَ هغے ورځے نه ویریږئ چه یو پلار به دَ خپل ځوئے بدله ورکولے نۀ شی او نۀ به یو ځوئے دَ

هُوَ جَازٍ عَنْ وَّالِدِهٖ شَيْـًٔا ؕ اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ فَلَا تَغُرَّنَّكُمُ الْحَيٰوةُ

به په کار راځی | دَ خپل پلار | دَ څۀ څیز | بیشکه | وعده دَ الله | رښتیا ده | پس دوکه دِ نۀ کړی تاسو | ژوند

خپل پلار څۀ په کار راشی۔ بیشکه دَ الله تعالیٰ وعده رښتینے ده، پس دَ دنیا ژوند مو په دوکه کښے

الدُّنْيَا ۥ وقفه وَلَا يَغُرَّنَّكُمْ بِاللّٰهِ الْغَرُوْرُ ﴿٣٣﴾ اِنَّ اللّٰهَ عِنْدَهٗ عِلْمُ

دَ دُنیا | او دوکه دِ نۀ کړی تاسو ته | دَ الله په حقله | دوکه ورکوونکے (شیطان) | بیشکه الله | هم دۀ سره دے | علم

وانۀ چوی او نۀ دوکه باز شیطان مو دَ الله تعالیٰ په حقله په دوکه کښے واچوی۔ بیشکه هم الله تعالیٰ ته دَ قیامت

السَّاعَةِ ۚ وَيُنَزِّلُ الْغَيْثَ ۚ وَيَعْلَمُ مَا فِي الْأَرْحَامِ ۖ وَمَا تَدْرِي

دَ قیامت | او دے نازلوی | باران | او پوهیږی | په هغه څه چه په خیټو دَ حاملو کښے دی | او نه پوهیږی

علم دے او هم هغه باران وروی او هم هغه دَ رحم دننه (ماشوم) پیژنی - او هیچا ته معلومه

نَفْسٌ مَّاذَا تَكْسِبُ غَدًا ۖ وَمَا تَدْرِي نَفْسٌ بِأَيِّ أَرْضٍ

هیڅ کس چه | څه به | کوی هغه | صبا له | او نه | پوهیږی | هیڅ کس چه | په کومه زمکه به

نه دَه چه صبا به څهٔ کوی ؟ او هیچا ته معلومه نهٔ دَه چه کوم ځائے به مړ

تَمُوتُ ۚ إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ خَبِيرٌ ﴿٣٤﴾ ع

هغه مری | بیشکه الله | پوهه | خبردار دے

کیږی - بیشکه الله تعالیٰ ته هر څهٔ معلوم دی په هر څهٔ خبر دے

سُورَةُ السَّجْدَةِ مَكِّيَّةٌ وَهِيَ | بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ | ثَلٰثُونَ اٰيَةً وَّثَلٰثُ رُكُوعَاتٍ

سورة سجده په مکه کښے نازل شوا او | (شروع) دَ الله په نوم چه لوئے مهربان دیر زیات رحم کوونکے دے | په دے کښے ٣٠ آیتونه او ٣ رکوعګانے دی

دَ الله په نوم شروع کوم چه لوئے مهربان دَ دیر زیات رحم خاوند دے

الٓمٓ ﴿١﴾ تَنزِيلُ الْكِتَابِ لَا رَيْبَ فِيهِ مِن رَّبِّ الْعَالَمِينَ ﴿٢﴾

الٓمٓ | نازلول دَ (دے) کتاب | هیڅ شک نشته | په دے کښے | له طرفه دَ رب | دَ عالمونو نه دے۔

الف، لام، میم - دا را نازل شوے کتاب دے چه هیڅ شک په کښے نشته، دَ رب العلمین دَ طرف نه راغلے دے۔

أَمْ يَقُولُونَ افْتَرَاهُ ۚ بَلْ هُوَ الْحَقُّ مِن رَّبِّكَ

آیا دوی وائی چه | تا دَ ځانه جوړ کړے دے دا | (نا) بلکه | دا | رښتیا دے | ستا دَ رب له طرفه نه

آیا دا خلق وائی چه پیغمبر دا کتاب دَ ځانه جوړ کړے دے۔ نه! بلکه دا ستا دَ رب له طرف نه په حقه راغلے دے

لِتُنذِرَ قَوْمًا مَّا أَتَاهُم مِّن نَّذِيرٍ مِّن قَبْلِكَ لَعَلَّهُمْ

دَ پاره دَ دے چه ووېروے ته | هغه خلق | چه نهٔ دے راغلے دوی ته | څوک وېرونکے | له تا نه وړاندے | دَ پاره دَ دے چه دوی

چه ته پرے هغه قوم ووېروے چه له تا نه وړاندے ورته هیڅوک وېرونکے نهٔ دے راغلے، شاید چه دوئ به

يَهْتَدُونَ ﴿٣﴾ اللَّهُ الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا

لاره بیا مومی | (هم) الله دے | چا چه | پیدا کړل | آسمانونه | او زمکه | او څهٔ چه دَ دے دواړو په مینځ کښے دی

سمه لاره روان شی - الله تعالیٰ هغه ذات دے چه آسمانونه او زمکه او دَ دے دواړو ترمینځه څیزونه

فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوَىٰ عَلَى الْعَرْشِ ۖ مَا لَكُم مِّن دُونِهِ

په شپږو | ورځو کښے | بیا | دے قائم شو | په عرش باندے | نشته تاسو له | بے له دهٔ نه

ئے په شپږو ورځو کښے پیدا کړل، بیا په عرش باندے قائم شو، دَ هغهٔ نه سیوا ستاسو نهٔ څوک مددګار

مِن وَلِيٍّ وَلَا شَفِيعٍ ۚ أَفَلَا تَتَذَكَّرُونَ ﴿٤﴾ يُدَبِّرُ الْأَمْرَ

څوک دوست | او نهٔ | سفارش کوونکے | نو آیا تاسو غور نهٔ کوئ | دے انتظام کوی | دَ ټولو کارونو

شته او نهٔ سفارشی نو آیا تاسو دَ دے نه سبق نهٔ اخلئ، هغه دَ آسمان نه ترمزکے پورے

مِنَ السَّمَآءِ اِلَى الْاَرْضِ ثُمَّ يَعْرُجُ اِلَيْهِ فِيْ يَوْمٍ

له آسمان نه | طرف د زمکے ته | بیا پورته خیژی | د ده طرف ته | په یوه ورځ کښے

د هر کار بند وبست کوی ، بیا هر یو کار به د هغه حضور ته پیش کیږی ، په یوه داسے ورځ کښے

كَانَ مِقْدَارُهٗۤ اَلْفَ سَنَةٍ مِّمَّا تَعُدُّوْنَ ⑤ ذٰلِكَ عٰلِمُ الْغَيْبِ

چه مقدار د هغے دے | یو زر | کاله | په هغه حساب | چه تاسو ئے شمیری | هم دا دے | چه عالم دے | په پټو

چه د هغے مقدار به ستاسو د حساب مطابق پوره زر کاله وی . هم دا الله دے چه په پټو او په ښکاره

وَالشَّهَادَةِ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ ⑥ الَّذِيْۤ اَحْسَنَ كُلَّ شَيْءٍ خَلَقَهٗ

او په ښکاره (خیزونو) | زبردست دے | رحم کوونکے دے | هغه چا چه | ښه ئے جوړ کړو | هر خیز | چه ده پیدا کړو

خیزونو عالم دے زبردست او مهربان دے . هر څه چه ئے جوړ کړی دی نو ډیر ښه (او محکم) ئے جوړ کړی دی

وَبَدَاَ خَلْقَ الْاِنْسَانِ مِنْ طِيْنٍ ⑦ ثُمَّ جَعَلَ نَسْلَهٗ مِنْ سُلٰلَةٍ

او شروع ئے وکړه | د پیدائش | د بنیادم | له خاورے نه | بیا ئے جوړ کړو | د ده نسل | له خلاصے

او د انسان پیدائش ئے د خاورے نه شروع کړے دے . بیا د هغه نسل ئے د نچوړ شوو (او) د بیقدره

مِّنْ مَّآءٍ مَّهِيْنٍ ⑧ ثُمَّ سَوّٰىهُ وَنَفَخَ فِيْهِ مِنْ رُّوْحِهٖ وَجَعَلَ

د اوبو | حقیرو نه | بیا ئے درست کړو دے | او پوک ئے وهلو | په ده کښے | له خپل روح نه | او پیدا ئے کړل

اوبو نه وچلولو . بیا ئے د هغه اندامونه روغ کړل او په کښے ئے د خپل (طرف نه) روح پوک وهلو . او تاسو له

لَكُمُ السَّمْعَ وَالْاَبْصَارَ وَالْاَفْـِٕدَةَ قَلِيْلًا مَّا تَشْكُرُوْنَ ⑨ وَقَالُوْۤا

تاسو له | غوږونه | او سترګے | او زړونه | (مګر) ډیر لږ | تاسو شکر کوئی | او دوی وائی

ئے غوږونه ، سترګے او زړونه درکړل ، مګر تاسو ډیر لږ شکر ادا کوئی . او دوی وائی

ءَاِذَا ضَلَلْنَا فِي الْاَرْضِ ءَاِنَّا لَفِيْ خَلْقٍ جَدِيْدٍ ۬ بَلْ هُمْ

آیا هر کله چه ورک شو مونږ | په زمکه کښے | نو آیا مونږ به | د نوی سره پیدا کیږو ؟ | (نه) بلکه | دوی (خو)

چه هر کله مونږ په زمکه کښے ختم شو نو آیا مونږ به بیا د نوی سره راژوندی کیږو ؟ خبره دا ده چه

بِلِقَآئِ رَبِّهِمْ كٰفِرُوْنَ ⑩ قُلْ يَتَوَفّٰىكُمْ مَّلَكُ الْمَوْتِ

د ملاقات نه | د رب خپل | منکر دی | ووایه | قبض کوی روح ستاسو | فرښته | د مرګ

دا خلق د خپل رب د ملاقات نه منکر دی . (اے پیغمبره!) ووایه ، چه ملک الموت چه په تاسو مقرر دے

الَّذِيْ وُكِّلَ بِكُمْ ثُمَّ اِلٰى رَبِّكُمْ تُرْجَعُوْنَ ⑪ وَلَوْ تَرٰۤى اِذِ الْمُجْرِمُوْنَ

کوم چه | مقرر کړے شوے ده | په تاسو | بیا به | تاسو د خپل رب طرف ته | واپس کولے شئ | او که چرے ووینے ته | کوم وخت چه ګناهګار (خو) به

ستاسو روحونه به قبض کوی نو بیا به خپل رب ته واپس کولے شئ او کاش! ته هغه مجرمان ووینے چه هغوی به

نَاكِسُوْا رُءُوْسِهِمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ ؕ رَبَّنَاۤ اَبْصَرْنَا وَسَمِعْنَا

ټیټ کړی وی | خپل سرونه | د خپل رب په وړاندِ | اے زمونږه ربه ! | مونږه ولیدل | او مونږه واوریدل

خپل خدا ئے ته سرونه ټیټ نیولی وی (او وائی به) اے زمونږ ربه ! اوس زمونږ سترګے او غوږونه پرانستے شول

فَارْجِعْنَا نَعْمَلْ صَالِحًا اِنَّا مُوْقِنُوْنَ ۝۱۲ وَلَوْ شِئْنَا لَاٰتَيْنَا

پس واپس ولیږه موږ | چه موږ وکړو | نیک عمل | بیشکه موږ | نیکی کوونکی یُو | اوکه چیرے | غوښتے وے موږه | نو ورکړے به وو موږ

نو واپس مو دنیا ته ولیږه چه موږ نیک عمل وکړو، زموږ اوس یقین وشو اوکه موږ ته منظوره وے نو هر چا ته به مو

كُلَّ نَفْسٍ هُدٰىهَا وَلٰكِنْ حَقَّ الْقَوْلُ مِنِّيْ لَاَمْلَئَنَّ

هر کس ته | دَدهٔ هدایت | او لیکن | ثابته شوے ده | خبره | زما له طرف نه | چه زهٔ به خامخا ډک کړم

خپله لار ورکړے وه ، خو زما دَ طرف نه دا خبره فیصله شوے ده چه دوزخ به دَ (بدکارو) پیریانو

جَهَنَّمَ مِنَ الْجِنَّةِ وَالنَّاسِ اَجْمَعِيْنَ ۝۱۳ فَذُوْقُوْا بِمَا نَسِيْتُمْ

دوزخ | له پیریانو | او انسانانو | ټولو نه | پس وڅکئ | په بدله دَهغے کښې | چه تاسو هیر کړو

او بنیادمو دواړو نه ډکوم ، نو اوس (دَ خپل عمل) خوند وڅکئ ځکه چه دَدے

لِقَآءَ يَوْمِكُمْ هٰذَا ۚ اِنَّا نَسِيْنٰكُمْ وَذُوْقُوْا عَذَابَ الْخُلْدِ

ملاقات | دَدے ورځې خپلے | بیشکه موږ | هیر کړئ تاسو | او وڅکئ تاسو | عذاب | دَهمیشه

ورځے راتګ مو هیر کړے وو. ن موږ تاسو هیر کړئ ، او دَ خپلو عملونو په بدل کښې دَ همیشه

بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ۝۱۴ اِنَّمَا يُؤْمِنُ بِاٰيٰتِنَا الَّذِيْنَ اِذَا

په بدل دَهغهٔ | چه تاسو به کول | بیشکه چه | ایمان راوړی | په آیتونو زموږ | هغه خلق چه | هر کله

عذاب خوندونه وڅکئ. زموږ په آیتونو باندِ هغه څوک ایمان راوړی چه څهٔ وخت

ذُكِّرُوْا بِهَا خَرُّوْا سُجَّدًا وَّ سَبَّحُوْا

نصیحت کولے شی دوی ته | په هغے | نو پریوزی دوی | سجده کوونکی | او | پاکیزګی بیانوی

ورته یادولے شی ، نو په سجده کښې پریوزی . او دَ خپل رب حمد او

بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ ۝۱۵ ۩ تَتَجَافٰى جُنُوْبُهُمْ

په حمد سره | دَ خپل رب | او دوی | کبر نهٔ کوی | جُدا وی | اړخونه دَدوی

ثنا وائی ، او هغوئ تکبر نهٔ کوی . دَ هغوئ اړخونه دَ خوب دَ ځایونو

عَنِ الْمَضَاجِعِ يَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ خَوْفًا وَّطَمَعًا ۫ وَّمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ

له خواب ګاهونو نه | دوی بلی | خپل رب | په ویره | او په اُمید | او له هغهٔ نه | چه موږ روزی ورکړے ده دوی ته

نه په ډډه وی او خپل رب ته دَ ویرے او اُمید دواړو ترمینځه دعا کوی او څهٔ چه موږ هغوئ ته ورکړی

يُنْفِقُوْنَ ۝۱۶ فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَّآ اُخْفِيَ لَهُمْ مِّنْ قُرَّةِ اَعْيُنٍ ۚ

خرڅ کوی | پس نهٔ دے پوهه | هیڅ نفس | په هغهٔ | چه پټ مقرر شوے دے | دَدوی دَپاره | له یخوالی | دَ سترګو نه

دی دَهغے نه خرڅ کوی ، نو هیچا ته معلومه نهٔ ده چه دَهغهٔ دَپاره په غیبو کښې دَ سترګو دَیخوالی څومره ډیر سامان

جَزَآءًۢ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ۝۱۷ اَفَمَنْ كَانَ مُؤْمِنًا كَمَنْ كَانَ

بدله | دَهغه (عملونو) | چه دوی به کول | آیا هغه څوک | چه وی | مؤمن | په شان دَهغه چا دے

سنبال پروت دے دا دَ هغوئ دَ خپلو عملونو بدله ده. آیا څوک چه مومن وی هغه به هم دَ فاسق په شان (وګڼلے)

السجدة ۵

فَاسِقًا ۚ لَا يَسْتَوٗنَ ﴿۱۸﴾ اَمَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ

چه فاسق وی؟ | نهٔ برابریږی | هغه خلق چه | ایمان ئے راوړو | او عملونه ئے وکړل | نیک

شی؟ دوی هیڅرے برابر کیدے نهٔ شی. چا چه ایمان راوړو او نیک کارونه ئے وکړل،

فَلَهُمْ جَنّٰتُ الْمَاْوٰى ۙ نُزُلًا ۢ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۹﴾ وَاَمَّا الَّذِيْنَ

پس دوی دپاره | باغونه دی | د اوسیدو | میلمستیا | په بدله د هغے کښے | چه دوی به کول | او هغه خلق چه

د هغوی د اوسیدو دپاره به باغونه وی دا به میلمستیا وی د هغوی د عملونو په بدله کښے. او څوک چه فاسقان

فَسَقُوْا فَمَاْوٰىهُمُ النَّارُ ۭ كُلَّمَآ اَرَادُوْٓا اَنْ يَّخْرُجُوْا مِنْهَآ اُعِيْدُوْا

نافرمان ؤو | پس ځائے د دوی | دوزخ دے | هر کله چه | دوی اراده وکړی | چه دوی ووځی | له هغے نه | نو بیرته به غورځولے کیږی

پاتے شول نو د هغوی ټیکاؤنړه اور دے. هر کله چه ترے نه بهرته وتل غواړی نو پسته به په کښے غورځولے

فِيْهَا وَقِيْلَ لَهُمْ ذُوْقُوْا عَذَابَ النَّارِ الَّذِيْ كُنْتُمْ بِهٖ تُكَذِّبُوْنَ ﴿۲۰﴾

په هغے کښے | او وبه ویلے شی | دوی ته | چه وڅکئ (مزه) | د عذاب | د دوزخ | هغه | کوم چه به تاسو | دروغ گنړلو.

شی او ورته به وویلے شی چه اوس د هغے دوزخ د عذاب خوند وڅکئ چه تاسو به دروغ گنړلو.

وَلَنُذِيْقَنَّهُمْ مِّنَ الْعَذَابِ الْاَدْنٰى دُوْنَ الْعَذَابِ الْاَكْبَرِ لَعَلَّهُمْ

او مونږ به خامخا وڅکوو دوی ته | څهٔ عذاب | د نزدے (دُنیا) | د لوئے عذاب نه وړاندې | د پاره د دے چه دوی

او مونږ به ورله د هغه لوئے عذاب نه وړاندې دلته نزدے سزا هم ورکړو شاید چه دوئ (حق لار ته)

يَرْجِعُوْنَ ﴿۲۱﴾ وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ ذُكِّرَ بِاٰيٰتِ رَبِّهٖ ثُمَّ اَعْرَضَ

بیرته راوګرځی | او څوک | زیات ظالم دے | له هغه چا نه | کوم ته چه نصیحت وکړے شو | د خپل رب په آیتونو | بیا | هغهٔ مخ واړولو

واپس شی. او د هغه چا نه بل څوک ظالم کیدے شی چه د خپل رب آیتونه ورته را یاد کړے شی او دے ترے نه بیا هم

عَنْهَا ۭ اِنَّا مِنَ الْمُجْرِمِيْنَ مُنْتَقِمُوْنَ ﴿۲۲﴾ وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ

له هغے نه | بیشکه مونږ | له مجرمانو نه | انتقام اخستونکی یو | او بیشکه | مونږ ورکړے وو | موسیٰ ته | کتاب

مخ واړوی؟ مونږ به خامخا د مجرمانو نه بدله اخلو. او مونږ موسیٰ ته کتاب (تورات) ورکړے وو، نو

فَلَا تَكُنْ فِيْ مِرْيَةٍ مِّنْ لِّقَاۗىِٕهٖ وَجَعَلْنٰهُ هُدًى لِّبَنِيْٓ اِسْرَاۗءِيْلَ ﴿۲۳﴾

پس مهٔ | کیږه ته | په شک کښے | له ملاویدو د ده نه | او مونږ جوړ کړے وو دا | هدایت | د بنی اسرائیلو دپاره

ته د الله تعالیٰ سره په ملاقات کښے هیڅ شک مهٔ کوه او هغه مو د بنی اسرائیلو دپاره د هدایت سبب ګرځولے وو

وَجَعَلْنَا مِنْهُمْ اَىِٕمَّةً يَّهْدُوْنَ بِاَمْرِنَا لَمَّا صَبَرُوْا ڛ

او جوړ کړل مونږ | له دوی نه | پیشوایان | چه سمه لار به ئے ښودله | زمونږ په حکم | هر کله چه | دوی صبر وکړو

او په هغوی کښے مو نور ډیر پیشوایان پیدا کړی وو چه زمونږ په حکم به ئے خلقو ته سمه لار ښودله ځکه چه هغوی ښیکانو صبر کولو.

وَكَانُوْا بِاٰيٰتِنَا يُوْقِنُوْنَ ﴿۲۴﴾ اِنَّ رَبَّكَ هُوَ يَفْصِلُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ

او وُو دوی | چه زمونږ په آیتونو به ئے | یقین کولو | بیشکه | ستا رب به | فیصله وکړی | د دوی په مینځ کښے | په ورځ د قیامت

او زمونږ په آیتونو به ئے یقین کولو. بیشکه چه ستا رب به په خپله د قیامت په ورځ د دوئ ترمینځه په اختلاف

فِيمَا كَانُوا فِيهِ يَخْتَلِفُونَ ﴿٢٥﴾ أَوَلَمْ يَهْدِ لَهُمْ كَمْ

په هغه څه کښې چه | دوی به په هغې کښې اختلاف کولو | آیا رهنمائی و نهٔ کړه | دَ دوئی (دے خبرے چه) | چه څومره

خبرو کښې فیصله کوی۔ آیا دوئی دَدے خبرے نه هم سبق وانه خستلو چه مونږ دَدوئی

أَهْلَكْنَا مِن قَبْلِهِم مِّنَ الْقُرُونِ يَمْشُونَ فِي مَسَاكِنِهِمْ ۚ إِنَّ

مونږ هلاک کړل | له دوئی نه وړاندې | قومونه | چه دوئی روان وی | دَ دوئی په کورونو کښې | بیشکه

نه وړاندې څومره ډیر قومونه هلاک کړی دی چه (نن) دوئی دَ هغوئی په کورونو کښې تګ راتګ کوی بیشکه

فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ ۖ أَفَلَا يَسْمَعُونَ ﴿٢٦﴾ أَوَلَمْ يَرَوْا أَنَّا نَسُوقُ الْمَاءَ

په دے کښې | نخښے دی | پس آیا دوئی نهٔ اوری؟ | آیا نهٔ دی کتلی دوی | چه مونږ | روانوو | اوبهٔ

په دے کښې لوئے نخښے دی، نو آیا دوی نهٔ اوری؟ آیا دوئی (چرے) غور نهٔ دے کړے چه مونږ اوبهٔ اوچے زمکے

إِلَى الْأَرْضِ الْجُرُزِ فَنُخْرِجُ بِهِ زَرْعًا تَأْكُلُ مِنْهُ أَنْعَامُهُمْ

طرف دَ زمکے | بے ګیاه ته | بیا مونږ راوُباسو | په دے سره | فصل | چه خوری | له دے نه | څاروی دَ دوی

طرف ته رسوو، نو مونږ دَدے په ذریعه فصلونه راپیدا کوو چه دَ دوئی څاروی ئے هم خوری

وَأَنفُسُهُمْ ۖ أَفَلَا يُبْصِرُونَ ﴿٢٧﴾ وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا الْفَتْحُ إِن كُنتُمْ

او دوی په خپله (هم) | نو آیا دوی نهٔ ګوری | او دوئی وائی | کله به وی | دا | فیصله | که چرے یئ تاسو

او دوئی په خپله هم نو آیا دوی نهٔ وینی؟ او دوئی وائی که تاسو رښتینی یئ نو (وُښایئ چه) دا (آخری) فیصله

صَادِقِينَ ﴿٢٨﴾ قُلْ يَوْمَ الْفَتْحِ لَا يَنفَعُ الَّذِينَ كَفَرُوا إِيمَانُهُمْ وَلَا هُمْ

رښتینی | ووایه | په ورځ دَ فیصلے به | نفع ورنهٔ کړی | هغوته چه | کافران دی | دَ دوی ایمان راوړل | او نهٔ به دوئی

به کله وی؟ ورته ووایه چه دَ فیصلے په ورځ به کافرانو ته ایمان راوړل هیڅ فائده نهٔ ورکوی او نهٔ به ورته

يُنظَرُونَ ﴿٢٩﴾ فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ وَانتَظِرْ إِنَّهُم مُّنتَظِرُونَ ﴿٣٠﴾

مهلت ورکولے شی | پس ته مخ واړوه | له دوی نه | او ته انتظار کوه | بیشکه دوی (هم) | انتظار کوونکی دی.

څهٔ مهلت ورکیدے شی نو ته دَ دوئی دَ وینا خیال مهٔ ساته او (دَ حق دَ غلبے) انتظار کوه، دوئی هم (لګیا دی) انتظار کوی

| سُورَةُ الْأَحْزَابِ مَدَنِيَّةٌ وَهِيَ | بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ | ثَلَاثٌ وَسَبْعُونَ آيَةً وَتِسْعُ رُكُوعَاتٍ |
|---|---|---|
| سورۃ احزاب په مدینه کښې نازل شوې او په | (شروع) دَ الله په نوم چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے | دے کښې ٧٣ آیتونه او ٩ رکوع ګانې دی |

دَ الله په نوم شروع کوم چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے۔

يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ اتَّقِ اللَّهَ وَلَا تُطِعِ الْكَافِرِينَ وَالْمُنَافِقِينَ ۗ إِنَّ اللَّهَ

اے نبی! | ویریږه | دَ الله نه | او فرمانبرداری مهٔ کوه | دَ کافرانو | او منافقانو | بیشکه الله

اے نبی! ته دَ الله تعالیٰ نه ویره کوه او دَ کافرانو او منافقانو خلقو خبره مهٔ منه۔ بیشکه الله تعالیٰ

كَانَ عَلِيمًا حَكِيمًا ﴿١﴾ وَاتَّبِعْ مَا يُوحَىٰ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ ۚ إِنَّ اللَّهَ

دے | پوهه | دَ حکمت والا | او پیروی کوه | دَ هغه څهٔ چه وحی کولے شی | تا ته | ستا دَ رب له طرف نه | بیشکه | الله

ډیر ښهٔ پوهه دَ حکمتونو خاوند دے۔ او دَ خپل رب دَ طرف نه چه درته کومه وحی شوے دهٔ دَ هغې پیروی کوه، بیشکه الله

كَانَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرًا ۝٢ وَّتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ ؕ وَكَفٰى بِاللّٰهِ

دے | په هغه څه چه | تاسوئے کوئ | خبردار | او توکل کوه | په الله | او کافی دے | الله

ستاسو په کارونو ښه خبر دے ۔ او په الله تعالیٰ توکل ساته ، او هم الله تعالیٰ کافی

وَكِيْلًا ۝٣ مَا جَعَلَ اللّٰهُ لِرَجُلٍ مِّنْ قَلْبَيْنِ فِيْ جَوْفِهٖ ۚ وَمَا جَعَلَ

کارساز | نهٔ دی جوړ کړی | الله | دَ هیڅ سړی | دوه زړونه | دَ دهٔ په سینه کښے | او نهٔ دی جوړ کړی

کارساز دے ۔ الله تعالیٰ دَ هیچا په سینه کښے دوه زړونه نهٔ دی ایښی ، او تاسو چه کومو ښځو

اَزْوَاجَكُمُ الّٰٓـِٔیْ تُظٰهِرُوْنَ مِنْهُنَّ اُمَّهٰتِكُمْ ۚ وَمَا جَعَلَ اَدْعِيَآءَكُمْ

ستاسو ښځے | هغه ښځے | چه ظهار کوئ تاسو | دَ هغوئ سره | میاندے ستاسو | او نهٔ دی جوړ کړی | ستاسو څخے وئیلی ځامن

سره ظهار کړی نو هغهٔ ستاسو میاندے کړی نهٔ دی ۔ او نهٔ ئے ستاسو په ځامنو نیولی هلکان

اَبْنَآءَكُمْ ؕ ذٰلِكُمْ قَوْلُكُمْ بِاَفْوَاهِكُمْ ؕ وَاللّٰهُ يَقُوْلُ الْحَقَّ وَهُوَ يَهْدِى

ستاسو ځامن | دا ستاسو خبره ده | ستاسو دَ خُلو | او الله | وائی | حقه خبره | او دے ښائی

په ریښتیا ستاسو ځامن کړی دی ، دا خو هسے ستاسو دَ خُلے خبرے دی او الله حقه خبره کوی او هم هغه دے چه

السَّبِيْلَ ۝٤ اُدْعُوْهُمْ لِاٰبَآئِهِمْ هُوَ اَقْسَطُ عِنْدَ اللّٰهِ ۚ فَاِنْ لَّمْ تَعْلَمُوْٓا

لار لا | بلئ دوی | دَ دوئ دَ پلارانو په نسبت | دا ښهٔ سمه خبره ده | په نزد دَ الله | بیا کهٔ چرے نهٔ پیژنئ تاسو

سمه لار ښائی ، دغه هلکان دَ خپلو سکه پلارانو په نومونو بلئ دا خبره دَ الله په نزد ډیره دَ انصاف ده ، نو کهٔ تاسوئے پلاران

اٰبَآءَهُمْ فَاِخْوَانُكُمْ فِى الدِّيْنِ وَمَوَالِيْكُمْ ؕ وَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ

پلاران دَ دوئ | نو هغه ورونړه دی ستاسو | په دین کښے | او ستاسو دوستان دی | او نشته دے | په تاسو باندے | هیڅ گناه

نهٔ پیژنئ ، نو هغوئ ستاسو دینی ورونړه او دوستان دی ۔ او چه په دے کښے درنه څهٔ غلطی وُشی

فِيْمَآ اَخْطَاْتُمْ بِهٖ ۙ وَلٰكِنْ مَّا تَعَمَّدَتْ قُلُوْبُكُمْ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا

په دے کښے | چه تاسو غلطی وکړئ | او لیکن هغه | چه اراده وکړه | زړونو ستاسو | او دے الله | بخښونکے

نو هیڅ گناه درباندے نشته ۔ خو هغه گناه په دے کښے ده چه څهٔ تاسو دَ زړهٔ په اراده سره وکړئ او الله بخښونکے

رَّحِيْمًا ۝٥ اَلنَّبِىُّ اَوْلٰى بِالْمُؤْمِنِيْنَ مِنْ اَنْفُسِهِمْ وَاَزْوَاجُهٗٓ

مهربان | پیغمبرؐ | زیات حق لری | په مؤمنانو باندے | دَ دوی دَ ځانونو نه | او دَ پیغمبر بیبیانے

مهربان دے ۔ نبیؐ په مومنانو باندے دَ هغوئ دَ خپلو ځانونو نه هم زیات حق لری ، او دَ دهٔ بیبیانے دَ

اُمَّهٰتُهُمْ ؕ وَاُولُوا الْاَرْحَامِ بَعْضُهُمْ اَوْلٰى بِبَعْضٍ فِىْ كِتٰبِ اللّٰهِ

دَ دوئ میاندے دی | او رشته دار | ځنے دَ دوی ډیر نزدے دی له ځنو نه | دَ الله په کتاب کښے

مسلمانانو میاندے دی ۔ او خپل خپلوان دَ الله تعالیٰ په کتاب کښے دَ نورو (عامو) مسلمانانو او مهاجرو

مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُهٰجِرِيْنَ اِلَّآ اَنْ تَفْعَلُوْٓا اِلٰٓى اَوْلِيٰٓئِكُمْ مَّعْرُوْفًا ؕ

له مؤمنانو | او مهاجرو نه | مگر دا چه تاسو کوئ | دَ خپلو دوستانو سره | څهٔ نیکی

په مقابله کښے زیات تعلق لری ، خو هو! کهٔ تاسو خپلو دوستانو سره څهٔ نیک سلوک کول غواړئ نو کولے شئ

كَانَ ذٰلِكَ فِى الْكِتٰبِ مَسْطُوْرًا ۶ وَاِذْ اَخَذْنَا مِنَ النَّبِيّٖنَ مِيْثَاقَهُمْ

دے دا | په کتاب کښے | لیکلے شوے | او هر کله چه مونږ واخستله | له پیغمبرانو نه | وعده د دوی

دا خبره په لوح محفوظ کښے لیکلے شوے پرته ده ۔ او هغه وخت چه مونږ د ټولو پیغمبرانو نه وعده واخسته

وَمِنْكَ وَمِنْ نُّوْحٍ وَّاِبْرٰهِيْمَ وَمُوْسٰى وَعِيْسَى ابْنِ مَرْيَمَ

او له تانه | او له نوح ؑ نه | او ابراهیم ؑ نه | او موسیٰ ؑ نه | او عیسیٰ ؑ | ځوئے د مریم نه

او ستانه هم او د نوح ؑ او ابراهیم ؑ او د موسیٰ ؑ او عیسیٰ ؑ ځوئے د مریم نه هم

وَاَخَذْنَا مِنْهُمْ مِّيْثَاقًا غَلِيْظًا ۷ لِّيَسْئَلَ الصّٰدِقِيْنَ عَنْ صِدْقِهِمْ

او واخستله مونږ | له دوی نه | وعده | پخه | چه تپوس وکړی الله | له رښتیا ویونکو نه | د دوی د رښتیاؤ په حقله

او د دے ټولو نه مونږ پوخ لوظ واخستلو ، چه الله د رښتینو خلقو نه د خپل رښتینی تعلیم په حقله تحقیق وکړی

وَاَعَدَّ لِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابًا اَلِيْمًا ۸ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اذْكُرُوْا ع ۸/۱۷

او دهٔ تیار کړے دے | کافرانو د پاره | عذاب | دردناک | اے ایمان والو! | یاد کړئ

او دهٔ کافرانو د پاره دردناک عذاب تیار ساتلے دے ۔ اے مؤمنانو ! د الله تعالیٰ دا احسان

نِعْمَةَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ اِذْ جَآءَتْكُمْ جُنُوْدٌ فَاَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِيْحًا

نعمت | د الله | په تاسو باندے | هر کله چه | راغلے تاسو ته | لښکرے | پس راولیږلو مونږه | په هغوی باندے | باد

را یاد کړئ هر کله چه (د غزوهٔ خندق په موقع) په تاسو باندے ډیرے لښکرے راوختلے نو مونږ پرے یوه سیلئ راوستله

وَّجُنُوْدًا لَّمْ تَرَوْهَا ؕ وَكَانَ اللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرًا ۹

او لښکرے | چه نهٔ لیدے | تاسو هغه | او دے الله | په هغه څهٔ | چه تاسو ئے کوئ | بینا

او داسے (غیبی) لښکرے مو راولیږلے چه تاسو نهٔ لیدلے او الله تعالیٰ لیدل څهٔ چه تاسو کول ۔

اِذْ جَآءُوْكُمْ مِّنْ فَوْقِكُمْ وَمِنْ اَسْفَلَ مِنْكُمْ وَاِذْ زَاغَتِ الْاَبْصَارُ

هر کله چه راغلل دوی په تاسو | ستاسو د پاسه نه | او د لاندے نه | ستاسو | او هر کله چه واړے پاتے شوے | سترګے

څهٔ وخت چه هغوئ ستاسو د بره طرف نه او ستاسو د لاندے طرف نه په تاسو راوختل او (له ویرے نه) ستاسو سترګے واړے

وَبَلَغَتِ الْقُلُوْبُ الْحَنَاجِرَ وَتَظُنُّوْنَ بِاللّٰهِ الظُّنُوْنَا ۱۰

او ورسیدل | زړونه | حلق ته | او تاسو ګمان کولو | د الله په حقله | ګمانونه (مختلف)

پاتے شوے او زړونه مو خُلے ته راغلل ، او تاسو په الله تعالیٰ باندے رنګ رنګ ګمانونه شروع کړل ۔

هُنَالِكَ ابْتُلِىَ الْمُؤْمِنُوْنَ وَزُلْزِلُوْا زِلْزَالًا شَدِيْدًا ۱۱ وَاِذْ يَقُوْلُ

دغه ځائے کښے | آزمیښت وکړے شو | د مومنانو | او وُجړقولے شول دوی | په جړقولو | سخت سره | او هر کله چه ووئیل

په دغه موقع باندے د مسلمانانو پوره آزمیښت وکړے شو او په زوره زوره وُجړقولے شول ۔ او څهٔ وخت چه

الْمُنٰفِقُوْنَ وَالَّذِيْنَ فِىْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ مَّا وَعَدَنَا اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗۤ

منافقانو | او هغه خلقو | چه په زړونو د هغوئ کښے | بیماری ده | چه نهٔ ده کړے وعده مونږ سره الله | او د دهٔ رسول

منافقانو او هغه کسانو چه په زړونو کښے ئے بیماری ده داو ئیل کوله چه مونږ سره خو الله او د هغهٔ رسول په لوظ کښے

إِلَّا غُرُورًا ⑫ وَإِذْ قَالَت طَّآئِفَةٌ مِّنْهُمْ يَٰٓأَهْلَ يَثْرِبَ

مگر فریب | او هر کله چه | وویل | یو ډلے | له دوی نه | اے د مدینے والو!

فریب کړے دے. او څهٔ وخت چه یو ټولی وو ټیل د دوی څخه چه اے د مدینے خلقو!

لَا مُقَامَ لَكُمْ فَٱرْجِعُوا۟ ۚ وَيَسْتَـْٔذِنُ فَرِيقٌ مِّنْهُمُ ٱلنَّبِىَّ

هیڅ ځائے نشته | تاسو د پاره | پس بیرته وګرځئ | او اجازت غواړی | یو ډله | له دوئ نه | له پیغمبر نه

تاسو (د دښمن مقابلے ته) نهٔ شئ ټینګیدلے نو بیرته لاړ شئ. او یو ټولی د پیغمبر نه (د واپسئ) اجازت غوښتلو، دا ئے وئیل

مع يَقُولُونَ إِنَّ بُيُوتَنَا عَوْرَةٌ ۛ وَمَا هِىَ بِعَوْرَةٍ ۖ إِن يُرِيدُونَ

دوی وائی | چه بیشکه کورونه زمونږ | محفوظ نهٔ دی | او نهٔ دی هغه | غیر محفوظ | نهٔ غواړی دوی

چه زمونږ کورونه په ډاکه پرانهٔ دی. حالانکه هغه په ډاکه نه وو خو دوئ صرف د تیښتے

إِلَّا فِرَارًا ⑬ وَلَوْ دُخِلَتْ عَلَيْهِم مِّنْ أَقْطَارِهَا ثُمَّ سُئِلُوا۟

مگر تیښته | او که چرے داخل شی | په دوی باندِ | له اطرافو د دے (مدینے) نه | بیا | دوی ته ووئیلے شی

ږ کودرلټولو، او که چرے د مدینے د غاړو نه پرے څوک راننوځی او دوئ ته د فساد جوړولو

ٱلْفِتْنَةَ لَءَاتَوْهَا وَمَا تَلَبَّثُوا۟ بِهَآ إِلَّا يَسِيرًا ⑭

د فساد د پاره | نو (فورًا) به راشی | او درنګ به تیر نهٔ کړی | په دے کښے | مګر | لږ

وینا وکړی نو په هغے پسے به (په منډه) ورشی او په دغه کورونو کښے به ډیر لږ (ناست) پاتے شی

وَلَقَدْ كَانُوا۟ عَٰهَدُوا۟ ٱللَّهَ مِن قَبْلُ لَا يُوَلُّونَ ٱلْأَدْبَٰرَ ۚ

او بیشکه | دوی وعده کړے وه | الله سره | له دے نه وړاندِ | چه دوی به نهٔ ګرځوی | شا

او حال دا دے چه هم دے خلقو د اول نه الله تعالیٰ سره دا وعده کړے وه چه دوی به تیښته نهٔ کوی

وَكَانَ عَهْدُ ٱللَّهِ مَسْـُٔولًا ⑮ قُل لَّن يَنفَعَكُمُ ٱلْفِرَارُ

او ده | وعده | د الله | چه پوښتلے به شی | او وایه | هیڅ کله به فائده درنهٔ کړی تاسو ته | تیښته

او د الله تعالیٰ سره شوے وعده خو خامخا پوښتلے شی. نهٔ ورته ووایه چه تیښته هیڅ فائده نهٔ شی درکوے

إِن فَرَرْتُم مِّنَ ٱلْمَوْتِ أَوِ ٱلْقَتْلِ وَإِذًا لَّا تُمَتَّعُونَ

که چرے وتښتئ تاسو | له مرګ نه | یا د قتل کیدو نه | او دغه وخت به | تاسو ته موقع ملاؤ نهٔ شی

که تاسو د مرګ یا د قتل نه تښتئ او په دغه (تیښته) کښے به فائده او چته نهٔ کړے شئ

إِلَّا قَلِيلًا ⑯ قُلْ مَن ذَا ٱلَّذِى يَعْصِمُكُم مِّنَ ٱللَّهِ إِنْ أَرَادَ

مګر لږه | ووایه | څوک دے | هغه کس چه | بچ کړی تاسو | د الله نه | که چرے هغه وغواړی

خو لږه. نهٔ ورته ووایه چه څوک دی چه د الله تعالیٰ نه به تاسو بچ کړی که چرے دے

بِكُمْ سُوٓءًا أَوْ أَرَادَ بِكُمْ رَحْمَةً ۚ وَلَا يَجِدُونَ لَهُم

تاسو ته | تکلیف رسول | یا | وغواړی | په تاسو باندِ | مهربانی کول | او دوی به نهٔ بیاموی | ځان د پاره

تاسوله تکلیف درکول وغواړی یا که په تاسو مهربانی کول وغواړی (نو څوک ئے منع کولے شی)؟ او دوئ د الله تعالیٰ نه بغیر

مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلِيًّا وَّلَا نَصِيْرًا ﴿١٧﴾ قَدْ يَعْلَمُ اللّٰهُ

سیوا | دَ الله نه | څوک دوست | او نه څوک مددګار | بیشکه پیژنی | الله

بل هیڅوک دوست یا مددګار موندلے نهٔ شی۔ الله تعالیٰ په تاسو کښے هغه کسان ښهٔ پیژنی

الْمُعَوِّقِيْنَ مِنْكُمْ وَالْقَآئِلِيْنَ لِاِخْوَانِهِمْ هَلُمَّ اِلَيْنَا ۚ

منع کوونکی | له تاسو نه | او (هغه چه) وائی | خپلو وررونړو نه | چه راشئ | زمونږ طرف ته

(چه په جهاد کښے دَ شریکیدو نه) منع کوی او خپلو وروڼړو ته وائی ، چه زمونږ طرف ته راشئ

وَلَا يَاْتُوْنَ الْبَاْسَ اِلَّا قَلِيْلًا ﴿١٨﴾ اَشِحَّةً عَلَيْكُمْ ۚ فَاِذَا

او نهٔ راځی دوی | جنګ ته | مګر | لږ | شومان دی | ستاسو په حق کښے | پس هر کله چه

او (خپله هم) په جنګ کښے نهٔ شریکیږی ، مګر ډیر کم۔ ستاسو په حق کښے ډیر شومان دی۔ نو هر کله چه

جَآءَ الْخَوْفُ رَاَيْتَهُمْ يَنْظُرُوْنَ اِلَيْكَ تَدُوْرُ اَعْيُنُهُمْ

راشی | ویره | نو ته به وینے دوی | چه ګوری دوی | ستا طرف ته | چه ګرځی | دَ دوی سترګے

دَ ویرے وخت راشی ، نو ته به دوی وینے چه دا سے درته ګوری چه (له ویرے نه) دَ دوی سترګے تاؤراتاؤ

كَالَّذِيْ يُغْشٰى عَلَيْهِ مِنَ الْمَوْتِ ۚ فَاِذَا ذَهَبَ الْخَوْفُ

په شان دَ هغه چا | چه بے هوشی راغلی وی | په هغه | دَ مرګ | بیا هر کله چه | لاهو شی | ویره

کیږی لکه چه دَ مرګ بے هوشی پرے راغلی وی ، خو چه ویره (ترے نه) لاهو شی

سَلَقُوْكُمْ بِاَلْسِنَةٍ حِدَادٍ اَشِحَّةً عَلَى الْخَيْرِ ۭ اُولٰٓئِكَ

نو دوی طعنے درکوی تاسو ته | په ژبو | تیزو سره | شومتیا کوونکی | په مال | هم دا خلق دی

نو دوی دَ مالِ غنیمت په لالچ کښے په تیزو ژبو سره تاسو له طعنے درکوی ، دِ دے خلقو هړو

لَمْ يُؤْمِنُوْا فَاَحْبَطَ اللّٰهُ اَعْمَالَهُمْ ۭ وَكَانَ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ

چه ایمان نهٔ دے راوړے | نو ضائع کړل | الله | عملونه دَ دوی | او دهٔ | دا (خبره) | الله ته

ایمان نهٔ دے راوړے نو الله تعالیٰ دَ دوئی ټول عملونه برباد کړل۔ او دا (خبره) الله تعالیٰ ته ډیره

يَسِيْرًا ﴿١٩﴾ يَحْسَبُوْنَ الْاَحْزَابَ لَمْ يَذْهَبُوْا ۚ وَاِنْ يَّاْتِ

آسانه | دوی خیال کوی | چه لښکرے | (لا) تلے نهٔ دی | او که چرے راشی

آسانه ده۔ دوی دا خیال کوی چه (په مدینه باندِ حمله کوونکے) لښکرے لا واپس تلے نهٔ دی ، او که دغه لښکرے

الْاَحْزَابُ يَوَدُّوْا لَوْ اَنَّهُمْ بَادُوْنَ فِي الْاَعْرَابِ يَسْاَلُوْنَ

لښکرے | نو آرزو به کوی دوی | چه کاش دوی | بهر وتلی وے | په کلو کښے | دوی تپوس کولے

بیا راشی نو دوئی به دا غوره وګنړی چه بهر په میرو کښے دیره وی ، تش ستاسو دَ

۲۱
ع ۱۲
۱۸
عَنْ اَنْۢبَآئِكُمْ ۭ وَلَوْ كَانُوْا فِيْكُمْ مَّا قٰتَلُوْٓا اِلَّا قَلِيْلًا ﴿٢٠﴾

ستاسو دَ خبرونو | او که چرے وے دوی | په تاسو کښے (موجود) | نو دوی به نه جنګیدل (دښمن سره) | مګر ډیر کم

حال احوال تپوس به کوی ، او که چرے دوئی تاسره هم وی نو په جنګ کښے به ډیره کمه حصه اخلی

لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِیْ رَسُوْلِ اللّٰهِ اُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِّمَنْ

بیشکه | وه | تاسو دَ پاره | (په ذات دَ) رسول الله کښے | نمونه | ښه | دَ پاره دَ هغه چا

(مسلمانانو!) تاسو دَ پاره (په دې سختو حالاتو کښے) دَ رسول الله په ذات کښے ښائسته نمونه موجود ده داسے

كَانَ يَرْجُوا اللّٰهَ وَالْيَوْمَ الْاٰخِرَ وَذَكَرَ اللّٰهَ كَثِيْرًا ﴿٢١﴾ وَ

چه امید لری | دَ الله | او دَ ورځے | دَ آخرت | او یادوی الله | ډیر | او

خلقوله چه دَ الله نه او دَ قیامت دَ ورځے نه ویریږی او الله تعالیٰ ډیر ډیر یادوی۔ او څه

لَمَّا رَاَ الْمُؤْمِنُوْنَ الْاَحْزَابَ قَالُوْا هٰذَا مَا وَعَدَنَا اللّٰهُ

هر کله چه | ولیدلے | مؤمنانو | لښکرے | نو دوی ووئیل | دا دی هغه څه | چه وعده ئے کړے وه موږ سره الله

وخت چه مؤمنانو دغه لښکرے ولیدلے نو وئے وئیل دا خو هغه (موقع) ده دَ کومے چه الله تعالیٰ او

وَرَسُوْلُهٗ وَصَدَقَ اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ وَمَا زَادَهُمْ اِلَّآ

او دَ ده رسول | او رښتیا وئیلی وو | الله | او دَ ده رسول | او زیات نه کړو په دوی کښے (څه نور) | سیوا

دَ ده رسول موږ سره دَ وړاندې نه وعده کړے وه او الله او دَ ده رسول رښتیا وئیلی وو او (دَ کفارو دې حملے) دَ دوی ایمان

اِيْمَانًا وَّتَسْلِيْمًا ﴿٢٢﴾ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ رِجَالٌ صَدَقُوْا مَا

دَ ایمان | او فرمانبرداری نه | په مؤمنانو کښے (ډیر) | هغه سړی دی | چه رښتیا ئے کړل | هغه څه

او اطاعت نور زیات کړو۔ په مؤمنانو کښے څنے داسے دی چه دَ الله تعالیٰ سره ئے خپل

عٰهَدُوا اللّٰهَ عَلَيْهِ ۚ فَمِنْهُمْ مَّنْ قَضٰى نَحْبَهٗ

چه وعده ئے کړے وه | الله سره | په هغے | بیا څنے له دوی نه | هغه دی | چه پوره ئے کړو | خپل اقرار

لوظ په رښتیا پوره کړو نو چا خو خپله منښته پوره کړه

وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّنْتَظِرُ ۖ وَمَا بَدَّلُوْا تَبْدِيْلًا ﴿٢٣﴾ لِّيَجْزِيَ اللّٰهُ

او څنے له دوی نه | هغه څوک دی چه انتظار کوی | او بدل ئے نه کړو | څه بدلول | دَ پاره دَ دې چه بدله ورکړی | الله

او څوک لا دَ وخت انتظار کوی او دوی (په خپله رویه کښے) ذره قدرله بدل نه شول، دا واقعه څکه وشوه

الصّٰدِقِيْنَ بِصِدْقِهِمْ وَيُعَذِّبَ الْمُنٰفِقِيْنَ اِنْ شَآءَ

رښتینی خلقو ته | په رښتیا دَ دوی | او عذاب ورکړی | منافقانو ته | که چرے | هغه وغواړی

چه الله رښتینو مسلمانانو ته دَ دوی دَ رښتیا اجر ورکړی او منافقانو ته که چرے وغواړی نو سزا ورکړی یا دَ هغوئ

اَوْ يَتُوْبَ عَلَيْهِمْ ۗ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴿٢٤﴾ وَرَدَّ اللّٰهُ

یا توبه قبوله کړی | دَ دوی | بیشکه الله | دے | بخښونکے | مهربان | او واپس کړل | الله

توبه قبوله کړی، بیشکه الله تعالیٰ بخښونکے مهربان دے۔ او الله تعالیٰ کافران

الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِغَيْظِهِمْ لَمْ يَنَالُوْا خَيْرًا ۗ وَكَفَى اللّٰهُ الْمُؤْمِنِيْنَ

هغه کوم چه | کافران دی | دَ دوی دَ غصے سره | چه حاصله نه شوه دوی ته (څه) ښیګړه | او کافی شو | الله | مؤمنانو دَ پاره

دَ قهره ډک واپس کړل او دَ هغوئ هیڅ مراد پوره نه شو۔ او هم الله تعالیٰ مؤمنانو دَ پاره په جنګ کښے

الْقِتَالَ ۚ وَكَانَ اللّٰهُ قَوِيًّا عَزِيْزًا ﴿٢٥﴾ وَاَنْزَلَ الَّذِيْنَ ظَاهَرُوْهُمْ

په جنګ کښې | او دے | الله | ډير طاقت ور | غالب | او ښکته ئے راکوز کړل | هغه کسان چه | مدد ئے کړے وو د دوی

کافی شو ، او الله تعالیٰ ډیر قوی او زبردست دے ۔ او په اهل کتابو کښې چه کومو خلقو (د مکے د

مِّنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ مِنْ صَيَاصِيْهِمْ وَقَذَفَ فِیْ قُلُوْبِهِمُ الرُّعْبَ

له اهل کتابو نه | د دوی له کلاګانو نه | او واچولو | د دوی په زړونو کښې | رعب

کفارو مدد کړے وو هغوی ئے د کلاګانو نه لاندې راکوز کړل او د هغوی په زړونو کښې ئے ستاسو رعب واچولو

فَرِيْقًا تَقْتُلُوْنَ وَتَاْسِرُوْنَ فَرِيْقًا ﴿٢٦﴾ وَاَوْرَثَكُمْ اَرْضَهُمْ

یوه ډله | تاسو وژله | او قید وله مو | بله ډله | او وارثان ئے کړئ تاسو | د دوی د زمکے

چه څوک مو ترے نه وژل او څوک مو ترے نه قید ول ۔ او تاسوئے د هغوی د زمکو او د کورونو

وَدِيَارَهُمْ وَاَمْوَالَهُمْ وَاَرْضًا لَّمْ تَطَئُوْهَا ۚ وَكَانَ اللّٰهُ

او | د دوی د کورونو | او د دوی د مالونو | او د هغے زمکے | چه تاسو قدم نۀ وو ایښے په هغے | او دے | الله

او د نورو مالونو خاوندان کړئ او د هغے زمکے چه تاسو پرے (د جنګ په غرض) قدم قدرے ایښے نۀ وو او الله تعالیٰ

عَلٰی كُلِّ شَیْءٍ قَدِيْرًا ﴿٢٧﴾ يٰۤاَيُّهَا النَّبِیُّ قُلْ لِّاَزْوَاجِكَ اِنْ ع ۳ ۱۹

په هر څیز باندې | قادر | اے نبیؐ ! | ووایه | خپلو بیبیانو ته | که چرے

په هر څۀ پوره قدرت لری ۔ اے نبیؐ ! خپلو بیبیانو ته ووایه چه که تاسو د

كُنْتُنَّ تُرِدْنَ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا وَزِيْنَتَهَا فَتَعَالَيْنَ اُمَتِّعْكُنَّ

غواړئ تاسو | ژوند | د دنیا | او د دے بنائست | نو راشئ | چه زۀ تاسو له بړ سامان درکړم

دنیا د ژوند خوندونه او د دے ډول سنګار غواړئ نو راځئ چه زۀ در له څۀ لږ ډیر سامان درکړم

وَاُسَرِّحْكُنَّ سَرَاحًا جَمِيْلًا ﴿٢٨﴾ وَاِنْ كُنْتُنَّ تُرِدْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ

او رخصت کړم تاسو | په رخصت کولو | ښو سره | او که چرے تاسو | غواړئ | الله | او د دۀ رسول

او په ښه مناسبه طریقه مو رخصت کړم ۔ او که تاسو الله تعالیٰ او د دۀ رسول او

وَالدَّارَ الْاٰخِرَةَ فَاِنَّ اللّٰهَ اَعَدَّ لِلْمُحْسِنٰتِ مِنْكُنَّ اَجْرًا

او کور | د آخرت | نو بیشکه الله | تیار ساتلے دے | نیکو بیبیانو د پاره | له تاسو نه | اجر

آخرت غواړئ ۔ نو الله تعالیٰ په تاسو کښې نیکو بیبیانو له ډیر لوئے اجر تیار

عَظِيْمًا ﴿٢٩﴾ يٰنِسَآءَ النَّبِیِّ مَنْ يَّاْتِ مِنْكُنَّ بِفَاحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ

ډیر لوئے | اے بیبیانو د نبیؐ ! | څوک چه | وکړی | له تاسو نه | بدکاری | ښکاره

ساتلے دے ۔ اے د پیغمبر بیبیانو ! په تاسو کښې څوک چه ښکاره ګناه وکړی نو

يُّضٰعَفْ لَهَا الْعَذَابُ ضِعْفَيْنِ ۚ وَكَانَ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرًا ﴿٣٠﴾

نو غبرګ به کړے شی | دے ته | عذاب | دوه غبرګه | او دا | دا (خبره) | په الله باندې | آسانه

هغے له به دوه غبرګه سزا ورکولے شی ، او دا کار الله تعالیٰ ته ډیر آسان دے

وَمَنْ يَّقْنُتْ مِنْكُنَّ لِلّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَتَعْمَلْ صَالِحًا

او څوک چه | فرمانبرداری وکړی | له تاسو نه | دَ الله | او دَ دهٔ دَ رسول | او عمل وکړی | نیک

او په تاسو کښے چه څوک دَ الله تعالیٰ او دَ دهٔ دَ رسول اطاعت وکړی او نیک عمل وکړی ، نو

نُّؤْتِهَآ اَجْرَهَا مَرَّتَيْنِ ۙ وَاَعْتَدْنَا لَهَا رِزْقًا كَرِيْمًا (٣١)

نو وربه کړو مونږ دے ته | اجر دَ دے | دوه ځله | او تیاره کړے ده مونږ | دَ پاره دَ هغے | روزی | ښه

مونږ به هغے له دَ دے بو په دوه اجر ورکړو او دَ هغے دَ پاره مونږ دَ عزت روزی تیاره ساتلے ده .

يٰنِسَآءَ النَّبِيِّ لَسْتُنَّ كَاَحَدٍ مِّنَ النِّسَآءِ اِنِ اتَّقَيْتُنَّ

اے دَ نبی بیبیانو ! | نهٔ یئ تاسو | په شان دَ یو ے هم | له ښځو نه | که چرے تاسو پرهیزګاری وکړئ

اے دَ نبی بیبیانو ! تاسو دَ نورو عامو ښځو په شان نهٔ یئ کهٔ پرهیزګار اوسیدل غواړئ

فَلَا تَخْضَعْنَ بِالْقَوْلِ فَيَطْمَعَ الَّذِيْ فِيْ قَلْبِهٖ مَرَضٌ

نو نرمی مهٔ کوئ | په خبره کولو کښے | چه طمع وکړی | هغه سړے چه | په زړهٔ دَ هغهٔ کښے | بیماری ده

نو په نرمئ خبرے مهٔ کوئ ، چه دَ چا داسے سړی طمع دِ نهٔ پیدا نهٔ شی چه په زړهٔ کښے ئے مرض پروت

وَّقُلْنَ قَوْلًا مَّعْرُوْفًا (٣٢) وَّقَرْنَ فِيْ بُيُوْتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجْنَ

او وایئ تاسو | خبره | په مناسبه طریقه | او ناستے وُسئ | په خپلو کورونو کښے | او ښائست مهٔ ښکاره کوئ

وی او سمے خبرے کوئ او په خپلو کورونو کښے قرارے ناستے وُسیږئ ، او دَ جاهلیت دَ تیرے زمانے

تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْاُوْلٰى وَاَقِمْنَ الصَّلٰوةَ وَاٰتِيْنَ

ښکاره کول دَ زینت | (دَ زمانے) دَ جاهلیت | پخوانی | او | قائم سائئ | مونځ | او ورکوئ

په شان ځان سنګار مهٔ ښکاره کوئ ، او دَ مونځونو پابندی ساتئ او زکوٰة

الزَّكٰوةَ وَاَطِعْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ ۭ اِنَّمَا يُرِيْدُ اللّٰهُ

زکوٰة | او حکم منئ | دَ الله | او دَ دهٔ دَ رسول | بیشکه | غواړی | الله

اداکوئ ، او دَ الله او دَ رسول حکمونه منئ ، الله تعالیٰ ته دا منظوره ده چه له تاسو نه

لِيُذْهِبَ عَنْكُمُ الرِّجْسَ اَهْلَ الْبَيْتِ وَيُطَهِّرَكُمْ

چه لرے کړی | له تاسو نه | پلیتی | اے اهلِ بیتو ! | او چه پاک کړی تاسو

هره پلیتی لرے وساتی ، اے دَ پیغمبر دَ کور خلقو ! او تاسو پاکیزه

تَطْهِيْرًا (٣٣) وَاذْكُرْنَ مَا يُتْلٰى فِيْ بُيُوْتِكُنَّ مِنْ اٰيٰتِ اللّٰهِ

په پاکولو سره | او یادوئ | څهٔ چه لوستلے شی | ستاسو په کورونو کښے | آیتونه | دَ الله

وُساتی ، او ستاسو په کورونو کښے چه دَ الله تعالیٰ کوم آیتونه او دَ علم خبرے لوستلے شی

وَالْحِكْمَةِ ۭ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ لَطِيْفًا خَبِيْرًا (٣٤) اِنَّ

او دَ علم خبرے | بیشکه | الله | دے | باریک بین | خبردار | بیشکه

هغه یاد ساتئ . بیشکه چه الله تعالیٰ په هر راز پوهه په هر څهٔ خبر دے . بیشکه مسلمانان

الْمُسْلِمِيْنَ وَالْمُسْلِمٰتِ وَالْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ وَالْقٰنِتِيْنَ
مسلمانان سړی | او مسلمانانې ښځې | او مؤمنان سړی | او مؤمنانې ښځې | او فرمانبردار سړی
سړی او مسلمانانې ښځې ، او مؤمنان سړی ، او مؤمنانې ښځې ، او فرمانبردار سړی

وَالْقٰنِتٰتِ وَالصّٰدِقِيْنَ وَالصّٰدِقٰتِ وَالصّٰبِرِيْنَ وَالصّٰبِرٰتِ
او فرمانبردارې ښځې | او رښتیا ویونکی سړی | او رښتیا ویونکې ښځې | او صبر کوونکی سړی | او صبر کوونکې ښځې
او فرمانبردارې ښځې او رښتیني سړی ، او رښتینې ښځې او صابره سړی او صابرې ښځې

وَالْخٰشِعِيْنَ وَالْخٰشِعٰتِ وَالْمُتَصَدِّقِيْنَ وَ الْمُتَصَدِّقٰتِ
او عاجزی کوونکی سړی | او عاجزی کوونکې ښځې | او صدقه ورکوونکی سړی | او | صدقه ورکوونکې ښځې
او ویریدونکی سړی ، او ویریدونکې ښځې ، او خیرات کوونکی سړی او خیرات کوونکې ښځې

وَالصّٰٓئِمِيْنَ وَالصّٰٓئِمٰتِ وَالْحٰفِظِيْنَ فُرُوْجَهُمْ وَالْحٰفِظٰتِ
او روژه نیوونکی سړی | او روژه نیوونکې ښځې | او حفاظت کوونکی سړی | دَ شرمګاهو تو خپلو | او حفاظت کوونکې ښځې
او روژه دار سړی او روژه دارې ښځې او دَ خپلو شرمګاهو تو حفاظت کوونکی سړی او ښځې

وَالذّٰكِرِيْنَ اللّٰهَ كَثِيْرًا وَّالذّٰكِرٰتِ ۙ اَعَدَّ اللّٰهُ لَهُمْ مَّغْفِرَةً
او ذکر کوونکی سړی | دَ الله | ډیر | او ذکر کوونکې ښځې | تیاره ساتلې ده | الله | دوی دَپاره | بخښنه
او الله تعالیٰ ډیر ډیر یادوونکی سړی او ښځې ، الله تعالیٰ دې ټولو له ډیره بخښنه او غټ

وَّاَجْرًا عَظِيْمًا ﴿٣٥﴾ وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَّلَا مُؤْمِنَةٍ اِذَا قَضَى
او اجر | لوی | او نشته | دی (حق) | دَ چا مؤمن سړی | او نه | دَ مؤمنې ښځې | (چې) هر کله فیصله وکړی
اجر مقرر کړی دی . او دَ هیڅ مؤمن یا مؤمنې دَپاره دا ګنجائش نشته چه

اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗٓ اَمْرًا اَنْ يَّكُوْنَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ مِنْ اَمْرِهِمْ ۭ وَمَنْ
الله | او دَ دهٔ رسول | دَ څهٔ کار | چه | وی | دوی ته | اختیار | په خپل کار کښې | او څوک چه
هر کله خدائے او دَ دهٔ رسول د یو کار حکم ورکړی نو بیا هغوی ته دِ لا هم په کښې څهٔ اختیار وی ا او څوک چه

يَّعْصِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ فَقَدْ ضَلَّ ضَلٰلًا مُّبِيْنًا ﴿٣٦﴾ وَاِذْ تَقُوْلُ
نافرمانی وکړی | دَ الله | او دَ دهٔ دَ رسول | نو بیشکه | هغه ګمراه شو | په ګمراهئ | ښکاره سره | او هر کله چه | تا ووئیل
دَ الله تعالیٰ او دَ دهٔ دَ رسول خبره ونهٔ مني نو هغه څرګنده ګمراه شو . او (یاد ساته) هر کله چه تا

لِلَّذِيْٓ اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَاَنْعَمْتَ عَلَيْهِ اَمْسِكْ عَلَيْكَ
هغه کس ته | چه انعام وکړو | الله | په هغهٔ | او انعام کړی دے تا | په هغهٔ | چه وُساته | خپل ځان سره
(زیدؓ بن حارثه ته) په چا چه الله تعالیٰ احسان کړے وو او تا هم احسان کړے وو ووئیل چه خپله ښځه په خپله

زَوْجَكَ وَاتَّقِ اللّٰهَ وَتُخْفِيْ فِيْ نَفْسِكَ مَا اللّٰهُ مُبْدِيْهِ
خپله ښځهٔ | او وویریږه | دَ الله نه | او پټول تا | په خپل زړهٔ کښې | هغه څهٔ | چه الله | ښکاره کوونکې دَ هغه دی
نکاح کښې وُساته او دَ الله تعالیٰ نه وویریږه او تا په خپل زړهٔ کښې هغه خبره پټه ساتله کومه چه الله ښکاره کوله

وَتَخْشَى النَّاسَ ۚ وَاللّٰهُ اَحَقُّ اَنْ تَخْشٰىهُ ۭ فَلَمَّا
او تهٔ ویریدے | له خلقونه | او | الله | زیات حقدار دے | چه تهٔ وو ویریږے له هغهٔ نه | بیا هر کله چه
او تهٔ د خلقو (د اعتراض) نه ویریدلے، حالانکه الله تعالیٰ د دے خبرے زیات حقدار دے چه تهٔ د دهٔ نه وو ویریږے، بیا هر کله چه
قَضٰى زَيْدٌ مِّنْهَا وَطَرًا زَوَّجْنٰكَهَا لِكَيْ لَا يَكُوْنَ
پوره کړلو | زید | له هغے نه | حاجت | نو په نکاح کړه مونږ تا ته دا | د پاره د دے چه | چه نهٔ وی
زید د خپلے ښځے نه حاجت پوره کړو (او طلاق ئے ورکړو) نو مونږ تا ته هغه په نکاح کړه، د پاره د دے چه د بیا د پاره
عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ حَرَجٌ فِيْۤ اَزْوَاجِ اَدْعِيَآئِهِمْ اِذَا قَضَوْا
په مؤمنانو بانديں | هیڅ تنګی | په نکاح کولو د ښځو | د خُلو ویلے شوو ځامنو | هر کله چه دوی پوره کړی
مسلمانانو ته د هغے چا د ښځو په وَدَولو کښے هیڅ تنګی پاتے نهٔ شی چه د خوئے په ځائے ئے نیولی وی تهٔ وخت چه د
مِنْهُنَّ وَطَرًا ۭ وَكَانَ اَمْرُ اللّٰهِ مَفْعُوْلًا ﴿۳۷﴾ مَا كَانَ
له دوی نه | حاجت | او دے | حکم | د الله | خامخا کیدلو والا | نشته دے
هغوئ زړونه ترے نه ماړهٔ شی۔ او د الله تعالیٰ حکم خامخا پوره کیږی۔ دِ دے پیغمبر له چه الله تعالیٰ
عَلَى النَّبِيِّ مِنْ حَرَجٍ فِيْمَا فَرَضَ اللّٰهُ لَهٗ ۭ سُنَّةَ
په نبیؐ بانديں | (څهٔ) ګناه | په هغه (خبره) کښے | چه مقرره کړه | الله | دهٔ د پاره | دا طریقه ده
کومه خبره مقرره کړے ده په دِ دے نبی هیڅ الزام نشته۔ د پخوانو (پیغمبرانو)
اللّٰهِ فِي الَّذِيْنَ خَلَوْا مِنْ قَبْلُ ۭ وَكَانَ اَمْرُ اللّٰهِ قَدَرًا
د الله | په هغه خلقو کښے (چه) | تیر شوی دی | وړاندِ له دےنه | او دے | حکم د الله | مقرر شوے
په حقله الله تعالیٰ هم د غسے قاعدے مقرر کړے وے۔ او د الله تعالیٰ د هر کار اندازه مقرر
مَّقْدُوْرًا ﴿۳۸﴾ الَّذِيْنَ يُبَلِّغُوْنَ رِسٰلٰتِ اللّٰهِ وَيَخْشَوْنَهٗ
په (صحیح) اندازه | هغه خلق چه | رسوی | پیغامونه | د الله | او ویریږی له دهٔ نه
شوے ده۔ دا ټول هغه پیغمبران دی چه د الله تعالیٰ پیغامونه ئے (خلقو ته) رسول او له دهٔ نه ویریدل او د
وَلَا يَخْشَوْنَ اَحَدًا اِلَّا اللّٰهَ ۭ وَكَفٰى بِاللّٰهِ حَسِيْبًا ﴿۳۹﴾ مَا كَانَ
او نهٔ ویریږی دوی | له هیچانه | سیوا د الله نه | او کافی دے الله | حساب اخستونکے | نهٔ دے
الله تعالیٰ نه سیوا د هیچا نه نهٔ ویریدل او حساب اخستلو له پوازے الله تعالیٰ کافی دے۔ محمدؐ ستا سو
مُحَمَّدٌ اَبَآ اَحَدٍ مِّنْ رِّجَالِكُمْ وَلٰكِنْ رَّسُوْلَ اللّٰهِ وَخَاتَمَ
محمدؐ | پلار | د هیچا | ستا سو له سړو نه | لیکن | رسول دے د الله | او خاتم دے
په سړو کښے د هیچا پلار نهٔ دے، هغه خو د الله تعالیٰ یو رسول دے او آخری
النَّبِيّٖنَ ۭ وَكَانَ اللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمًا ﴿۴۰﴾ ع يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا ع ۵
د نبیانو | او دے | الله | په هر | څیز | پوهه | اے مؤمنانو !
نبی دے۔ او الله تعالیٰ ته هر څیز ډیر ښهٔ معلوم دے۔ اے مؤمنانو !

اذْكُرُوا اللّٰهَ ذِكْرًا كَثِيْرًا ﴿٤١﴾ وَّسَبِّحُوْهُ بُكْرَةً وَّاَصِيْلًا ﴿٤٢﴾ هُوَ
یاد کړئ | الله | په یادولو | ډیر و سره | او پاکي بیان کړئ د ده | سحر | او ماښام | هم دے دے
تاسو الله تعالیٰ ډیر ډیر یادوئ ، او سحر ماښام د ده تسبیح لولئ الله تعالیٰ داسے
الَّذِيْ يُصَلِّيْ عَلَيْكُمْ وَمَلٰٓئِكَتُهٗ لِيُخْرِجَكُمْ مِّنَ الظُّلُمٰتِ
کوم چه | رحمت لیږی | په تاسو | او د ده فرښتے | د پاره د دے چه ده وباسی تاسو | له تیارو نه
ذات دے چه دے او د ده فرښتے په تاسو رحمتونه راوروی ، چه د (کفر د) تورو تیارو نه مو (د اسلام) رڼرا
اِلَى النُّوْرِ ؕ وَكَانَ بِالْمُؤْمِنِيْنَ رَحِيْمًا ﴿٤٣﴾ تَحِيَّتُهُمْ يَوْمَ
طرف د رڼرانه | او دے الله | په مؤمنانو باندِ | مهربان | د دوی د پاره دعا (به وی) | په کومه ورځ چه
ته راوباسی او دے په مؤمنانو دیر زیات مهربان دے الله تعالیٰ سره د ملاقات په ورځ به د
يَلْقَوْنَهٗ سَلٰمٌ ۚۖ وَاَعَدَّ لَهُمْ اَجْرًا كَرِيْمًا ﴿٤٤﴾ يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ
دوی ملاقات به کوی ده سره | سلام | او ده تیار کړے دے | دوی د پاره | اجر | د عزت | اے نبیؐ !
دوئ دعا داوی چه "السلام علیکم" او الله تعالیٰ ورله ډیره ښه بدله تیاره کړے ده. اے پیغمبره ! مونږ ته یو
اِنَّآ اَرْسَلْنٰكَ شَاهِدًا وَّمُبَشِّرًا وَّنَذِيْرًا ﴿٤٥﴾ وَّدَاعِيًا
بیشکه مونږ | رالیږلے یې ته | ګواهي ورکوونکے | او زیرے ورکوونکے | او ویروونکے | او بلونکے
داسے رسول لیږلے یئے چه ګواه هم یئے او (نیکانو ته) زیرے ورکوونکے هم او (د بدانو) ویروونکے هم یئے. او د الله
اِلَى اللّٰهِ بِاِذْنِهٖ وَسِرَاجًا مُّنِيْرًا ﴿٤٦﴾ وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِيْنَ بِاَنَّ
د الله طرف ته | د ده په حکم | او ډیوه | رڼبانه | او زیرے ورکړه | مسلمانانو ته | د دے خبرے چه
طرف ته د هغهٔ په حکم رابلونکے هم یئے او یوه رڼبانه ډیوه یئے. او ته مؤمنانو له زیرے ورکړه چه په هغوئ
لَهُمْ مِّنَ اللّٰهِ فَضْلًا كَبِيْرًا ﴿٤٧﴾ وَلَا تُطِعِ الْكٰفِرِيْنَ
دوی د پاره | د الله د طرف نه | فضل دے | ډیر لوئے | او خبره مهٔ منه | د کافرانو
د الله د طرف نه لوئے فضل کیدونکے دے . او د کافرانو او منافقانو
وَالْمُنٰفِقِيْنَ وَدَعْ اَذٰىهُمْ وَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ ؕ وَكَفٰى
او د منافقانو | او پرواه مهٔ کوه | د دوئ د تکلیف ورکولو | او توکل کوه | په الله باندِ | او کافی دے
خبرے مهٔ منه. او د دوئ د لاسه د رسیدونکی تکلیف پرواه مهٔ ساته او په الله باور لره او الله ورله
بِاللّٰهِ وَكِيْلًا ﴿٤٨﴾ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا نَكَحْتُمُ الْمُؤْمِنٰتِ ثُمَّ
الله | کارساز | اے خلقو (چه) | ایمان مو راوړے دے | هر کله چه تاسو نکاح کوئ | مؤمنانو ښځو سره | بیا
کافی کارساز دے اے مؤمنانو ! هر کله چه تاسو د مسلمانانو ښځو سره نکاح وکړئ، بیا
طَلَّقْتُمُوْهُنَّ مِنْ قَبْلِ اَنْ تَمَسُّوْهُنَّ فَمَا لَكُمْ عَلَيْهِنَّ مِنْ عِدَّةٍ
تاسو طلاق ورکوئ دوی ته | وړاندِ له دے نه | چه | تاسو لاس یوسئ دوی ته | نو نشته | تاسو له | د دوئ په ذمه | څهٔ عدت
د لاس لګولو نه ورله وړاندِ طلاق ورکړئ ، نو ستاسو په وجه په هغوئ هیڅ عدت مقرر نشته

تَعۡتَدُّوۡنَهَا ۚ فَمَتِّعُوۡهُنَّ وَسَرِّحُوۡهُنَّ سَرَاحًا جَمِيۡلًا ﴿٤٩﴾

چه تاسو پوره کړئ شمیر دَ هغې | نو ورکړئ دوئ ته څه فائده | او رخصت کړئ دوئ | په رخصتولو | ښو سره .

چه شمیره ئې دکړئ نو څه مناسب سامان ورته ورکړئ ، او په ښه طریقه ئې رخصت کړئ

يٰۤاَيُّهَا النَّبِيُّ اِنَّاۤ اَحۡلَلۡنَا لَكَ اَزۡوَاجَكَ الّٰتِيۡۤ اٰتَيۡتَ

اے نبی ! | بیشکه حلالے کړے مونږ | دَ پاره ستا | بیبیانے ستا | هغه چه | ورکړے دے تا

اے نبی ! مونږ تا ته ستا بیبیانے حلالے کړی دی چه تا ورته مهر اداکړے

اُجُوۡرَهُنَّ وَمَا مَلَكَتۡ يَمِيۡنُكَ مِمَّاۤ اَفَآءَ اللّٰهُ

مهر دَ هغوئ | او هغه (وینځے) | چه مالک دے دَ هغوئ | ستا لاس | له هغو نه | چه درکړی دی | الله

دے ، او هغه ښځے هم چه ستا په ملکیت کښے دی چه الله تعالیٰ درته په غنیمت کښے

عَلَيۡكَ وَبَنٰتِ عَمِّكَ وَبَنٰتِ عَمّٰتِكَ وَبَنٰتِ خَالِكَ وَبَنٰتِ خٰلٰتِكَ

تا ته (په طور دَ غنیمت) | او لونړه ستا دَ تره | او لونړه ستا دَ تروریانو | او لونړه ستا دَ ماما | او لونړه ستا دَ خاله گانو

درکړی دی ، او ستا دَ تره لونړه او ستا دَ تروریانو لونړه او ستا دَ ماما لونړه او ستا دَ خاله گانو لونړه

الّٰتِيۡ هَاجَرۡنَ مَعَكَ ۫ وَامۡرَاَةً مُّؤۡمِنَةً اِنۡ وَّهَبَتۡ

هغه چه | هجرت ئې کړے دے | تا سره | او ښځه | مسلمانه | که چرے | وُ بخښي

هغه چه تا سره ئې هجرت کړے دے او هغه مؤمنه ښځه چه خپل ځان (بے عوضه) نبی

نَفۡسَهَا لِلنَّبِيِّ اِنۡ اَرَادَ النَّبِيُّ اَنۡ يَّسۡتَنۡكِحَهَا ۗ خَالِصَةً

خپل ځان | نبی ته | که چرے | وُغواړی | نبی | چه | په نکاح کړی هغه | (دا حکم) خاص

ته وُبخښي ، هله که پیغمبر ئے په نکاح کښے راوستل وُغواړی ، دا حکم خاص ستا

لَّكَ مِنۡ دُوۡنِ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ ؕ قَدۡ عَلِمۡنَا مَا فَرَضۡنَا عَلَيۡهِمۡ

تا دَ پاره دے | سیوا | دَ نورو مؤمنانو نه | بیشکه مونږ پوهه یُو | په هغه څه | چه فرض کړل مونږ | په دوئ باندِ

دَ پاره دے نورو مؤمنانو له دا سے حکم نهٔ دے مونږ ته هغه حکمونه معلوم دی چه دوئ باندِ مو دَ

فِيۡۤ اَزۡوَاجِهِمۡ وَمَا مَلَكَتۡ اَيۡمَانُهُمۡ لِكَيۡلَا يَكُوۡنَ

دَ دوئ دَ بیبیانو په حقله | او دَ هغې (وینځو) په حقله | چه مالک دَ هغوئ دے | لاس دَ دوئ | چه نهٔ وی

بیبیانو او دَ وینځو په حقله مقرر کړی دی ، دَ پاره دَ دے چه په تا

عَلَيۡكَ حَرَجٌ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوۡرًا رَّحِيۡمًا ﴿٥٠﴾ تُرۡجِيۡ مَنۡ تَشَآءُ

په تا باندِ | څهٔ تنگسیا | او دے | الله | ډیر بخښونکے | مهربان | تهٔ لرے ساته | کومه چه | تهٔ غواړے

باندِ څهٔ تنگسیا رانهٔ شی ، او الله تعالیٰ ډیر بخښونکے مهربان دے په دے بیبیانو کښے تهٔ چه کومه غواړے

مِنۡهُنَّ وَتُـــْٔوِيۡۤ اِلَيۡكَ مَنۡ تَشَآءُ ؕ وَمَنِ ابۡتَغَيۡتَ مِمَّنۡ

له هغوئ نه | او ځائے ورکوه | خپل ځان سره | کومه چه | تهٔ وغواړے | او کومه چه | تهٔ وُغواړے | له هغوئ نه

نو دَ ځان نه ئے په ډډه وساته او کومه چه تهٔ غواړے نو ځان ته ئے رانزدے کړه او کومه چه دِ په ډډه ساتلے وی که هغه

عَزَلْتَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكَ ۚ ذٰلِكَ أَدْنٰى أَنْ تَقَرَّ

چه دې ګوښه کړې وي تا | نو نشته څه ګناه | په تا باندې | دا (حکم) | زيات نږدې دے | (دې ته) چه يخې شي

(بيا نږدے کول) وګوارے نو په دې کښې هيڅ ګناه نشته. په دے (حکم) سره زيات اميد دے چه دَ هغوئ

أَعْيُنُهُنَّ وَلَا يَحْزَنَّ وَيَرْضَيْنَ بِمَآ اٰتَيْتَهُنَّ كُلُّهُنَّ ۚ وَاللّٰهُ

سترګې دَ دوي | او دوي غمژنې نه وي | او دوي راضي وي | په هغه څه | چه ورکړے ته دوئ | ټولو ته | او الله

سترګې يخې شي او غمژنې نه شي او نه چه څه هغوئ له ورکړے هغه ټولې په هغې راضي وي. او الله تعالیٰ

يَعْلَمُ مَا فِيْ قُلُوْبِكُمْ ۚ وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيْمًا حَلِيْمًا ﴿٥١﴾ لَا يَحِلُّ

پوهيږي | په هغه څه | چه ستاسو په زړونو کښې دي | او دے | الله | پوهه | برد بارہ | حلال نه دي

ته ستاسو دَ زړونو حال معلوم دے، او هغه په هر څه پوهه برد باره دے. دَ دې موجوده ښځو

لَكَ النِّسَآءُ مِنْ بَعْدُ وَلَآ أَنْ تَبَدَّلَ بِهِنَّ مِنْ أَزْوَاجٍ وَّلَوْ

تا دَ پاره | ښځې | پس له دے نه | او نه دا چه | ته بدلے کړے | په ځائے دَ دوي | نورې بيبيانې | اګر که

نه علاوه نورې ښځې (واده کول) تا له حلالې نه دي او دا هم روانه دي چه ته دَ دوئ په بدل کښې نورے ښځې واخلې اګر که

أَعْجَبَكَ حُسْنُهُنَّ إِلَّا مَا مَلَكَتْ يَمِيْنُكَ ۗ وَكَانَ اللّٰهُ

په تعجب کښې اچوي تا | ښائست دَ هغوئ | مګر | هغه چه پرے مالک شو | لاس ستا | او دے الله

دَ هغوئ ښائست دِ زړه ته پريوځي، سيوا دَ دے نه چه ستا وينځه وي، او الله تعالیٰ په

عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ رَّقِيْبًا ﴿٥٢﴾ يٰٓأَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَدْخُلُوْا بُيُوْتَ ع ۱۲ ٦ ۳

په هر | څيز | نګهبان | اے | ايمان والو! | مه داخليږئ | په کورونو کښې

هر څيز باندې نګران دے. اے مؤمنانو! دَ پيغمبرؐ کورونو ته مه ورننوزئ

النَّبِيِّ إِلَّآ أَنْ يُّؤْذَنَ لَكُمْ إِلٰى طَعَامٍ غَيْرَ نٰظِرِيْنَ

دَ نبي | مګر (هغه وخت) | چه | اجازت ورکړے شي | تاسو ته | دَ طعام دَ پاره | نه انتظار کوونکي

خو هله ورننوزئ چه دَ خوراک دَ پاره درته اجازت درکړے شي، په دے شان چه دَ هغې طعام دَ پخلې

إِنٰىهُ ۙ وَلٰكِنْ إِذَا دُعِيْتُمْ فَادْخُلُوْا فَإِذَا طَعِمْتُمْ فَانْتَشِرُوْا

دَ پخلې دَ هغې | او ليکن | هر کله چه | وبللے شئ تاسو | نو داخل شئ | بيا هر کله چه | تاسو طعام وخورئ | نو خوارہ وارہ شئ

انتظار مه کوئ خو کله چه دعوت درکړے شي نو هله ورشئ. بيا چه ډوډئ وخورئ نو خوارہ وارہ شئ

وَلَا مُسْتَأْنِسِيْنَ لِحَدِيْثٍ ۚ إِنَّ ذٰلِكُمْ كَانَ يُؤْذِي النَّبِيَّ

او ناست مه پاتے کيږئ | خبرو دَ پاره | بيشکه | ستاسو دا خبره | تکليف رسوی | نبيؐ ته

او خبرو ته بنيخ ناست مه پاتے کيږئ، بيشکه ستاسو په دې خبرو پيغمبرؐ ته تکليف رسي

فَيَسْتَحْيٖ مِنْكُمْ ۚ وَاللّٰهُ لَا يَسْتَحْيٖ مِنَ الْحَقِّ ۗ وَإِذَا

پس دے حيا کوي | له تاسو نه | او الله | نه شرميږي | له حق (بيانولو) نه | او هر کله چه

خو هغه ستاسو لحاظ کوي، او الله تعالیٰ په صفا وينا کښې لحاظ نه کوي. او هر کله چه

سَأَلْتُمُوهُنَّ مَتَاعًا فَسْـَٔلُوهُنَّ مِن وَرَآءِ حِجَابٍ ذَٰلِكُمْ

غواړئ تاسو له بيبيانو د نبي نه | څۀ څيز | نو غواړئ له دوی نه | له وروستونه | د پردے | ستاسو دا خبره

پيغمبر د بيبيانو نه څۀ څيز غواړئ ، نو د پردے شاته ئے غواړئ ، دا کار ستاسو او

أَطْهَرُ لِقُلُوبِكُمْ وَقُلُوبِهِنَّ وَمَا كَانَ لَكُمْ أَن تُؤْذُوا۟

ډيرة پاکيزه ده | ستاسو د زړونو د پاره | او د دوئ د زړونو د پاره | او نۀ دی (جائز) تاسو د پاره | چه | تاسو تکليف ورکړئ

د هغوئ د زړونو د پاره ډيره پاکيزه طريقه ده او تاسو د پاره دا جائز نۀ دی چه د الله تعالیٰ رسول

رَسُولَ ٱللَّهِ وَلَآ أَن تَنكِحُوٓا۟ أَزْوَٰجَهُۥ مِنۢ بَعْدِهِۦٓ أَبَدًا ۚ إِنَّ

رسول | د الله ته | او نۀ دا چه | تاسو نکاح وکړئ | د دهٔ د بيبيانو سره | پس له دهٔ نه | هيڅ کله | بيشکه

ته تکليف ورکړئ يا دا چه د هغهٔ نه پس د هغهٔ بيبيانو سره چرے نکاح وتړئ ، دا خبره د الله

ذَٰلِكُمْ كَانَ عِندَ ٱللَّهِ عَظِيمًا ﴿٥٣﴾ إِن تُبْدُوا۟ شَيْـًٔا أَوْ تُخْفُوهُ

ستاسو دا خبره | ده | د الله په نزد | لويه (ګناه) | که چرے تاسو ښکاره کوئ | څۀ څيز | يا تاسو يې پټ ساتئ هغه

په نزد ډيره غټه ګناه ده . که تاسو يوه خبره ښکاره کړئ او که پټه ئے وساتئ

فَإِنَّ ٱللَّهَ كَانَ بِكُلِّ شَىْءٍ عَلِيمًا ﴿٥٤﴾ لَّا جُنَاحَ عَلَيْهِنَّ

نو بيشکه | الله | دے | په هر څيز باندے | پوهه | نشته دے (هيڅ) ګناه | په دوی باندے

نو الله تعالیٰ ته هر څيز ډير ښۀ معلوم دے . د پيغمبر بيبيانو له خپلو پلارانو او

فِىٓ ءَابَآئِهِنَّ وَلَآ أَبْنَآئِهِنَّ وَلَآ إِخْوَٰنِهِنَّ وَلَآ أَبْنَآءِ إِخْوَٰنِهِنَّ

د خپلو پلارانو (په وړاندے راتلو کښے) | او نۀ د خپلو ځامنو | او نۀ د خپلو ورونړو | او نۀ | د خپلو ورونړو د ځامنو

او ځامنو او ورونړو او وريرونو او خوريونو او خپلو (مسلمانانو) زنانو

وَلَآ أَبْنَآءِ أَخَوَٰتِهِنَّ وَلَا نِسَآئِهِنَّ وَلَا مَا مَلَكَتْ أَيْمَٰنُهُنَّ ۗ

او نۀ د ځامنو | د خپلو خويندو | او نۀ | د خپلو (هم جنسو) ښځو | او نۀ د هغه چا | چه مالک شوے دے | په لاس د دوئ (وينزے)

نه او خپلو وينځو ته (په مخامخ کيدو باندے) هيڅ پابندی نشته ، او تاسو

وَٱتَّقِينَ ٱللَّهَ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ شَهِيدًا ﴿٥٥﴾ إِنَّ ٱللَّهَ

او ويريږئ | د الله نه | بيشکه | الله | دے | په هر څيز باندے | ګواه | بيشکه | الله

د الله تعالیٰ نه ويره ساتئ ، الله تعالیٰ په هر څيز باندے ګواه دے . بيشکه الله تعالیٰ

وَمَلَٰٓئِكَتَهُۥ يُصَلُّونَ عَلَى ٱلنَّبِىِّ ۚ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ صَلُّوا۟

او د دهٔ فرښتے | درود ليږی | په نبی باندے | اے ايمان والو ! | تاسو (هم) درود وليږئ

او د دهٔ فرښتے په نبی باندے رحمتونه ليږی اے ايمان والو ! تاسو هم په دهٔ

عَلَيْهِ وَسَلِّمُوا۟ تَسْلِيمًا ﴿٥٦﴾ إِنَّ ٱلَّذِينَ يُؤْذُونَ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ

په دهٔ باندے | او سلام ووايئ | په سلام ويلو سره | بيشکه | کوم خلق چه | تکليف ورکوی | الله | او د دهٔ رسول ته

باندے درود او سلام ليږئ . څوک چه الله تعالیٰ او د هغهٔ رسول له تکليف ورکوی

لَعَنَهُمُ اللّٰهُ فِی الدُّنْیَا وَالْاٰخِرَةِ وَاَعَدَّ لَهُمْ عَذَابًا
لعنت وکړو په دوی باندې | الله | په دنیا کښې | او په آخرت (کښې) | او تیار ساتلے دے | دوی دپاره | عذاب
نو الله تعالیٰ به پرے په دنیا او آخرت دواړو کښې لعنت ورَوی او هغوئ له ئے سپکوونکے عذاب تیار
مُّهِیْنًا ﴿٥٧﴾ وَالَّذِیْنَ یُؤْذُوْنَ الْمُؤْمِنِیْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ بِغَیْرِ مَا اكْتَسَبُوْا
رُسواکوونکے | او کوم خلق چه | تکلیف ورکوی | مؤمنانو سړو | او مؤمنانو ښځو ته | بغیر | دَ څۀ (ګناه) کړے نه
ساتلے دے۔ او څوک چه مؤمنانو سړو او مؤمنانو ښځو له بے ګناه بے قصوره تکلیف ورکوی
فَقَدِ احْتَمَلُوْا بُهْتَانًا وَّاِثْمًا مُّبِیْنًا ﴿٥٨﴾ یٰۤاَیُّهَا النَّبِیُّ قُلْ ع ٢/٧
نو بیشکه اُوچت کړو دوی | بهتان | او ګناه | واضحه | اے نبی ! | ووایه
نو هغوئ د پیر لوئے بهتان لګوی او څرګنده ګناه کوی ، اے پیغمبره ! خپلو بیبیانو ته او
لِّاَزْوَاجِكَ وَبَنٰتِكَ وَنِسَآءِ الْمُؤْمِنِیْنَ یُدْنِیْنَ عَلَیْهِنَّ
خپلو بیبیانو ته | او خپلو لونړو ته | او ښځو | دَ مؤمنانو ته | چه راښکته ساتی | په خپلو ځانونو
خپلو لونړو ته او دَ نورو مسلمانانو بیبیانو ته ووایه چه خپل څادرونه لږ راښکته
مِنْ جَلَابِیْبِهِنَّ ؕ ذٰلِكَ اَدْنٰۤی اَنْ یُّعْرَفْنَ فَلَا یُؤْذَیْنَ ؕ
خپل څادرونه | دا (خبره) | زیاته نزدے ده | (دے ته) چه | دوی وُپیژندے شی | نو دوی ته به تکلیف نۀ شی ورکړے
ساتی - دغه شان به ژر پیژندے شی او دوی ته به (دَ بے هوده سړو دَ طرف نه) څۀ تکلیف نۀ رسی
وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِیْمًا ﴿٥٩﴾ لَىِٕنْ لَّمْ یَنْتَهِ الْمُنٰفِقُوْنَ وَالَّذِیْنَ
او دے | الله | ډیر بخښونکے | مهربان | که چرے | منع نۀ شول | منافقان | او هغه خلق
او الله تعالیٰ بخښونکے مهربان دے - که چرے منافقان او هغه خلق دَ کومو په زړونو کښې
فِیْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ وَّالْمُرْجِفُوْنَ فِی الْمَدِیْنَةِ لَنُغْرِیَنَّكَ
چه په زړونو دَ هغوئ کښې | مرض دے | او هوائی خبرے بنوروُنکی | په مدینه کښې | نو خامخا به مسلط کړو مونږ تا
چه خرابی ده او هغه خلق چه په مدینه کښې هوائی خبرے بنوروی منع نۀ شول ، نو مونږ به درپسے
بِهِمْ ثُمَّ لَا یُجَاوِرُوْنَكَ فِیْهَاۤ اِلَّا قَلِیْلًا ﴿٦٠﴾ مَّلْعُوْنِیْنَ ۛ اَیْنَمَا معانقة ١٢
په دوئ باندې | بیا به | دوی پلتے نۀ شی تاسره | په مدینه کښې | مګر | لږه موده | لعنت کړی شوی | کوم ځائے چه
تاو راپاڅوو نو بیا به دوئ تاسره په مدینه کښې ډیر لږ پاتے شی او لعنتیان به پاتے شی ، هر ځائے چه
ثُقِفُوْۤا اُخِذُوْا وَقُتِّلُوْا تَقْتِیْلًا ﴿٦١﴾ سُنَّةَ اللّٰهِ فِی الَّذِیْنَ
وُموندے شی | وُبه نیولے شی | او وُبه وژلے شی | په ښۀ وژلو سره | (دا) دستور دَ الله دے | په هغو خلقو کښې
موندلے شی نو نیولے به شی او وژلے به شی - الله تعالیٰ دَ پخوانو (قامونو) په حقله هم دا
خَلَوْا مِنْ قَبْلُ ۚ وَلَنْ تَجِدَ لِسُنَّةِ اللّٰهِ تَبْدِیْلًا ﴿٦٢﴾ یَسْـَٔلُكَ الربع
چه تیر شوی دی | وړاندې له دوی نه | او نۀ به هیڅکله بیا نۀ موے | دَ الله په دستور کښې | څۀ بدلون | تپوس کوی له تا نه
دستور اینښے وو او دَ الله تعالیٰ په دستور کښې به هیڅ قسم له تبدیلی بیا نۀ مومے - دا خلق له تا نه

النَّاسُ عَنِ السَّاعَةِ ؕ قُلْ اِنَّمَا عِلْمُهَا عِنْدَ اللّٰهِ ؕ وَمَا يُدْرِيْكَ

خلق | دَ قیامت په حقله | ووایه | بیشکه | علم دَ دے | الله سره دے | او تا ته څهٔ خبر دے

دَ قیامت (دَ نیټے) په حقله تپوس کوی، ورته ووایه چه دَ هغے حال (یوازے) الله تعالیٰ ته معلوم دے او تا ته څهٔ معلومه

لَعَلَّ السَّاعَةَ تَكُوْنُ قَرِيْبًا ۝۶۳ اِنَّ اللّٰهَ لَعَنَ الْكٰفِرِيْنَ وَاَعَدَّ

شاید چه | قیامت | وی | نزدے | بیشکه | الله | لعنت کړے دے | په کافرانو | او تیار کړے دے

ده؟ کیدے شی چه قیامت ډیر را نزدے وی. بیشکه الله تعالیٰ کافران دَ خپل رحمت نه لرے ساتلی دی او هغوئی له

لَهُمْ سَعِيْرًا ۝۶۴ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا ۚ لَا يَجِدُوْنَ وَلِيًّا

دوئی دَپاره | دَ لمبو اور | تل تر تله به وی دوی | په هغے کښے | همیشه | نهٔ به بیا مومی | څوک دوست

ئے دَ لمبو اور تیار کړے دے چه همیشه به په کښے پراتهٔ وی. هیڅوک به خپل یار یا مددگار

وَّلَا نَصِيْرًا ۝۶۵ يَوْمَ تُقَلَّبُ وُجُوْهُهُمْ فِي النَّارِ يَقُوْلُوْنَ

او نهٔ (څوک) مددگار | په کومه ورځ چه | اړولی راړولی به شی | مخونه دَ دوی | په اور کښے | دوی به وائی

بیا نهٔ مومی. په کومه ورځ چه دَ هغوئی مخونه په دوزخ کښے اړولی راړولی شی نو دا به وائی چه

يٰلَيْتَنَآ اَطَعْنَا اللّٰهَ وَاَطَعْنَا الرَّسُوْلَا ۝۶۶ وَقَالُوْا رَبَّنَآ

اے کاش زمونږ | چه اطاعت کړے وے مونږ | دَ الله | او اطاعت کړے وے مونږ | دَ رسول | او دوی ووئیل | اے زمونږ ربه!

اے کاش! که مونږ دَ الله حکمونه منلی وے او دَ رسول فرمان مو په ځائے کړے وے او دا به وائی چه اے زمونږه ربه!

اِنَّآ اَطَعْنَا سَادَتَنَا وَكُبَرَآءَنَا فَاَضَلُّوْنَا السَّبِيْلَا ۝۶۷ رَبَّنَآ

بیشکه مونږ حکم منلے وو | دَ خپلو سردارانو | او دَ خپلو مشرانو | پس دوی مونږ بے لارے کړو | دَ (حقے) لارے نه | اے زمونږه ربه!

مونږه به دَ خپلو سردارانو او دَ خپلو مشرانو خبرے منلے، نو دَ لارے نه ئے بے لارے کړو. اے زمونږه ربه!

اٰتِهِمْ ضِعْفَيْنِ مِنَ الْعَذَابِ وَالْعَنْهُمْ لَعْنًا كَبِيْرًا ۝۶۸

ورکړه دوی ته | غبرګ | عذاب | او لعنت وکړه په دوی | لعنت | لوئے

هغوئی له دوچنده سزا ورکړه ، او غټ غټ لعنتونه پرے ووروه

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَكُوْنُوْا كَالَّذِيْنَ اٰذَوْا مُوْسٰى فَبَرَّاَهُ اللّٰهُ

اے | ایمان والو! | مهٔ کیږئ تاسو | په شان دَ هغه خلقو | چه تکلیف ئے ورکړے وو | موسیٰ ته | بیا بری کړو دے | الله

اے مومنانو! تاسو دَ هغه چا په شان مهٔ کیږئ چه موسیٰ لهٔ ئے تکلیفونه ورکول نو الله تعالیٰ هغه دَ خلقو

مِمَّا قَالُوْا ؕ وَكَانَ عِنْدَ اللّٰهِ وَجِيْهًا ۝۶۹ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

لهغه څهٔ نه | چه وئیلی وو دوی | او وو دے | په نزد | دَ الله | ډیر مخور ریز | اے ایمان والو!

دَ خبرو نه بری کړو او هغه دَ الله تعالیٰ په نزد ډیر عزتمند وو. اے مومنانو!

اتَّقُوا اللّٰهَ وَقُوْلُوْا قَوْلًا سَدِيْدًا ۝۷۰ يُّصْلِحْ لَكُمْ اَعْمَالَكُمْ

ووېرېږئ | دَ الله نه | او وایئ | خبره | سمه | دے به درست کړی | تاسو دَپاره | ستاسو عملونه

دَ الله نه ووېرېږئ او خبره پخه (او د سنتینی) کوئ. الله تعالیٰ به ستاسو عملونه صالح کړی

وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ ۗ وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ فَقَدْ فَازَ

او معاف به کړی | تاسو ته | ګناهونه ستاسو | او څوک چه | حکم ومنی | د الله | او د ده د رسول | نو بیشکه هغه کامیاب شو

او ستاسو ګناهونه به بخښی ، او چا چه د الله او د ده د رسول خبره ومنله نو هغه ډیر زیات

فَوْزًا عَظِيْمًا ﴿٧١﴾ اِنَّا عَرَضْنَا الْاَمَانَةَ عَلَى السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ

په کامیابئ | لوئے سره | بیشکه | مونږ پیش کړو | خپل امانت | په آسمانونو | او په زمکه

کامیاب شو ۔ مونږ آسمانونو ، زمکے او غرونو ته ( د اطاعت د ذمه دارئ اوچتولو) امانت پیش

وَالْجِبَالِ فَاَبَيْنَ اَنْ يَّحْمِلْنَهَا وَاَشْفَقْنَ مِنْهَا وَحَمَلَهَا

او په غرونو | نو دوی انکار وکړو | چه اوچت کړی دوی دا | او دوی ووېرېدل | له هغے نه | او اوچت کړو دا

کړو نو ټولو د دے (غټے) ذمه وارئ د قبلولو نه انکار وکړو او له دے نه ووېرېدل او یوازے انسان وو چه دا

الْاِنْسَانُ ۗ اِنَّهٗ كَانَ ظَلُوْمًا جَهُوْلًا ﴿٧٢﴾ لِّيُعَذِّبَ اللّٰهُ

انسان | بیشکه دے | وو | ډیر ظالم | ډیر نادان | چه عذاب ورکړی | الله

ذمه وارئ ئے قبوله کړه هغه بیشکه ډیر ظالم او نادان دے ۔ نو نتیجه دا شوه چه الله تعالیٰ به

الْمُنٰفِقِيْنَ وَالْمُنٰفِقٰتِ وَالْمُشْرِكِيْنَ وَالْمُشْرِكٰتِ وَيَتُوْبَ

منافقانو سړو ته | او منافقانو ښځو ته | او مشرکانو سړو ته | او مشرکانو ښځو ته | او توبه قبوله کړی

منافقانو سړو ، منافقانو ښځو او مشرکانو سړو او مشرکانو ښځو له سزا ورکړی او د مؤمنانو سړو او

اللّٰهُ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ ۗ وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴿٧٣﴾ ع ٩/٥/٦

الله | د مؤمنانو سړو | او د مؤمنانو ښځو | او دے | الله | بخښونکے | مهربان

د مؤمنانو ښځو ګناهونه به معاف کړی او الله تعالیٰ بخښونکے مهربان دے ۔

سُوْرَةُ سَبَاٍ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ اَرْبَعٌ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | وَّخَمْسُوْنَ اٰيَةً وَّسِتُّ رُكُوْعَاتٍ

سوره سبا په مکه کښے نازل شوا وپه | (شروع) د الله په نوم سره چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے | دے کښے ۵۴ ایتونه او ۶ رکوع ګانے دی

د الله په نامه شروع کوم چه لوئے مهربان ډیر زيات رحم کوونکے دے

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ

ټول تعریفونه | الله لره دی | هغه الله | د کوم چه دی | څه چه په آسمانونو کښے دی | او څه چه په زمکه کښے دی

ټول تعریفونه یوازے الله تعالیٰ لره دی چه د هر هغه څیز مالک دے چه په آسمانونو او زمکه کښے دے

وَلَهُ الْحَمْدُ فِي الْاٰخِرَةِ ۗ وَهُوَ الْحَكِيْمُ الْخَبِيْرُ ﴿١﴾

او هم د ده دی | ټول تعریفونه | په آخرت کښے (هم) | او هم دے دے | حکمت والا | خبردار

او په آخرت کښے هم ټول تعریفونه هم د ده د پاره دی او هغه د حکمتونو خاوند او په هر څه خبر دے ۔

يَعْلَمُ مَا يَلِجُ فِي الْاَرْضِ وَمَا يَخْرُجُ مِنْهَا وَمَا

دے پوهه دے | په هغه څه | چه داخلیږی | په زمکه کښے | او په هغه څه چه اوځی | له دے نه | او څه چه

هغه ته ټول معلوم دی هر څه چه په زمکه کښے دننه ورننوځی او هر څه چه ترے نه بهر راوځی او هر څه چه

يَنْزِلُ مِنَ السَّمَآءِ وَمَا يَعْرُجُ فِيهَا ۚ وَهُوَ الرَّحِيمُ

نازلیږی | له آسمان نه | او څهٔ چه | پورته خیژی | په دے کښے | او دے | مهربان

له آسمان نه راکوزیږی او څهٔ چه آسمانونو ته خیژی ، او هغه ډیر رحم کوونکے

الْغَفُورُ ۲ وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لَا تَأْتِينَا السَّاعَةُ ۖ قُلْ

عفوه کوونکے دے | او وائی | کوم خلق چه | کافران دی | چه نهٔ به راځی په مونږ | قیامت | ووایه

زیات بخښونکے دے . او دا کافران وائی چه په مونږ به قیامت نهٔ راځی . (اے پیغمبره!) ته ورته ووایه

بَلَىٰ وَرَبِّي لَتَأْتِيَنَّكُمْ عَالِمِ الْغَيْبِ ۖ لَا يَعْزُبُ

ولے نه | زما دِ په رب قسم وی | هغه به ضرور راځی په تاسو | عالم دے | په غیبو | نهٔ پټیږی

چه ولے به نهٔ راځی ؟ زما دَ رب قسم دے ! چه عالم الغیب دے چه خامخا به در باند راځی ، دَ هغهٔ نه یوه

عَنْهُ مِثْقَالُ ذَرَّةٍ فِي السَّمَاوَاتِ وَلَا فِي الْأَرْضِ وَلَا

له ده نه | په وزن | دَ یوے ذرے | په آسمانونو کښے | او نهٔ | په زمکه کښے | او نهٔ

ذره قدر له هم پټه نهٔ ده نهٔ په آسمانونو کښے او نهٔ په زمکه کښے ، او نهٔ دَ دے

أَصْغَرُ مِنْ ذَٰلِكَ وَلَا أَكْبَرُ إِلَّا فِي كِتَابٍ مُبِينٍ ۳ لِيَجْزِيَ

زیات وړوکے | له دے نه | او نهٔ ډیر لوئے | مګر | (درج) دی په کتاب | ښکاره کښے | چه جزا ورکړی

(ذرے) نه وړوکے او نهٔ ترے نه لوئے څیز خو دا هر څهٔ په یو ښکاره کتاب (لوح محفوظ) کښے درج دی ، دَ پاره دَ

الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ ۚ أُولَٰئِكَ لَهُمْ مَغْفِرَةٌ

هغه کسانو ته | چه ایمان ئے راوړو | او عملونه ئے وکړل | ښهٔ | هم دا کسان دی | چه دوی دَ پاره | بخښنه ده

دے چه الله تعالیٰ اجر ورکړی هغه مؤمنانو له چه نیک کارونه کوی ، هم دا هغه خلق دی چه دوی دَ پاره

وَرِزْقٌ كَرِيمٌ ۴ وَالَّذِينَ سَعَوْا فِي آيَاتِنَا مُعَاجِزِينَ

او روزی | دَ عزت | او کوم خلقو چه | کوشش وکړو | زمونږ په آیتونو کښے | دَ زَد کولو

مغفرت او دَ عزت روزی ده . او هغه خلق کوم چه زمونږ دَ آیتونو دَ ناکامه کولو کوشش وکړو

أُولَٰئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ مِنْ رِجْزٍ أَلِيمٌ ۵ وَيَرَى الَّذِينَ

هم دا کسان دی | چه دوی دَ پاره | عذاب دے | له سزا | دردورکوونکے نه | او وینی | هغه خلق کوم ته

هغوئی له به دَ (زنګ رنګ) سختئ نه ډک دردناک عذاب ورکولے شی . او کوم خلقو ته چه علم ورکړے

أُوتُوا الْعِلْمَ الَّذِي أُنْزِلَ إِلَيْكَ مِنْ رَبِّكَ هُوَ الْحَقَّ ۙ

چه ورکړے شو | علم | هغه څیز | چه نازل شو | تا ته | ستا دَ رب له طرف نه | چه دا حق دے

شوے دے هغوئی پوهیږی چه کوم (کلام) ستا دَ رب له طرف نه په تا نازل شوے دے هغه بالکل رښتینے دے

وَيَهْدِي إِلَىٰ صِرَاطِ الْعَزِيزِ الْحَمِيدِ ۶ وَقَالَ الَّذِينَ

او هغه ښائی | لار ته ( دَ الله) | چه غالب | او دَ حمد و ثنا لائق دے | او وائی | هغه خلق چه

او دا کلام (خلقو ته) لار ښائی دَ غالب او دَ تعریفونو لائق خدائے طرف ته . او کافرانو (یو بل ته) ووئیل

كَفَرُوْا هَلْ نَدُلُّكُمْ عَلٰى رَجُلٍ يُّنَبِّئُكُمْ اِذَا مُزِّقْتُمْ

کافران دی | آیا مونږ وښایو تاسو ته | هغه سړے | چه تاسو ته خبر درکوی | هرکله چه | تاسو ریزه ریزه کړے شئ

چه راشئ چه داسے سړے درته وښایو چه هغه درته دا خبر درکوی چه څۀ وخت تاسو ریزه ریزه شئ

كُلَّ مُمَزَّقٍ ۙ اِنَّكُمْ لَفِيْ خَلْقٍ جَدِيْدٍ ۚ (٧) اَفْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ

په پوره ریزه ریزه کیدلو سره | نو بیشکه تاسو به | سر دوباره راپیدا کیږئ | آیا دۀ تړلی دی | په الله باندِ

نو بیا به تاسو سر دوباره راپیدا کیږئ ۔ آیا دۀ په الله تعالیٰ باندِ دروغ تړلی

كَذِبًا اَمْ بِهٖ جِنَّةٌ ۭ بَلِ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ

دروغ | یا په دۀ | لیونتوب دے | بلکه | هغه خلق چه | یقین نۀ کوی | په آخرت باندِ

دی او که لیونے شوے دے؟ (نه) بلکه هغه خلق کوم چه په آخرت باندِ یقین نۀ لری

فِي الْعَذَابِ وَالضَّلٰلِ الْبَعِيْدِ (٨) اَفَلَمْ يَرَوْا اِلٰى مَا بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ

په عذاب کښے | او په ګمراهئ | لرے کښے دی | آیا دوی کتلی نۀ دی | طرف د هغه څۀ ته | چه د دوی په وړاندِ دی

هغوئ په عذاب کښے او په اوږده ګمراهئ کښے پراته دی۔ آیا دوئ آسمان او زمکے ته نۀ دی

وَمَا خَلْفَهُمْ مِّنَ السَّمَاۗءِ وَالْاَرْضِ ۭ اِنْ نَّشَاْ نَخْسِفْ

او څۀ چه | د دوئ نه وروستو دی | له آسمان | او زمکے نه | که چرے مونږ وغواړو | نو ښخ به کړو مونږ

کتلی چه د دوئ نه وړاندِ او وروستو ښوارۀ شوی دی، که چرے مونږ وغواړو نو دوئ به

بِهِمُ الْاَرْضَ اَوْ نُسْقِطْ عَلَيْهِمْ كِسَفًا مِّنَ السَّمَاۗءِ ۭ اِنَّ

دوی | په زمکه کښے | یا به مونږ وغورزوو | په دوئ باندِ | ټکړے | له آسمان نه | بیشکه

په زمکه کښے ښخ کړو یا به په دوئ له آسمان نه ټکړے راوغورزوو ۔ یقیناً په

فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّكُلِّ عَبْدٍ مُّنِيْبٍ ۧ (٩) وَلَقَدْ اٰتَيْنَا دَاوٗدَ ع ٩ ٧

په دے کښے | نخښه ده | د پاره د هر | بنده | رجوع کوونکی | او بیشکه | مونږ ورکړے وو | داؤد ته

دے کښے د عبرت نخښه ده هغه بنده د پاره چه الله طرف ته رجوع کوی ۔ او یقیناً مونږ داؤدؑ ته خپل نعمتونه

مِنَّا فَضْلًا ۭ يٰجِبَالُ اَوِّبِيْ مَعَهٗ وَالطَّيْرَ ۚ وَاَلَنَّا

له خپل طرفه | فضیلت | اے غرونو ! | تسبیح کوئ | د دۀ سره | او (اے) مارغانو (تاسو هم) | او نرمه کړله مونږ

ورکړی وو (او حکم مو ورکړو چه) اے غرونو ! داؤدؑ سره تسبیح لولئ او مارغانو ته هم دا حکم وو او مونږ دۀ د

لَهُ الْحَدِيْدَ ۙ (١٠) اَنِ اعْمَلْ سٰبِغٰتٍ وَّقَدِّرْ فِي السَّرْدِ

دۀ د پاره اوسپنه | چه | جوړے کړه | کشاده زغرے | او اندازه ساته | په (کړو) جوړولو کښے

پاره اوسپنه نرمه کړه او (حکم مو ورکړو) چه پوره پوره زغرے جوړوئ او د کړو جوړولو اندازه مقرر کړئ

وَاعْمَلُوْا صَالِحًا ۭ اِنِّىْ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ (١١) وَلِسُلَيْمٰنَ

او عمل کوئ | نیک | بیشکه زۀ | هغه څۀ ته | چه تاسو کوئ | ګورم | او سلیمان د پاره (مونږ تابع کړله)

او ښۀ عملونه کوئ بیشکه زۀ ستاسو عملونه وینم ګورم ۔ او مونږ هوا د سلیمانؑ

وَلِسُلَيْمٰنَ الرِّيْحَ غُدُوُّهَا شَهْرٌ وَّرَوَاحُهَا شَهْرٌ ج وَاَسَلْنَا

هوا | دَ دِےَ سحره تلل | دَ یوے میاشتے (سفر وو) | او دَ مابنام تلل (هم) | دَ یوے میاشتے (سفر) | او بہیولے وو مونږ

تابع کړله چه سحر به ئے هم دَ میاشتے هومره منزل کولو او مابنام به ئے هم دَ میاشتے هومره منزل کولو او مونږ دَ

لَهٗ عَيْنَ الْقِطْرِ ط وَمِنَ الْجِنِّ مَنْ يَّعْمَلُ بَيْنَ يَدَيْهِ

دهٔ دَ پاره | چینه | دَ (وِیلے شوے) تانبے | او له پیریانو نه (ځنے) | (داسے وو) چه کار به ئے کولو | دَ دهٔ په وړاندِ

هغهٔ دَ پاره دَ وِیلے شوے تانبے چینه جاری کړله او ځنے پیریان داسے وو چه دَ هغهٔ په وړاندِ به ئے دَ خدائے پاک په

بِاِذْنِ رَبِّهٖ ط وَمَنْ يَّزِغْ مِنْهُمْ عَنْ اَمْرِنَا نُذِقْهُ

په حکم | دَ رب دَ دهٔ | او څوک چه | واوړی | له دوی نه | زمونږ له حکم نه | نو مونږ به ئے څکوؤ دهٔ ته

حکم کار خدمت کولو اوکهٔ چرے په دوی کښے څوک زمونږ دَ حکم (یعنی اطاعت دَ سلیمان) نه کوږ شی نو مونږ به هغهٔ ته

مِنْ عَذَابِ السَّعِيْرِ ⑫ يَعْمَلُوْنَ لَهٗ مَا يَشَآءُ مِنْ مَّحَارِيْبَ

له عذاب | دَ دوزخ نه | دوی به جوړول | دهٔ دَ پاره | هغه څهٔ چه دهٔ به غوښتل | دنګ دنګ ځایونه

دَ جهنّم دَ عذاب مزه وڅکوؤ - دے پیریانو به سلیمانؑ له دَ دهٔ دَ مرضئ څیزونه جوړول لکه دنګ دنګ ځایونه

وَتَمَاثِيْلَ وَجِفَانٍ كَالْجَوَابِ وَقُدُوْرٍ رّٰسِيٰتٍ ط اِعْمَلُوْٓا

او تصویرونه | او خانکونه | په شان دَ تالابونو | او دیګونه | کلک په ځائے پراته | عمل کوئ

او تصویرونه او دَ تالاب غوندِ لوئے لوئے خانکونه او لوئے لوئے دیګونه چه (هم په یو ځائے به) پراته وو. اے دَ داؤد

اٰلَ دَاوٗدَ شُكْرًا ط وَقَلِيْلٌ مِّنْ عِبَادِيَ الشَّكُوْرُ ⑬ فَلَمَّا

اے آل دَ داؤد | دَ شکر | او لږ دی | زما له بندګانو نه | شکر کوونکی | بیا هرکله چه

کورنئ (دَ الله تعالیٰ) شکر په ځائے راوړئ او زما په بندګانو کښے شکر کوونکی ډیر کم دی۔ نو څهٔ وخت چه

قَضَيْنَا عَلَيْهِ الْمَوْتَ مَا دَلَّهُمْ عَلٰى مَوْتِهٖٓ اِلَّا دَآبَّةُ الْاَرْضِ

حکم جاری کړو مونږ | په دهٔ | دَ مرګ | (نو) پته ورنهٔ کړه دوی ته | دَ دهٔ دَ مرګ | مګر | یو وینهٔ (چینجی)

مونږ په هغهٔ دَ مرګ حکم جاری کړو نو هغوئ ته بل چا نهٔ خو یو وینهٔ (چینجی) دَ مرګ پته ورکړه چه دَ

تَاْكُلُ مِنْسَاَتَهٗ ج فَلَمَّا خَرَّ تَبَيَّنَتِ الْجِنُّ اَنْ لَّوْ كَانُوْا

چه خوړله ئے | امسا دَ دهٔ | بیا هرکله چه | دے پریوتلو | نو ښکاره شوه | پیریانو ته | کهٔ چرے | وے دوی

هغهٔ امسائے خوړله ، نو څهٔ وخت چه هغه راپریوتلو نو پیریانو ته ښکاره شوه ، چه کهٔ چرے مونږ دَ غیبو

يَعْلَمُوْنَ الْغَيْبَ مَا لَبِثُوْا فِى الْعَذَابِ الْمُهِيْنِ ط ⑭

پوهه | په غیبو | نو نهٔ به وُو دوی پراته | په عذاب کښے | دَ ذلت

په کارونو خبر وے ، نو په دے ذلیل عذاب کښے به (دومره موده) پراتهٔ نهٔ وے۔

لَقَدْ كَانَ لِسَبَاٍ فِىْ مَسْكَنِهِمْ اٰيَةٌ ج جَنَّتٰنِ

بیشکه | وه | (قوم دَ) سبا دَ پاره | دَ دوی په ځائے دَ اوسیدلو کښے | یوه نخښه | دوه باغونه

بیشکه دَ سبا دَ قوم دَ پاره دَ دوی په آبادئ کښے (دَ الله تعالیٰ) نخښے وے چه دَ دِے بنی اوکس

عَنْ يَّمِيْنٍ وَّشِمَالٍ ۬ كُلُوْا مِنْ رِّزْقِ رَبِّكُمْ وَاشْكُرُوْا لَهٗ ؕ بَلْدَةٌ

له ښي طرف نه اوله ګس طرف نه | خورئ تاسو | له رزق نه | دَرب خپل | اوشکر کوئ | دَده لَه | ښار دے

طرف نه دوه باغونه (ښوارهٔ) وو (اواجازت ووچه) دَ خپل رب درکړے رزق خورئ او دَ هغهٔ شکر کوئ — دا (ستاسو ښار) پاکیزه

طَيِّبَةٌ وَّرَبٌّ غَفُوْرٌ ۝١٥ فَاَعْرَضُوْا فَاَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ

پاکیزه | اورب دے | بخښونکے | پس دوی مخ واړولو | نو راولیږلو مونږ | په دوی باندِ

ښار دے او (ستاسو رب) بخښونکے رب دے. نو هغوئ زمونږ دَ حکم نه مخ واړولو نو مونږ په هغوئ باندِ دَ زور

سَيْلَ الْعَرِمِ وَبَدَّلْنٰهُمْ بِجَنَّتَيْهِمْ جَنَّتَيْنِ ذَوَاتَيْ اُكُلٍ

سیلاب | دَ زور | او په بدل کښے ورکړل مونږ دوی ته | په ځائے دَدؤ باغونو دَدوئ | دوه باغونه نور | چه دَ دِے میوه وه

سیلاب راپریښودو او دَ دواړو اړخونو دَ (ګنړو ګوړو) باغونو په بدل کښے مونږ دوی ته داسے باغونه ورکړل چه

خَمْطٍ وَّاَثْلٍ وَّشَيْءٍ مِّنْ سِدْرٍ قَلِيْلٍ ۝١٦ ذٰلِكَ

بے خونده | او اُونے دَ غز | او څه | (اُونے) دَ بېرے | لږے شان | دا

بے خونده میوے او غزونو او لږے غوندے دَ بیرو جاړے په کښے ولاړے وے دا مونږ دوی ته

جَزَيْنٰهُمْ بِمَا كَفَرُوْا ؕ وَهَلْ نُجٰزِيْٓ اِلَّا الْكَفُوْرَ ۝١٧

سزا ورکړے وه مونږ دوی ته | په وجه دَ دوئ دَ ناشکرئ | او نهٔ | ورکوو مونږ ه سزا | مګر | ناشکرو ته

دَ ناشکرئ بدله ورکړه. او مونږ داسے سزا ګانے فقط ناشکرو خلقو له ورکوو،

وَجَعَلْنَا بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ الْقُرَى الَّتِيْ بٰرَكْنَا فِيْهَا قُرًى

او جوړکړی وو مونږ | په مینځ دَ دوی | او په مینځ دَ هغه کلو کښے | چه برکت ایښے وو مونږ | په هغے کښے | کلی

او مونږ دَ هغوئ دَ ملک او دَ هغو کلو تر مینځه چه برکتونه مو په کښے ایښی وو نور ډیر کلی اباد کړی وو چه ښکاره

ظٰهِرَةً وَّقَدَّرْنَا فِيْهَا السَّيْرَ ؕ سِيْرُوْا فِيْهَا لَيَالِيَ

چه ښکاره وو | او اندازے مقرر کړے مونږ | په هغے کښے | دَ تګ راتګ | روان اوسئ | په دِے کښے | دَ شپے

پراته وو او په هغے کښے مو دَ تګ راتګ (سمے پخے) اندازے مقرر کړے وے، چه بے غمه او بے فکره دِ په کښے شپه

وَاَيَّامًا اٰمِنِيْنَ ۝١٨ فَقَالُوْا رَبَّنَا بٰعِدْ بَيْنَ اَسْفَارِنَا

او دَ ورځے | په امن سره | پس دوی وویل | اے زمونږ ربه! | لرے والے پیدا کړه | زمونږ دَ سفرونو په مینځ کښے

او ورځ تګ راتګ کوئ. نو هغوئ وویل چه اے زمونږ ربه! زمونږ دا سفرے لرے او اوږدے کړه!

وَظَلَمُوْٓا اَنْفُسَهُمْ فَجَعَلْنٰهُمْ اَحَادِيْثَ وَمَزَّقْنٰهُمْ كُلَّ مُمَزَّقٍ ؕ

او دوی ظلم وکړو | په خپلو ځانونو | پس جوړکړل مونږ دوی | افسانے | او ټوټے ټوټے کړل مونږ دوی | په پوره ټوټے کولو سره

او په خپل ځان ئے زیاتے وکړو، نو مونږ ترے نه قیصئ جوړے کړے او ښوارهٔ وارهٔ مو کړل

اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّكُلِّ صَبَّارٍ شَكُوْرٍ ۝١٩ وَلَقَدْ صَدَّقَ

بیشکه | په دِے کښے | نخښے دی | دَ پاره دَ هر صبر کوونکی | شکر کوونکی | او بیشکه | رښتیا بیا موندلو

په دِے واقعه کښے هر صبر کوونکی او شکر کوونکی انسان دَ پاره (دَ عبرت) نخښے دی. او شیطان دَ هغوئ په حقله

عَلَيْهِمْ اِبْلِيْسُ ظَنَّهٗ فَاتَّبَعُوْهُ اِلَّا فَرِيْقًا مِّنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۲۰﴾

په دوی باندِ | شیطان | خپل گمان | پس دوی پیروی وکړه دده | سیوا | د یوے ډلے | له مؤمنانو نه

خپل (د گمراهئ) گمان صحیح بیاموند و نو د ایماندارو د یو ټولی نه بغیر نور ټول خلق د هغهٔ په لاره روان شول ـ

وَمَا كَانَ لَهٗ عَلَيْهِمْ مِّنْ سُلْطٰنٍ اِلَّا لِنَعْلَمَ مَنْ يُّؤْمِنُ

او نهٔ | وه | د ده | په دوی باندِ | څهٔ غلبه | مگر | چه مونږ معلوم کړو | چه څوک یقین کوی

او د شیطان په هغوئ باندِ نور هیڅ وس نهٔ رسیده و ، مگر د دے (امتحان) د پاره چه مونږ هغه خلق کوم چه په

بِالْاٰخِرَةِ مِمَّنْ هُوَ مِنْهَا فِيْ شَكٍّ ؕ وَرَبُّكَ

په آخرت باندِ | له هغه چانه | چه هغه | له دے نه | په شک کښے دی | او ستا ربّ

آخرت یقین لری د هغه خلقو نه (جدا) ښکاره کړو څوک چه په دے کښے شک کوی ، او ستا رب د هر څیز

عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ حَفِيْظٌ ﴿۲۱﴾ قُلِ ادْعُوا الَّذِيْنَ زَعَمْتُمْ

په هر څیز باندِ | نگهبان دے | وو ایه | و بلئ | هغه کسان چه | تاسو ئے گمان کوئ

نگران دے ـ (اے پیغمبره!) تهٔ ورته وو ایه چه تاسو د الله تعالیٰ نه بغیر په بل چا د خدائی گمان

مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ ۚ لَا يَمْلِكُوْنَ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ فِي السَّمٰوٰتِ وَلَا

سیوا د الله نه | چه مالکان نهٔ دی دوی | د وزن | د یوے ذرے | په آسمانونو کښے | او نهٔ

کوئ هغوئ ټول راوبلئ ، هغوئ خو په آسمانونو او زمکه کښے د ذرے برابر اختیار هم نهٔ

فِي الْاَرْضِ وَمَا لَهُمْ فِيْهِمَا مِنْ شِرْكٍ وَّمَا لَهٗ مِنْهُمْ

په زمکه کښے | او نشته دے د دوی | په دے دواړو کښے | څهٔ شرکت | او نشته دے | د الله | له دوی نه

لری ، او نهٔ د هغوئ په دے کښے څهٔ حصه شته ، او نهٔ په هغوئ کښے څوک د الله تعالیٰ سره

مِّنْ ظَهِيْرٍ ﴿۲۲﴾ وَلَا تَنْفَعُ الشَّفَاعَةُ عِنْدَهٗٓ اِلَّا لِمَنْ اَذِنَ لَهٗ ؕ

څوک مددگار | او فائده به نهٔ ورکوی | سفارش | الله سره | مگر | هغه چانه | چا د پاره چه دے اجازت ورکړی

امداد کولے شی ـ او د الله تعالیٰ په دربار کښے سفارشونه هیڅ فائده نهٔ ورکوی خو د چا په حقله چه هغه اجازت

حَتّٰٓى اِذَا فُزِّعَ عَنْ قُلُوْبِهِمْ قَالُوْا مَاذَا ۙ قَالَ رَبُّكُمْ ؕ

تر دے چه | هر کله (هیبت) لرے کړے شی | د دوی د زړونو نه | (نو) وائی | چه څهٔ | وفرمائیل | ستاسو رب

ورکړی تر دے چه څهٔ وخت د هغوئ د زړونو نه هیبت کم شی نو د یو بل نه تپوس کوی چه ستاسو رب څهٔ حکم ورکړے دے؟

قَالُوا الْحَقَّ ۚ وَهُوَ الْعَلِيُّ الْكَبِيْرُ ﴿۲۳﴾ قُلْ مَنْ يَّرْزُقُكُمْ

دوی وائی | حقه (خبره) | او هم دے دے | عالیشان | د ټولو نه لوئے | وو ایه | څوک | روزی درکوی تاسو ته

هغوئ ورته وائی چه د حقے خبرے ، او دے ډیر اوچت د ټولو نه لوئے دے ـ (اے پیغمبره!) تهٔ تپوس وکړه چه تاسو له د آسمان

مِّنَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ قُلِ اللّٰهُ ۙ وَاِنَّآ اَوْ اِيَّاكُمْ لَعَلٰى هُدًى

له آسمانونو نه | او زمکے نه | وو ایه | الله | او بیشکه مونږ | یا تاسو | په هدایت یو

او د زمکے (دواړو) نه څوک روزی درکوی؟ ورته وو ایه چه الله (روزی درکوی) او بیشکه مونږ یا تاسو یا خو په سمه لاره روان یو

أَوْ فِى ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ ٢٤ قُل لَّا تُسْـَٔلُونَ عَمَّآ أَجْرَمْنَا
یا | په ګمراهئ | ښکاره کښې | ووایه | تپوس به نه شي کیدې له تاسو نه | د دې په حقله | چه مونږ جرم وکړو
یا په ښکاره ګمراهئ کښې یو۔ ته ورته ووایه چه تاسو نه به زمونږ د جرمونو په حقله تپوس نه کیږی او نه

وَلَا نُسْـَٔلُ عَمَّا تَعْمَلُونَ ٢٥ قُلْ يَجْمَعُ بَيْنَنَا رَبُّنَا
او نه به له مونږ نه تپوس کولے شي | د هغه څه | چه کوئ ئې تاسو | ووایه | جمع به کړی | مونږ | زمونږ رب
به مونږ نه ستاسو د اعمالو (په باره کښې) تپوس کیږی۔ ته ورته ووایه چه زمونږ رب به ټول را جمع کړی نو بیا به

ثُمَّ يَفْتَحُ بَيْنَنَا بِالْحَقِّ وَهُوَ الْفَتَّاحُ الْعَلِيمُ ٢٦ قُلْ
بیا به فیصله وکړی | زمونږ په مینځ کښې | په انصاف سره | او دے | لوئ فیصله کوونکے | پوهه دے۔ | ووایه
زمونږ ترمینځه سمه روغه فیصله وکړی او هغه په فیصله کولو کښې ډیر ښه په هر څه پوهه دے۔ ته ورته ووایه

أَرُونِىَ الَّذِينَ أَلْحَقْتُم بِهِۦ شُرَكَآءَ كَلَّا بَلْ هُوَ اللَّهُ
وښایئ ماته | هغه خلق چه | جوړ کړی دی تاسو هغوئ | د هٔ سره | شریکان | هیڅکله نه | بلکه | هم دے دے | الله
چه لږ ماته خو هغه شریکان وښایئ چه تاسو د الله تعالیٰ سره یو ځائے کړی دی نا هیڅ ئے نا۔ بلکه الله تعالیٰ یوازے هغه دے

الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ٢٧ وَمَآ أَرْسَلْنَٰكَ إِلَّا كَآفَّةً لِّلنَّاسِ بَشِيرًا
غالب | د حکمت خاوند | او نه ئې ته رالیږلے مونږ ته | مګر | ټولو انسانانو طرف ته | زیرے ورکوونکے
چه ډیر زبردست او د حکمت خاوند دے۔ او (اے نبیٔ) مونږ ته ټولو خلقو د پاره (د جنت) زیرے ورکوونکے او (د عذاب نه)

وَنَذِيرًا وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ٢٨ وَيَقُولُونَ مَتَىٰ
او ویروونکے | او لیکن | اکثر | خلق | نه پوهیږی | او دوئ وائی چه | کله به (پوره کیږی)
ویروونکے جوړ کړے لیږلے یئے۔ خو اکثر خلق په دے خبرے نه پوهیږی۔ او دوئ وائی چه دا (د قیامت) وعده

هَٰذَا الْوَعْدُ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ ٢٩ قُل لَّكُم مِّيعَادُ يَوْمٍ
دا | وعده | که چرے | یئ تاسو | رښتیا ویونکی | ووایه | تاسو د پاره | وعده د کا | د هغه ورځې
به کله پوره کیږی که چرے تاسو رښتینی یئې ؟ ته ورته ووایه چه تاسو سره د یوے داسے ورځې وعده

لَّا تَسْتَـْٔخِرُونَ عَنْهُ سَاعَةً وَلَا تَسْتَقْدِمُونَ ٣٠ وَقَالَ الَّذِينَ — النصف ع ٣ ٩
چه تاسو به وروستو پاتے نه شئ | له هغې نه | یو ساعت | او نه به | تاسو وړاندې شئ | او وائی | کوم خلق چه
ده چه نه به ترے نه یو ساعت وروستو کیدے شئ او نه به ترے نه مخکښے کیدے شئ۔ او دا کافران

كَفَرُوا لَن نُّؤْمِنَ بِهَٰذَا الْقُرْءَانِ وَلَا بِالَّذِى بَيْنَ يَدَيْهِ
کافران دی | چه مونږ به هیڅکله ایمان نه راوړو | په دے قرآن باندې | او نه | په هغه (کتاب) باندې | چه له دې نه وړاندې دے
وائی چه مونږ به هیڅکله په دے قرآن باندې ایمان رانه وړو او نه به په هغه کتابونو چه د دے نه وړاندې راغلی دی

وَلَوْ تَرَىٰٓ إِذِ الظَّٰلِمُونَ مَوْقُوفُونَ عِندَ رَبِّهِمْ يَرْجِعُ
او کاش! | ته ووینے | هغه وخت چه ظالمان به | ودرولے شي | د خپل رب په وړاندې | اړوی به
او که ته هغه وخت وګورے څه وخت چه دا ظالمان به خپل رب ته مخامخ ودرولے شي، په یو بل باندې به

بَعْضُهُمْ اِلٰى بَعْضِ ۨ الْقَوْلَ ۚ يَقُوْلُ الَّذِيْنَ اسْتُضْعِفُوْا

له دوی نه | په یل بانده | خبره (الزام) | وائي به | هغه خلق چه | چه کمزوری ګڼړلے شوي وو

بڼامونه ورا ړوي ، کمزوری خلق به غټانو خلقو ته دا وائي

لِلَّذِيْنَ اسْتَكْبَرُوْا لَوْلَآ اَنْتُمْ لَكُنَّا مُؤْمِنِيْنَ ﴿۳۱﴾ قَالَ الَّذِيْنَ

هغو کسانو ته | چه کبرژن وو | که چرے تاسو نه وے | نو مونږ به ضرور وو | ایمان والا | وُ به وائي | هغه خلق چه

چه که چرے تاسو موجود نه وے نو مونږ به ضرور ایمان راوړے وو . نو غټان به

اسْتَكْبَرُوْا لِلَّذِيْنَ اسْتُضْعِفُوْٓا اَنَحْنُ صَدَدْنٰكُمْ عَنِ الْهُدٰى

کبرژن وُو | هغه کسانو ته | چه کمزوری ګڼړلے شوي وو | آیا مونږ | منع کړي وُ تاسو | له هدایت نه

کمزورو ته جواب ورکړي ، چه آیا تاسو مونږ د هدایت قبلولو نه منع کړي وُ

بَعْدَ اِذْ جَآءَكُمْ بَلْ كُنْتُمْ مُّجْرِمِيْنَ ﴿۳۲﴾ وَقَالَ الَّذِيْنَ اسْتُضْعِفُوْا

پس له دے نه | چه هغه راغے تاسو ته | بلکه | وُ تاسو | مجرمان | او وُ به وائي | هغه خلق | چه کمزوری وو

هغه وخت چه هدایت تاسو ته راغلے وو؟ تا بلکه تاسو په خپله قصور کړے وو . او کمزوری خلق به د غټو

لِلَّذِيْنَ اسْتَكْبَرُوْا بَلْ مَكْرُ الَّيْلِ وَالنَّهَارِ اِذْ تَاْمُرُوْنَنَآ

هغه خلقو ته | چه کبرژن وو | (نه) بلکه | مکر | د شپے | او د ورځے | هر کله چه به | تاسو مونږ ته حکم کولو

غټانو ته وائي ، چه (داخو) ستاسو د صبا بیګا مکرونو مونږ منع کړي وو چه تاسو به راته (هر

اَنْ نَّكْفُرَ بِاللّٰهِ وَنَجْعَلَ لَهٗٓ اَنْدَادًا ۭ وَاَسَرُّوا النَّدَامَةَ لَمَّا

چه مونږ انکار وکړو | د الله | او مونږ مقرر کړو | د هغهٔ د پاره | شریکان | او دوی به پټوي | پښیماني | هر کله چه

وخت) وینا کاته کولے چه مونږ د الله نه انکار وکړو او هغهٔ له د شریکان پیدا کړو ، او دغه خلق چه عذاب وُوینی نو خپله

رَاَوُا الْعَذَابَ ۭ وَجَعَلْنَا الْاَغْلٰلَ فِيْٓ اَعْنَاقِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ۭ هَلْ

دوی ووینی | عذاب | او وا به چوُو مونږ | طوقونه | په غاړو کښے | د هغه کسانو | چه کافران دي | نهٔ به

پښیماني به پټوي او مونږ به د هغو خلقو په غاړو کښے طوقونه واچوُو کوم چه کفر وکړو ، دوی ته به هم

يُجْزَوْنَ اِلَّا مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۳۳﴾ وَمَآ اَرْسَلْنَا فِيْ قَرْيَةٍ مِّنْ نَّذِيْرٍ

بدله ورکولے شي دوی ته | مگر | د هغه څهٔ | چه دوی به کول | او نهٔ دے لیږلے مونږ | په یو کلی کښے | څوک ویروونکے

د هغو عملونو سزا ملاویږي کوم چه به دوئ کړي وي . او مونږ چه هرچرے یو کلی ته څوک ویروونکے ورلیږلے دے

اِلَّا قَالَ مُتْرَفُوْهَآ ۙ اِنَّا بِمَآ اُرْسِلْتُمْ بِهٖ كٰفِرُوْنَ ﴿۳۴﴾

مگر | وئیل به | خوشحاله خلقو د هغه کلی | بیشکه مونږ | د هغه څهٔ نه | چه رالیږلے شوي یئ تاسو په هغے | منکر یُو

نو د هغه ځائے مالدارو دا وئیلی دي چه مونږ خو ستاسو د راوړلو حکمونو نه انکاریان یُو .

وَقَالُوْا نَحْنُ اَكْثَرُ اَمْوَالًا وَّاَوْلَادًا ۙ وَّمَا نَحْنُ بِمُعَذَّبِيْنَ ﴿۳۵﴾

او دوی وویل | چه مونږ | زیات یُو | په مال | او اولاد کښے | او مونږ له به عذاب نهٔ شي راکولے

او هغوئ دا هم وئیلی دي چه مونږ د مال او اولاد په لحاظ سره تاسو نه ډیر زیات یُو او مونږ له به هیڅ عذاب نهٔ شي راکولے

قُلْ اِنَّ رَبِّيْ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيَقْدِرُ

وواىه | بيشكه | زمارب | كشاده كوى | روزى | چاد پاره چه | وغواړى | او تنګوى

ته ورته ووايه چه زما رب د چا په حقله وغواړى نو روزى ورله فراخه كړى يا (روزى ورله) تنګه كړى

وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۳۶﴾ وَمَآ اَمْوَالُكُمْ وَلَآ اَوْلَادُكُمْ

او ليكن | اكثر | خلق | نه پوهيږى | او نه دى مالونه ستاسو | او | نه اولاد ستاسو

خو اكثر خلق (په دے خبره) نه پوهيږى. او ستاسو دا مالونه او ستاسو دا اولاد تاسو زمونږ

بِالَّتِيْ تُقَرِّبُكُمْ عِنْدَنَا زُلْفٰٓى اِلَّا مَنْ اٰمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا

(دا سے) چه هغه | تاسو نزدے كړى | مونږ ته | په قربت كښے | مګر | څوك چه | ايمان راوړى | او عملونه وكړو | نيك

په دربار كښے نزدے كولے نه شى، البته هغه خلق چه ايمان راوړى او هغوى نيك عمل هم وكړى

فَاُولٰٓئِكَ لَهُمْ جَزَآءُ الضِّعْفِ بِمَا عَمِلُوْا وَهُمْ

پس دغه د ه | چه دوى دپاره | بدله ده | غبرګه | د هغه څه | چه دوى وكړو | او | دوى به

نو هغوى ته به د خپل عمل دوچنده بدله وركولے شى، او هغوى به (د جنت)

فِي الْغُرُفٰتِ اٰمِنُوْنَ ﴿۳۷﴾ وَالَّذِيْنَ يَسْعَوْنَ فِيْٓ اٰيٰتِنَا

په بالاخانو كښے | په امن وى | او كوم خلق چه | كوشش كوى | زمونږ (د) آيتونو (په معامله كښے)

په بالاخانو كښے په امن او امان سره وى. او هغه خلق چه زمونږ د آيتونو د ناكامه كولو كوشش

مُعٰجِزِيْنَ اُولٰٓئِكَ فِي الْعَذَابِ مُحْضَرُوْنَ ﴿۳۸﴾ قُلْ اِنَّ رَبِّيْ

زمونږ د عاجزه كولو | هم داخلق به | په عذاب كښے | حاضر كړے شى | ووايه | بيشكه | زمارب

كوى نو دا ئے خلق به عذاب ته ور مخامخ كړے شى. ووايه چه زمارب په خپلو

يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ وَيَقْدِرُ لَهٗ ؕ وَمَآ

فراخه كوى | روزى | چا د پاره | چه ئے وغواړى | له خپلو بندګانو نه | او تنګوى | هغه د پاره | او څه چه

بندګانو كښے چه د چا د پاره وغواړى روزى فراخه كوى او چا د پاره چه وغواړى تنګوى ئے، او څه چه تاسو (د

اَنْفَقْتُمْ مِّنْ شَيْءٍ فَهُوَ يُخْلِفُهٗ ۚ وَهُوَ خَيْرُ الرّٰزِقِيْنَ ﴿۳۹﴾

تاسو خرچ كوئ | له څه خيز نه | نو دے | د هغے بدله وركوى | او دے | د ټولو نه بهتر | رزق وركوونكے دے

الله تعالىٰ په لاره كښے) خرچ كوئ نو هغه به د دے بدله دركوى او هغه ډير بهتر روزى وركوونكے دے.

وَيَوْمَ يَحْشُرُهُمْ جَمِيْعًا ثُمَّ يَقُوْلُ لِلْمَلٰٓئِكَةِ اَهٰٓؤُلَآءِ

او په كومه ورځ | چه دے جمع كړى دوى | ټول | بيا به | وفرمائى | فرښتو ته | آيا هم دادى

او په كومه ورځ چه الله تعالىٰ دوى ټول راجمع كړى نو د فرښتو نه به پتوس وكړى چه آيا دے خلقو به

اِيَّاكُمْ كَانُوْا يَعْبُدُوْنَ ﴿۴۰﴾ قَالُوْا سُبْحٰنَكَ اَنْتَ وَلِيُّنَا

(چه) ستاسو | عبادت به كولو دوى | دوى به ووائى | ته پاك يئے | ته | زمونږ دوست يئے

ستاسو عبادت كولو؟ هغوى به ووائى چه (اے ربه!) ته پاك يئے زمونږ تعلق خو تاسره دے دوى

مِنْ دُوْنِهِمْ ۚ بَلْ كَانُوْا يَعْبُدُوْنَ الْجِنَّ ۚ اَكْثَرُهُمْ

په ځلئے دَ دوی | بلکه | دوی خو عبادت کولو | دَ پیریانو | اکثرله دوی نه

سره نهٔ دے ۔ واقعه داده چه دوی خو به دَ پیریانو عبادت کولو ، په دوی کښے اکثرو په

بِهِمْ مُّؤْمِنُوْنَ ﴿۴۱﴾ فَالْيَوْمَ لَا يَمْلِكُ بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ نَّفْعًا

په دوی ایمان لرلو | پس نن | مالکان نهٔ دی | څوک په تاسو کښے | بل دَ پاره | دَ څهٔ نفع

دے (پیریانو) ایمان لرلو ، پس نن ورځ په تاسو کښے څوک یو بل ته دَ نفع یا نقصان رسولو اختیار

وَّلَا ضَرًّا ؕ وَنَقُوْلُ لِلَّذِيْنَ ظَلَمُوْا ذُوْقُوْا عَذَابَ النَّارِ

او نهٔ دَ نقصان | او مونږ به ووایو | هغو خلقو ته | چه ظلم ئے کړو | چه وڅکئی تاسو | عذاب | دَ دوزخ

نهٔ لری او مونږ به ظالمو ته ووایُو چه دَ دِے اور دَ عذاب مزه وڅکئی کوم

الَّتِيْ كُنْتُمْ بِهَا تُكَذِّبُوْنَ ﴿۴۲﴾ وَاِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيٰتُنَا بَيِّنٰتٍ

هغه چه تاسو به هغه | دروغ گڼړلو | او هرکله چه لوستلے شی | په دوی باندِ | زمونږ آیتونه | روښانه

چه به تاسو دروغ گڼړلو ۔ او هرکله چه به دَ دوئی په وړاندِ زمونږ واضحه آیتونه لوستلے شول

قَالُوْا مَا هٰذَاۤ اِلَّا رَجُلٌ يُّرِيْدُ اَنْ يَّصُدَّكُمْ عَمَّا

نو دوی وائی | چه نهٔ دے دا (څهٔ نور) | مگر | یو سړے | چه غواړی | چه منع کړی تاسو | له هغه څهٔ نه

نو دوئی به وئیل چه دا (پیغمبر خو) یو داسے سړے دے چه تاسو دَ هغه بتانو نه منع کوی ، دَ کوم چه به

كَانَ يَعْبُدُ اٰبَآؤُكُمْ ۚ وَقَالُوْا مَا هٰذَاۤ اِلَّاۤ اِفْكٌ مُّفْتَرًى

چه عبادت بهٔ کولو | پلارانو ستاسو | او دوی وائی | چه نهٔ دے دا (قرآن) | مگر | دروغ | تړلے شوے

ستاسو پلار، نیکهٔ عبادت کولو او وائی دا (کلام) خو جوړ شوے دروغ دے ۔

وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لِلْحَقِّ لَمَّا جَآءَهُمْ ۙ اِنْ هٰذَاۤ اِلَّا

او وائی | کوم چه | کافران دی | حق خبرے ته | هرکله چه | راغله دوی ته | نهٔ دے دا | مگر

او څهٔ وخت چه کافرانو ته حق راورسیدو نو دوی دوئیل چه دا خو یو څرگند

سِحْرٌ مُّبِيْنٌ ﴿۴۳﴾ وَمَاۤ اٰتَيْنٰهُمْ مِّنْ كُتُبٍ يَّدْرُسُوْنَهَا وَمَاۤ اَرْسَلْنَاۤ

جادو | ښکاره | او نهٔ دے ورکړے مونږ دوی ته | څهٔ کتاب | چه دوی لوستلے هغه | او نهٔ دے لیږلے مونږ

جادو دے ۔ او مونږ دوئی ته داسے (آسمانی الهامی) کتابونه نهٔ وو ورکړی چه کنی دوئی به لوستل او مونږ

اِلَيْهِمْ قَبْلَكَ مِنْ نَّذِيْرٍ ﴿۴۴﴾ وَكَذَّبَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ۙ

دَ دوی طرف ته | له تانه وړاندِ | څوک ویروُنکے | او دروغ گڼړلے وو | هغه خلقو چه | وړاندِ له دوی نه وو

ستانه وړاندِ دوئی ته هیڅوک ویروُنکے لیږلے نهٔ وو ۔ او (دَ غیب) دَ دوئی نه مخوانو خلقو هم (پیغمبران) دروغژن گڼړلی

وَمَا بَلَغُوْا مِعْشَارَ مَاۤ اٰتَيْنٰهُمْ فَكَذَّبُوْا رُسُلِيْ ۖ قف

او دا خلق نهٔ دی رسیدلی | لسمے حصے ته | دَ هغه څهٔ | چه ورکړی ؤو مونږ دوی ته | پس دوی دروغ وگڼړل | زما پیغمبران

وو او مونږ چه هغوئی ته څهٔ ورکړی وو نو دوئی دَ هغے په لسمه برخه هم نهٔ دی خو هغوئی زما پیغمبران دروغژن وگڼړل

ع ٩/٥ ١١

فَكَيْفَ كَانَ نَكِيْرِ ﴿٤٥﴾ قُلْ اِنَّمَآ اَعِظُكُمْ بِوَاحِدَةٍ ۚ اَنْ تَقُوْمُوْا
پس څنګه | شو | عذاب زما | ووایه | بیشکه | زه نصیحت کوم تاسو | صرف د یوے خبرے | چه تاسو ودریږئ
نو زما د طرف نه پرے څنګه عذاب راغے. اے پیغمبره! ووایه چه زه مو په یوه خبره پوهوم هغه دا چه تاسو خالص

لِلّٰهِ مَثْنٰى وَفُرَادٰى ثُمَّ تَتَفَكَّرُوْا ۗ مَا بِصَاحِبِكُمْ مِّنْ جِنَّةٍ ؕ
الله د پاره | دوه دوه | او یو یو | بیا | تاسو فکر وکړئ | چه نشته دے په د ملګری ستاسو | څه لیونتوب
د الله د پاره ودریږئ دوه دوه او یو یو بیا فکر وکړئ چه ستاسو دا ملګرے (پیغمبر یقیناً) لیونے نه دے،

اِنْ هُوَ اِلَّا نَذِيْرٌ لَّكُمْ بَيْنَ يَدَيْ عَذَابٍ شَدِيْدٍ ﴿٤٦﴾ قُلْ
نه دے دے | مګر | یو ویرونکے | تاسو د پاره | وړاندے | له عذاب | سخت نه | ته ووایه
دے خو تاسو د سخت عذاب د راتلو نه وړاندے ویروونکے دے. ته ورته ووایه

مَا سَاَلْتُكُمْ مِّنْ اَجْرٍ فَهُوَ لَكُمْ ؕ اِنْ اَجْرِيَ اِلَّا
هغه څه | چه سوال مے کړے وو ما له تاسو | له اجرنه | نو هغه | تاسو د پاره دے | نه دے | زما اجر | مګر
چه که ما له تاسو نه څه معاوضه غوښتے وی نو هغه ستاسو شوه. زما اجر خو بس د الله تعالیٰ په ذمه

عَلَى اللّٰهِ ۚ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيْدٌ ﴿٤٧﴾ قُلْ اِنَّ رَبِّيْ
په الله دے | او دے | په هر څیز باندے | ګواه دے | ووایه | بیشکه | زما رب
دے او هغه په هر څه باندے پوره پوره خبر دے. ته ورته ووایه چه زما رب همیشه

يَقْذِفُ بِالْحَقِّ ۚ عَلَّامُ الْغُيُوْبِ ﴿٤٨﴾ قُلْ جَآءَ الْحَقُّ
غلبه ورکوی | حق له | دے ډیر ښه پوهه دے | په ټولو پټو خبرو | ووایه | چه راغے | حق
حق له غلبه ورکوی. د غیب په خبرو ډیر ښه پوهه دے. ورته ووایه چه اوس حق راورسیدو

وَمَا يُبْدِئُ الْبَاطِلُ وَمَا يُعِيْدُ ﴿٤٩﴾ قُلْ اِنْ ضَلَلْتُ
او نه په اول ځل پیدا کوی | باطل معبود | او نه | په دوباره پیدا کوی | ووایه | که چرے بے لارے شم زه
او باطل نه پخوا څه څیز وو او نه اوس څه حیثیت لری. ته ورته ووایه چه که زه ګمراه یم نو د هغے

فَاِنَّمَآ اَضِلُّ عَلٰى نَفْسِيْ ۚ وَاِنِ اهْتَدَيْتُ فَبِمَا يُوْحِيْٓ اِلَيَّ
نو بیشکه | چه بے لارے کیږم به زه | په خپل ځان | او که چرے | زه په هدایت باندے یم | نو ځکه چه | وحی کوی | زما طرف ته
وبال به یوازے په ما راپریوزی اوکه زه په سمه لاره روان یم نو دا د هغه وحی په وجه روان یم چه زما

رَبِّيْ ؕ اِنَّهٗ سَمِيْعٌ قَرِيْبٌ ﴿٥٠﴾ وَلَوْ تَرٰٓى اِذْ فَزِعُوْا
زما رب | بیشکه دے | آوریدونکے | نزدے دے | او کاش | ته وو وینے | هر کله چه | دوی ودیریږی
رب زما طرف ته رالیږلے ده هغه هر څه آوری ډیر نزدے دے. او که ته دا خلق هغه وخت وو وینے چه دوی به ویریږی

فَلَا فَوْتَ وَاُخِذُوْا مِنْ مَّكَانٍ قَرِيْبٍ ﴿٥١﴾ وَّقَالُوْٓا اٰمَنَّا
نو بچ به نه شی | او دوی به ونیولے شی | د نزدے ځائے نه | او دوی به ووائی | مونږ ایمان راوړے دے
کوم ځی نو خلاصیدے به نه شی او د نزدے ځوائ شا نه به راونیوے شی او دا به وائی چه (بس) مونږ په دے دین

بِهٖ ۚ وَاَنّٰى لَهُمُ التَّنَاوُشُ مِنْ مَّكَانٍۭ بَعِيْدٍ ۚ ﴿٥٢﴾ وَّ

په دے | اوچرته (ممکن دی) | دوی دَپاره | حاصلول (دَ ایمان) | دَ دومره لرے ځائے نه | حال دا دے چه

بانډ ایمان راوړو، خواوس دَ دومره لرے ځائے نه دَ دوئ لاس چرته وررسیدے شو؟ حال دا دے

قَدْ كَفَرُوْا بِهٖ مِنْ قَبْلُ ۚ وَيَقْذِفُوْنَ بِالْغَيْبِ

دوی انکار کړے وو | دَ دے | له دے نه وړاندِ (په دنیا کښے) | او دوی غورزول (خیالی غشی) | بے لیدلو

چه دوئ ترے نه پخوا راسے انکار کولو. او دوئ دَ لرے نه بے لیدلو خیالی غشی

مِنْ مَّكَانٍۭ بَعِيْدٍ ﴿٥٣﴾ وَحِيْلَ بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ مَا يَشْتَهُوْنَ

دَ لرے ځائے نه | او رکاوټ به واچولے شی | دَ دوی په مینځ کښے | او په مینځ | دَ هغه څۀ کښے | چه دوی به غوښتل

ویشتل. او دَ دوئ او دَ دوئ دَ خواهشونو ترمینځه به یو دیوال ودرولے شی.

كَمَا فُعِلَ بِاَشْيَاعِهِمْ مِّنْ قَبْلُ ۭ اِنَّهُمْ كَانُوْا فِيْ شَكٍّ مُّرِيْبٍ ﴿٥٤﴾ ع

لکه څنګه | چه شوی وو | دَ دوئ عونډِ خلقو سره | له دے نه وړاندِ | بیشکه دوی | وُو | په شک | قوی کښے

لکه څنګه چه دَ دے نه وړاندِ دَ دوئ عونډِ خلقو سره شوے دی او هغوئ هم دَ دوئ په شان په بنکاره شک کښے پراته وو

| سُوْرَةُ فَاطِرٍ مَّكِّيَّةٌ وَّهِيَ خَمْسٌ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | وَّاَرْبَعُوْنَ اٰيَةً وَّخَمْسُ رُكُوْعَاتٍ |
|---|---|---|
| سورة فاطر په مکه کښے نازل شوه او په دے | (شروع) دَ الله په نوم چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے | کښے ۴۵ آیتونه او ۵ رکوع گانے دی |

دَ الله تعالیٰ په نامه شروع کوم چه لوئے مهربان دَ ډیر زیات رحم خاوند دے.

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ فَاطِرِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ جَاعِلِ الْمَلٰٓئِكَةِ

ټول تعریفونه | الله لره دی | چه پیدا کوونکے | دَ آسمانونو | او زمکے دے | جوړوونکے | دَ فرښتو

ټول تعریفونه یوازے الله پاک له بنائی چه آسمانونه او زمکه ئے پیدا کړل، او فرښتے ئے خپلے پیغام رسوونکے

رُسُلًا اُولِيْٓ اَجْنِحَةٍ مَّثْنٰى وَثُلٰثَ وَرُبٰعَ ۭ يَزِيْدُ فِي الْخَلْقِ

پیغام رسوونکے | دَ وزرو والا | دوه دوه | دریو دریو | او څلور څلور | زیاتوی | په پیدا اوښت کښے

جوړے کړے چه دوه دوه او درے درے او څلور څلور بازو گانے ئے دی. هغه چه دَ چا په خلقه

مَا يَشَاۗءُ ۭ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰي كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿١﴾ مَا يَفْتَحِ اللّٰهُ

څۀ چه دے وُغواړی | بیشکه الله | په هر څیز باندِ | قادر دے | څۀ چه پرانیزی | الله

وغواړی نو په پیدا اوښت کښے ئے (دَ نورو نه) زیات کړی بیشکه چه الله تعالیٰ په هر څۀ قدرت لری، الله تعالیٰ چه دَ خلقو دَ پاره

لِلنَّاسِ مِنْ رَّحْمَةٍ فَلَا مُمْسِكَ لَهَا ۚ وَمَا يُمْسِكْ ۙ فَلَا مُرْسِلَ

خلقو دَ پاره | له رحمت نه | پس څوک بندوونکے نشته | دَ هغے | او څۀ چه ئے بند کړی | نو څوک لیږونکے نشته

(دَ) رحمت (دروازه) پرانیزی نو هغه هیڅوک بندولے نۀ شی او کوم څیز چه هغه بند کړی نو بیائے څوک

لَهٗ مِنْۢ بَعْدِهٖ ۭ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿٢﴾ يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ

دَ دے | پس له ده نه | او دے | غالب | دَ حکمت خاوند دے | اے خلقو!

جاری کولے نۀ شی، او هغه غالب دَ حکمتونو خاوند دے. اے خلقو!

اذْكُرُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ ؕ هَلْ مِنْ خَالِقٍ غَيْرُ

یاد کړئ | نعمت | دَ الله | په خپل ځان | آیا | څوک پیدا کوونکے شته دے | سیوا

په تاسو چه دَ الله تعالیٰ کوم احسانونه شوی دی هغه یادساتئ ، آیا دَ الله تعالیٰ نه بغیر بل څوک خالق شته

اللّٰهِ يَرْزُقُكُمْ مِّنَ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ ؕ لَآ اِلٰهَ

دَ الله نه | چه روزی درکوی تاسو ته | له آسمان نه | او ز مکے نه | څوک بل معبود نشته

چه تاسو ته دَ آسمان او دَ زمکے نه روزی دررسوی ؟ دَ هغهٔ نه سیوا بل

اِلَّا هُوَ ز فَاَنّٰى تُؤْفَكُوْنَ ۳ وَاِنْ يُّكَذِّبُوْكَ فَقَدْ كُذِّبَتْ

سیوا دَ هغهٔ نه | نو کوم خوا | تاسو اړولی روان یئ | او که دوی تا دروغژن گنړی | نو بیشکه دروغژن گنړلے شوی دی

معبود نشته نو دا تاسو کوم طرف ته اړولی روان یئ ؟ او (اے نبیؐ!) که دوئ تا دروغژن وګنړی نو تا نه

رُسُلٌ مِّنْ قَبْلِكَ ؕ وَاِلَى اللّٰهِ تُرْجَعُ الْاُمُوْرُ ۴ يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ

پیغمبران | له تا نه وړاندې (هم) | او الله طرف ته په | واپس کولی شی | ټول کارونه | اے خلقو !

وړاندې هم پیغمبران دروغژن گنړلے شوی دی او آخر ټول معاملے به الله تعالیٰ ته پسته ورځی اے خلقو !

اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ فَلَا تَغُرَّنَّكُمُ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا

بیشکه | وعده | دَ الله | رښتینی ده | پس په دوکه کښے دِ وانه چوی تاسو | ژوند | دَ دُنیا

دَ الله تعالیٰ وعده بالکل رښتینے ده ، نو دُ دُنیا (دالږ) ژوند مو خطا نهٔ کړی

وَلَا يَغُرَّنَّكُمْ بِاللّٰهِ الْغَرُوْرُ ۵ اِنَّ الشَّيْطٰنَ لَكُمْ عَدُوٌّ

او دوکه دِ نهٔ کړی تاسو له | دَ الله په حقله | دوکه باز (شیطان) | بیشکه | شیطان | ستاسو | دښمن دے

او نهٔ دَ الله تعالیٰ په حقله دوکه باز (شیطان) تاسو له دوکه درکړی ، یقیناً شیطان ستاسو ښکاره دښمن دے

فَاتَّخِذُوْهُ عَدُوًّا ؕ اِنَّمَا يَدْعُوْا حِزْبَهٗ لِيَكُوْنُوْا مِنْ اَصْحٰبِ

نو تاسو دے وګنړئ | دُښمن | بیشکه دے بلی | خپل ټولے | دَ پاره دَ دے چه شی دوی | اهل

نو تاسو ئے (همیشه) دُښمن ګنړئ ، هغه خو (ګلیا دے) خپل ټولے په دِ دے غرض راغواړی چه په دوزخ کښے ځے

السَّعِيْرِ ۶ اَلَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيْدٌ ؕ وَالَّذِيْنَ

دَ دوزخ | کوم خلقو چه | کفر وکړو | دوی دَ پاره دے | عذاب | سخت | او کوم خلقو چه

ستی کړی . هغه خلق کوم چه کفر اختیار کړو هغوئ دَ پاره سخت عذاب (مقرر) دے او چا چه ایمان

اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ وَّاَجْرٌ كَبِيْرٌ ۷ اَفَمَنْ ع ٤/١٣

ایمان راوړو | او عمل ئے وکړو نیک | هغوئ دَ پاره ده | بخښنه | او اجر | ډیر لوے | پس آیا هغه کس

راوړے دے او دَ نیکئ کارونه کوئ ، هغوئ دَ پاره بخښنه او ډیر غټ اجر (تیار) دے . آیا چا ته چه خپل

زُيِّنَ لَهٗ سُوْٓءُ عَمَلِهٖ فَرَاٰهُ حَسَنًا ؕ فَاِنَّ اللّٰهَ يُضِلُّ مَنْ

چه ښائسته کړے شو دهٔ ته | خراب | عمل دَ دهٔ | پس دهٔ ولیدلو هغه | ښهٔ | نو بیشکه | الله | ګمراه کوی | هغه څوک

بد عمل ښائسته ښکاره شو او هغه ئے دَ نیک عمل ګمان وکړو (نو هغه دَ نیکانو برابر کیدے شی؟) الله چه دَ چا په حقله وغواړی

يَشَآءُ وَيَهۡدِيۡ مَنۡ يَّشَآءُ ۖ فَلَا تَذۡهَبۡ نَفۡسُكَ عَلَيۡهِمۡ

چه ئې وغواړي | او لاره ښائي | چا ته چه | ئې وغواړي | پس لاړه دِ نهٔ شي | ستا ځان | په دوی باندِ

گمراه ئې کړي او چه د چا په حقله ئې وغواړي نو په سمه لاره ئې روان کړي. پس ته په دوئ باندِ په افسوس کولو کښې

حَسَرٰتٍ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلِيۡمٌۢ بِمَا يَصۡنَعُوۡنَ ۝۸ وَاللّٰهُ الَّذِيۡۤ

له افسوس نه | بیشکه | الله | پوهه دے | په هغه څهٔ | چه دوی ئې کوی | او (هم) الله دے | هغه چه

ځان ورنهٔ کړے. بیشکه الله تعالیٰ د دوئ په کارونو باندِ ښهٔ خبر دے. الله تعالیٰ هغه ذات دے چه

اَرۡسَلَ الرِّيٰحَ فَتُثِيۡرُ سَحَابًا فَسُقۡنٰهُ اِلٰى بَلَدٍ مَّيِّتٍ

لیږی | هوا ګانے | پس هغه اوچتوی | وریځے | نو مونږ روانه کړو دا | طرف د ښار | مړه ته

بادونه راولیږی، نو هغه وریځے رابرسیره کړی، نو مونږ هغه ئې مړے (اوچے) مزکے ته ورولیږو

فَاَحۡيَيۡنَا بِهِ الۡاَرۡضَ بَعۡدَ مَوۡتِهَا ؕ كَذٰلِكَ النُّشُوۡرُ ۝۹ مَنۡ

بیا مونږ ژوندئ کوو | په دے سره | زمکه | پس د دے د مړه کیدو نه | دغه شان دی | دوباره راوچتیدل | څوک چه

نو زمکه پرے د مرګ نه پس بیا راژوندئ کړو، هم دغسے به (ستاسو) سر دوباره ژوندون کیږی څوک چه

كَانَ يُرِيۡدُ الۡعِزَّةَ فَلِلّٰهِ الۡعِزَّةُ جَمِيۡعًا ؕ اِلَيۡهِ يَصۡعَدُ الۡكَلِمُ

غواړی | عزت | نو الله د پاره دے | عزت | ټول | طرف د دهٔ ته | خیژی | خبرے

عزت لټوی نو ټول عزت بوازے الله تعالیٰ څخه دے. ښهٔ کلام الله تعالیٰ طرف ته بره خیژی.

الطَّيِّبُ وَالۡعَمَلُ الصَّالِحُ يَرۡفَعُهٗ ؕ وَالَّذِيۡنَ يَمۡكُرُوۡنَ السَّيِّاٰتِ

پاکیزه | او عمل | نیک | بره اوچتوی دا | او کوم خلق چه | تدبیرونه کوی | بد

او ښهٔ کارونه هغه کلام مخ په بره خیژوی او څوک چه ناکاره فریبونه جوړوی

لَهُمۡ عَذَابٌ شَدِيۡدٌ ؕ وَمَكۡرُ اُولٰٓئِكَ هُوَ يَبُوۡرُ ۝۱۰ وَاللّٰهُ

دوی د پاره دے | عذاب | سخت | او تدبیر | د دے خلقو به | برباد وی | او الله

هغوئ له سخت عذاب مقرر دے او د دے خلقو ټول تدبیرونه به برباد شی. او الله تعالیٰ

خَلَقَكُمۡ مِّنۡ تُرَابٍ ثُمَّ مِنۡ نُّطۡفَةٍ ثُمَّ جَعَلَكُمۡ اَزۡوَاجًا ؕ

پیدا کړئ تاسو | له خاوړے نه | بیا | له نطفے نه | بیائے | جوړے کړئ تاسو | جوړے

هغه ذات دے کوم چه تاسو د خاوړے نه، بیائے د نطفے نه پیدا کړئ، بیائے جوړے جوړے کړئ

وَمَا تَحۡمِلُ مِنۡ اُنۡثٰى وَلَا تَضَعُ اِلَّا بِعِلۡمِهٖ ؕ وَمَا يُعَمَّرُ مِنۡ مُّعَمَّرٍ

او نهٔ حامله کیږی | هیڅ ښځه | او نهٔ زیږوی | مګر | د دهٔ په علم | او نهٔ بیا مومی عمر | څوک اوږد عمر والا

او هر کله چه د یوے ښځے حمل جوړیږی یا زیږدون کیږی نو هغهٔ ته ښهٔ معلوم وی او نهٔ د چا عمر زیاتیږی

وَّلَا يُنۡقَصُ مِنۡ عُمُرِهٖۤ اِلَّا فِىۡ كِتٰبٍ ؕ اِنَّ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ

او نهٔ کمولے شی | له عمر د دهٔ نه | مګر دا په کتاب کښے درج دی | بیشکه | دا (خبره) | الله د پاره

او نهٔ د چا ژوندون کمیږی خو دا هر څهٔ په لوح محفوظ کښے لیکلی پراته دی، دا ټول کارونه الله تعالیٰ ته

يَسِيرٌ ⑪ وَمَا يَسْتَوِي الْبَحْرَانِ ۖ هَٰذَا عَذْبٌ فُرَاتٌ سَائِغٌ

آسانه دی | او نه دی برابر | دوه دریابونه | دا (یو) | خوږ | تنده ماتوونکے | چه خوشګواردی

ډیر آسان دی او دواړه (قسم) دریابونه برابر نه دی، یو (قسم) خوږ دے، تنده ماتوی او څښل ئے خوشګوار

شَرَابُهُ وَهَٰذَا مِلْحٌ أُجَاجٌ ۖ وَمِن كُلٍّ تَأْكُلُونَ لَحْمًا

څښل ئے دے | او دا (بل) | مالګین | ترېو دے | او له هریو نه | تاسو خورئ | غوښه

دی او (دویم قسم) مالګین او ترېو دے او له هریو نه تاسو تازه غوښه (د کبانو وغیره)

طَرِيًّا وَتَسْتَخْرِجُونَ حِلْيَةً تَلْبَسُونَهَا ۖ وَتَرَى الْفُلْكَ فِيهِ

تازه | او را وباسئ تاسو | کالی | چه تاسو اغوندئ هغه | او ته وینے | کشتئ | په دے کښے

خورئ او کالی (موتی وغیره) راوباسئ چه تاسو ئے اغوندئ۔ او ته په کښے کشتئ (او جهازونه) وینے چه

مَوَاخِرَ لِتَبْتَغُوا مِن فَضْلِهِ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ⑫ يُولِجُ

شلونکے د اوبو | د پاره د دے چه ولټوئ تاسو | (روزي) له فضل د دهٔ نه | او چه تاسو | شکر وکړئ | ننباسی

د اوبو سینه شلوی او وړاندې ځی د دے د پاره چه تاسو هغهٔ پیدا کړے روزی (ځان د پاره) ولټوئ او دا هکه چه تاسو هغهٔ شکر وکړئ، هغه

اللَّيْلَ فِي النَّهَارِ وَيُولِجُ النَّهَارَ فِي اللَّيْلِ وَسَخَّرَ الشَّمْسَ

شپه | په ورځ کښے | او ننباسی | ورځ | په شپه کښے | او په کار ئے لګولی دی | نمر

شپه په ورځ کښے او ورځ په شپه کښے ور ننباسی، او نمر او سپوږمئ ئے په کار

وَالْقَمَرَ ۖ كُلٌّ يَجْرِي لِأَجَلٍ مُّسَمًّى ۚ ذَٰلِكُمُ اللَّهُ رَبُّكُمْ

او سپوږمئ | هریو | روان دے | .بووخت | مقرر پورے | هم دا دے الله | ستاسو رب

لګولی دی، هر یو به تر خپلے مقررے نیټے پورے روان وی، هم دغه الله دے چه ستاسو رب دے

لَهُ الْمُلْكُ ۚ وَالَّذِينَ تَدْعُونَ مِن دُونِهِ مَا يَمْلِكُونَ

هم د دهٔ ده | بادشاهی | او کوم چه | تاسو بلئ | بے له دهٔ نه | دوی نه دی مالکان

بادشاهی هم د دهٔ ده، او د هغهٔ نه بغیر چه تاسو چا بلنه کوئ نو هغوئ د قجورے د هډوکی د پاسه پروت د

مِن قِطْمِيرٍ ⑬ إِن تَدْعُوهُمْ لَا يَسْمَعُوا دُعَاءَكُمْ وَلَوْ سَمِعُوا

د قجورے د هډوکی د پوستکی | که چرے بلئ تاسو دوئ | (نو) دوئ نه آوری | بلنه ستاسو | او که چرے دوئ واوری هم

نری پوستکی قدر اختیار هم نه لری که تاسو ئے وبلئ نو هغوئ ستاسو بلنه هم نهٔ آوری او (فرض کړه) که دوئ واوری

مَا اسْتَجَابُوا لَكُمْ ۖ وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ يَكْفُرُونَ بِشِرْكِكُمْ ۚ

نو دوئ جواب نه درکوی | تاسو ته | او په ورځ | د قیامت به | دوئ انکار وکړی | ستاسو د شرک نه

هم نو دوئ به تاسو ته هیڅ جواب نهٔ شی درکولے او د قیامت په ورځ به ستاسو د شرک نه انکار وکړی او د سم خبردار (خدائے)

وَلَا يُنَبِّئُكَ مِثْلُ خَبِيرٍ ⑭ يَا أَيُّهَا النَّاسُ أَنتُمُ الْفُقَرَاءُ

او تا ته به خبر درنه کړی څوک | په شان | د باخبره (الله) | اے خلقو! | تاسو | محتاج یئ

غوندې بل هیڅوک به د سم خبر نهٔ کړی۔ اے خلقو! تاسو ټول د الله تعالیٰ محتاج

اِلَى اللّٰهِ ؕ وَاللّٰهُ هُوَ الْغَنِيُّ الْحَمِيْدُ ⑮ اِنْ يَّشَاْ يُذْهِبْكُمْ

دَ الله | او هم الله دے | بے حاجته | ستائیلے شوے | که چرے دے وغواړی | نو فنا به کړی تاسو

او الله تعالیٰ غنی او دَ خوبیانو خاوند دے . که هغه وغواړی نو تاسو به فنا کړی او یو

وَيَاْتِ بِخَلْقٍ جَدِيْدٍ ⑯ ۚ وَمَا ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ بِعَزِيْزٍ ⑰

او رابه ولی | مخلوق | نوے | او نه دے | دا کار | په الله باندِ | څه ګران

بل نوے مخلوق به راپیدا کړی . او دا کار الله تعالیٰ ته هیڅ ګران نه دے .

وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِّزْرَ اُخْرٰى ؕ وَاِنْ تَدْعُ مُثْقَلَةٌ اِلٰى حِمْلِهَا

او نه به اوچتوی | څوک اوچتونکے دَ بوج | بوج دَ بل چا | او که چرے | وبلی | څوک بوج والا | طرف دَ بار خپل ته

او هیڅوک به دَ بل چا بار نه وړی ، او که (فرض کړه) بو باروړونکے دَ خپل بار دَ اوچتولو دَ پاره

لَا يُحْمَلْ مِنْهُ شَيْءٌ وَّلَوْ كَانَ ذَا قُرْبٰى ؕ اِنَّمَا تُنْذِرُ

نو اوچت به نه کړے شی | له دغه بوج نه | هیڅ څیز | اګر که | وی | نږدے رشته دار | بیشکه | ته ویروے

څوک راوبلی نو بیا به یې وزن یو ذره هم اوچت نه کړے شی اګر که (نږدے) خپلوان ئے وی . اے نبی ! ته خو بس داسے

الَّذِيْنَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَيْبِ وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ ؕ وَمَنْ

هغه خلق چه | ویریږی | له رب خپل نه | بے لیدلو | او قائموی | مونځ | او څوک چه

خلق ویروے شے چه دَ خپل رب نه بے لیدلو ویریږی ، او دَ مونځونو پابندی کوی او څوک چه

تَزَكّٰى فَاِنَّمَا يَتَزَكّٰى لِنَفْسِهٖ ؕ وَاِلَى اللّٰهِ الْمَصِيْرُ ⑱ وَمَا يَسْتَوِي

پاک شو | نو بیشکه | دے پاکیږی | دَ خپل ځان دَ پاره | او دَ الله طرف ته دی | واپس تلل | او نه دی برابر

پاک شو نو دَ خپل ځان دَ پاره پاک شو ، او الله تعالیٰ ته دَ هرچا پستنه تګ دے او یو ړوند او بل

الْاَعْمٰى وَالْبَصِيْرُ ⑲ ۙ وَلَا الظُّلُمٰتُ وَلَا النُّوْرُ ⑳ ۙ وَلَا الظِّلُّ

ړوند | او بینا | او نه تیاره | او نه رڼا (برابر دی) | او نه سورے

دَ سترګو خاوند (دواړه) برابر کیدے نه شی ، او نه تیارے او رڼا یو شان کیدے شی ، او نه (یخ) سورے او

وَلَا الْحَرُوْرُ ㉑ ۚ وَمَا يَسْتَوِي الْاَحْيَآءُ وَلَا الْاَمْوَاتُ ؕ اِنَّ اللّٰهَ

او نه ګرم باد | او نه دی برابر | ژوندی | او نه | مړی | بیشکه | الله

(تود) نمر یو شان کیدے شی او نه ژوندی او مړی برابر کیدے شی ، الله تعالیٰ چه دَ چا په

يُسْمِعُ مَنْ يَّشَآءُ ۚ وَمَآ اَنْتَ بِمُسْمِعٍ مَّنْ فِي الْقُبُوْرِ ㉒ اِنْ اَنْتَ

اوروی | چا ته چه دے وغواړی | او نه یې ته | اورونکے | هغه چا ته چه | په قبرونو کښے دی | نه یې ته

حقله وغواړی نو خبره ورته واوروی او ته په قبرونو کښے پرتو (مړو) ته خپل آواز آورولے نه شے ، ته خو بس

اِلَّا نَذِيْرٌ ㉓ اِنَّآ اَرْسَلْنٰكَ بِالْحَقِّ بَشِيْرًا وَّنَذِيْرًا ؕ

مګر ویرونکے | بیشکه | مونږ را ولیږلے ته | په رښتینی دین | زیرے ورکونکے | او ویرونکے

یو ویرونکے یې ! مونږ ته دَ حق تعلیم سره زیرے ورکونکے او ویرونکے رالیږلے یې

وَاِنْ مِّنْ اُمَّةٍ اِلَّا خَلَا فِيْهَا نَذِيْرٌ ﴿٢٤﴾ وَاِنْ يُّكَذِّبُوْكَ

او نۀ دے هيڅ اُمت | مګر | تیر شوے دے | په هغې کښې | ویرونکے | او که چرے | دوی دروغژن وګڼری تا

او داسے یو اُمت نشته چه په کښې (د الله د نافرمانئ نه) ویرونکے نۀ وی راغلے او که چرے دا خلق تا دروغژن

فَقَدْ كَذَّبَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ۚ جَآءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ

نو بیشکه | دروغژن ګڼلی وو | هغه خلقو (هم) | چه له دوی نه وړاندِ وو | راغلل دوی ته | د دوی پیغمبران | په واضحه نخښو سره

ګڼی نو کوم خلق چه د دوئ نه وړاندِ تیر شوی دی هغوئ هم دغه شان دروغژن ګڼلی وو، هغوئ ته خپلو پیغمبرانو ښکاره

وَبِالزُّبُرِ وَبِالْكِتٰبِ الْمُنِيْرِ ﴿٢٥﴾ ثُمَّ اَخَذْتُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

او په صحیفو سره | او په کتاب | روښانه سره | بیا | ما ونیول | هغه خلق | چه منکر شول

معجزے، صحیفے او روښانه کتابونه راوړی وو، بیا کوم خلقو چه انکار وکړو ما هغوئ راونیول نو (وګوره)

فَكَيْفَ كَانَ نَكِيْرِ ﴿٢٦﴾ اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ اَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً ۚ ع ١٢

پس څنګه وو | زما عذاب | آیا تا نۀ دی لیدلی چه | الله | راورولے دی | له آسمان نه | اوبۀ

بیا زما عذاب څنګه شو. آیا تا دے ته نۀ دی لیدلی چه الله تعالیٰ د بره نه اوبۀ راورولے

فَاَخْرَجْنَا بِهٖ ثَمَرٰتٍ مُّخْتَلِفًا اَلْوَانُهَا ۭ وَمِنَ الْجِبَالِ جُدَدٌۢ

بیا راوویستلے مونږ | په دے سره | میوے | (چه) مختلف وی | رنګونه د هغے | او له غرونو نه | حصے دی

بیا د هغے په ذریعه مونږ رنګ رنګ میوے رازرغونے کړے، او د غرے په غرونو کښے هم رنګ رنګ غرونه دی

بِيْضٌ وَّحُمْرٌ مُّخْتَلِفٌ اَلْوَانُهَا وَغَرَابِيْبُ سُوْدٌ ﴿٢٧﴾ وَمِنَ النَّاسِ

سپینے | او سرے | چه مختلف دی | رنګونه د هغے | او ډیر تک توردی | او له خلقو نه

څۀ سپین دی څۀ سرۀ دی چه د هغے هم قسم قسم رنګونه دی او څۀ تک توردی او دغه شان په بنیادمو

وَالدَّوَآبِّ وَالْاَنْعَامِ مُخْتَلِفٌ اَلْوَانُهٗ كَذٰلِكَ ۭ اِنَّمَا

او له ځناورو | او څاروونه (هم) | چه مختلف دی | رنګونه د هغوئ | هم دغه شان | بیشکه

او په ځناورو او په څاروو کښے هم څۀ داسے دی چه رنګونه ئے ادل بدل دی، د الله تعالیٰ

يَخْشَى اللّٰهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمٰٓؤُا ۭ اِنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ غَفُوْرٌ ﴿٢٨﴾

ویریږی | د الله نه | د دهٔ له بندګانو نه | عالمان | بیشکه الله | غالب | ډیر بخښونکے دے

نه خو بس هغه بندګان ویره کوی چه پوهان دی. بیشکه چه الله تعالیٰ په هرڅه غالب، ډیر بخښونکے دے

اِنَّ الَّذِيْنَ يَتْلُوْنَ كِتٰبَ اللّٰهِ وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَاَنْفَقُوْا

بیشکه | کوم خلق چه | تلاوت کوی | د کتاب | د الله | او قائموی | مونځ | او خرڅ کوی

بیشکه څوک چه د الله تعالیٰ د کتاب تلاوت کوی او د مونځ پابندی ساتی او زمونږ د ورکړی

مِمَّا رَزَقْنٰهُمْ سِرًّا وَّعَلَانِيَةً يَّرْجُوْنَ تِجَارَةً لَّنْ تَبُوْرَ ﴿٢٩﴾

له هغه څۀ نه | چه ورکړی مونږ دوی ته | پټ | او ښکاره | دوی اُمید لری | د تجارت | چه هیڅ کله به برباد نۀ شی

رزق نه په پټه او په ښکاره خیراتونه کوی هغوئ د داسے تجارت اُمید لری چه هیڅرے تاوان نۀ کوی

لِيُوَفِّيَهُمْ أُجُوْرَهُمْ وَيَزِيْدَهُمْ مِّنْ فَضْلِهٖ ۭ اِنَّهٗ غَفُوْرٌ شَكُوْرٌ ۝۳۰
چه الله پوره ورکړی دوی ته | اجرونه د دوی | او زیات ورکړی دوی ته | له خپل فضل نه | بیشکه دے | بخښونکے | قدردان دے
دا ځکه کوی چه الله تعالیٰ هغوی ته (د خپل عمل) پوره پوره اجرونه ورکړی او په خپل فضل نور زیات ورکړی هغه بخښونکے قدردان
وَالَّذِيْٓ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ مِنَ الْكِتٰبِ هُوَ الْحَقُّ مُصَدِّقًا لِّمَا
او هغه څه چه | وحی دې وکړه مونږ | ستا طرف ته | له کتاب (قرآن) نه | هم دا دے حق | چه تصدیق کوونکے دے | د هغه څه
دے او مونږ چه تا ته دا کتاب د وحی په ذریعه رالیږلے دے دا بالکل حق (کتاب) دے او له دے نه وړاندې چه کوم کتابونه نازل
بَيْنَ يَدَيْهِ ۭ اِنَّ اللّٰهَ بِعِبَادِهٖ لَخَبِيْرٌۢ بَصِيْرٌ ۝۳۱ ثُمَّ اَوْرَثْنَا
چه وړاندې له دهٔ نه دی | بیشکه الله | خپلو بندګانو نه | خبردار | بینا دے | بیا | مونږ وارثان جوړ کړل
شوی دی د هغے تصدیق کوی بیشکه الله تعالیٰ د خپلو بندګانو په حال ښه خبر دے هر څه وینی کوری. بیا مونږ دا کتاب هغه بندګانو
الْكِتٰبَ الَّذِيْنَ اصْطَفَيْنَا مِنْ عِبَادِنَا ۚ فَمِنْهُمْ ظَالِمٌ
د کتاب | هغه کوم چه | مونږ غوره کړل | له خپلو بندګانو نه | پس ځنے له دوی نه | ظلم کوونکی دی
ته ورسولو چه مونږ په نورو بندګانو کښے غوره کړی وو ، نو او س څوک خو په خپل ځان زیاتے
لِّنَفْسِهٖ ۚ وَمِنْهُمْ مُّقْتَصِدٌ ۚ وَمِنْهُمْ سَابِقٌۢ بِالْخَيْرٰتِ
په خپل ځان | او ځنے له دوی نه | میانه رو دی | او ځنے له دوی نه | وړاندې والے کوونکی دی | په نیکیو کښے
کوی ، څوک په کښے میانه حال دی ، او څوک په کښے د الله تعالیٰ په فضل سره په نیکئ کښے
بِاِذْنِ اللّٰهِ ۭ ذٰلِكَ هُوَ الْفَضْلُ الْكَبِيْرُ ۝۳۲ جَنّٰتُ عَدْنٍ
په حکم | د الله | هم دا دے | فضل | لوئے | باغونه | د همیشه پاتے کیدو
مخ په وړاندې روان دی ، هم دا ډیر لوئے فضل دے - (دوئی د پاره) باغونه دی د همیشه اوسیدو
يَّدْخُلُوْنَهَا يُحَلَّوْنَ فِيْهَا مِنْ اَسَاوِرَ مِنْ ذَهَبٍ وَّلُؤْلُؤًا ۚ
دوی به داخلیږی دے ته | اغوستولے به شی دوی ته | په دے کښے | بازوګان | د سرو | او ملغلرے
چه دوئی به په کښے داخلیږی ، هلته به ورته د سرو زرو کنګن او ملغلرے واچولے شی
وَلِبَاسُهُمْ فِيْهَا حَرِيْرٌ ۝۳۳ وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْٓ اَذْهَبَ
او د دوی جامے به | په دے کښے | د ریښمو وی | او دوی به وائی | ټول تعریفونه | الله لره دی | هغه ذات چه | لرے کړو
هلته به د دوئی لباس د ریښمو وی ، او دا به وائی چه ټول تعریفونه الله تعالیٰ د پاره دی کوم چه له مونږ
عَنَّا الْحَزَنَ ۭ اِنَّ رَبَّنَا لَغَفُوْرٌ شَكُوْرُۨ ۝۳۴ الَّذِيْٓ اَحَلَّنَا
له مونږ نه | غم | بیشکه | زمونږ رب | ډیر بخښونکے | قدردان دے | هغه ذات چه | راته د استوګنے
نه غم لرے کړو ، زمونږ رب یقیناً بخښونکے (او) قدردان دے - هغه ذات چه مونږ ئے په خپل
دَارَ الْمُقَامَةِ مِنْ فَضْلِهٖ ۚ لَا يَمَسُّنَا فِيْهَا نَصَبٌ وَّلَا يَمَسُّنَا
کور د همیشه پاتے کیدو ته | په خپل فضل سره | نه به رسیږی مونږ ته | په دے کښے | (څه) تکلیف | او نه به | رسیږی مونږ ته
فضل سره د همیشه اوسیدلو ځائے ته ورسولو ، چه نه به په کښے راته څه تکلیف رارسی او نه به ستړے نه

فِیۡهَا لُغُوۡبٌ ﴿۳۵﴾ وَالَّذِیۡنَ كَفَرُوۡا لَهُمۡ نَارُ جَهَنَّمَ ۚ لَا یُقۡضٰی

په دے کښے | ستومانی | او کوم خلق چه | کفر و کړو | هغوئ دَ پاره | اور | دَ دوزخ دے | نۀ به خو قضا راشی

چرے ستړی کیږو ۔ او څوک چه کافران شول هغوئ له دَ دوزخ اور مقرر دے ، نۀ به ورله اجل راشی

عَلَیۡهِمۡ فَیَمُوۡتُوۡا وَلَا یُخَفَّفُ عَنۡهُمۡ مِّنۡ عَذَابِهَا ؕ كَذٰلِكَ

په دوی باندې | چه دوی مړه شی | او نۀ به سپک کړے شی | له دوی نه | عذاب دَ هغے | دغه شان

چه مړه شی (او بے غمه شی) او نۀ به ترے نه دَ دوزخ عذاب کمولے شی ، مونږ هر یو کافر له

نَجۡزِیۡ كُلَّ كَفُوۡرٍ ﴿۳۶﴾ وَهُمۡ یَصۡطَرِخُوۡنَ فِیۡهَا ۚ رَبَّنَاۤ اَخۡرِجۡنَا

مونږ سزا ورکوو | هر ناشکره ته | او دوی به | چیغے وهی | په هغے کښے | چه اے زمونږ ربه! | اُوباسه مونږ

هم دغسے سزا ورکوو ۔ او دوئ به په کښے دننه چیغے وهی چه اے زمونږه ربه! مونږ دَ دے اور نه

نَعۡمَلۡ صَالِحًا غَیۡرَ الَّذِیۡ كُنَّا نَعۡمَلُ ؕ اَوَلَمۡ نُعَمِّرۡكُمۡ مَّا

چه مونږ عمل وکړو | نیک | بے | له هغے نه | چه مونږ به کولو | آیا مونږ عمرونۀ وو درکړے تاسو ته | چه

بهر اُوباسه چه دَ نیکئ کارونه وکړو دَ هغے نه خلاف چه مخوا به مو کول (الله به وُفرمائی چه) آیا مونږ تاسو له دومره عُمرونه وو

یَتَذَكَّرُ فِیۡهِ مَنۡ تَذَكَّرَ وَجَآءَكُمُ النَّذِیۡرُ ؕ فَذُوۡقُوۡا فَمَا

نصیحت مو حاصل کړے وے | په هغے کښے | څوک چه | نصیحت حاصلول غواړی | او راغلے وو تاسو ته | ویرؤنکے | پس وُڅکئ (عذاب) | چه نشته

درکړے چه دَ پوهے طلبګار په کښے ځان پوهولے او آیا تاسو ته ویروُنکے در غلے نۀ وو ؟ تو اوس (دَ عذاب) خوند وُڅکئ

لِلظّٰلِمِیۡنَ مِنۡ نَّصِیۡرٍ ﴿۳۷﴾ اِنَّ اللّٰهَ عٰلِمُ غَیۡبِ السَّمٰوٰتِ

دَ ظالمانو | څوک مددګار | بیشکه | الله | پوهیږی | په غیبو | دَ آسمانونو

دَ داسے ظالمانو دَ پاره څوک مددګار نشته ۔ الله تعالیٰ ته دَ آسمانونو او دَ زمکے ټولے پټے خبرے

وَالۡاَرۡضِ ؕ اِنَّهٗ عَلِیۡمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوۡرِ ﴿۳۸﴾ هُوَ الَّذِیۡ

او دَ زمکے | بیشکه دے | ښۀ پوهیږی | په رازو | دَ سینو | هم دے دے | هغه ذات چه

معلومے دی ، بیشکه چه هغۀ ته دَ زړونو پټ رازونه هم معلوم دی ۔ هغه داسے ذات دے

جَعَلَكُمۡ خَلٰٓئِفَ فِی الۡاَرۡضِ ؕ فَمَنۡ كَفَرَ فَعَلَیۡهِ كُفۡرُهٗ ؕ

چه جوړے کړئ تاسو | قائم مقام | په زمکه کښے | پس څوک چه | کفر وُکړی | نو هم په هغۀ به وی | (وبال) دَ کفر دَ هغۀ

چه تاسو ئے په زمکه باندې آباد کړئ ۔ نو چا چه کفر غوره کړو نو دَ کفر وبال به ورته په خپله ورسیږی

وَلَا یَزِیۡدُ الۡكٰفِرِیۡنَ كُفۡرُهُمۡ عِنۡدَ رَبِّهِمۡ اِلَّا مَقۡتًا ۚ وَلَا یَزِیۡدُ

او نۀ زیاتوی | کافرانو ته | کفر دَ دوی | په نزد دَ رب دَ دوی | مګر غضب | او نۀ زیاتوی

او دَ کافرانو دَ پاره خپل کفر الله تعالیٰ سره دَ خفګان دَ زیاتیدو باعث ګرځی ، او کافرانو ته خپل

الۡكٰفِرِیۡنَ كُفۡرُهُمۡ اِلَّا خَسَارًا ﴿۳۹﴾ قُلۡ اَرَءَیۡتُمۡ شُرَكَآءَكُمُ

کافرانو دَ پاره | کفر دَ دوی | مګر نقصان | وُوایه | آیا تاسو لیدلی دی | خپل شریکان

کفر نور څۀ نه خو دَ تاوان باعث ګرځی ۔ (اے نبیؐ!) ټنوس وکړه چه آیا تاسو خپل هغه شریکان لیدلی دی

الَّذِينَ تَدْعُونَ مِن دُونِ اللَّهِ ۖ أَرُونِي مَاذَا خَلَقُوا

کوم چہ | تاسو بلئ | سیوا | دَ الله نه | وښايئ ماته | چہ څهٔ څيز | دوی پیدا کړے دے

چہ تاسو ئے بغیر دَ خدائے نه بلنه کوئ ، ماته وښایئ چہ هغوئ په زمکه کښے څهٔ

مِنَ الْأَرْضِ أَمْ لَهُمْ شِرْكٌ فِي السَّمَاوَاتِ ۚ أَمْ آتَيْنَاهُمْ كِتَابًا

له زمکے نه | یا دوئ دَ پاره | (څهٔ) شرکت دے | په آسمانونو کښے | یا | ورکړے دے مونږ دوی ته | کتاب

پیدا کړی دی؟ یا په آسمانونو کښے دَ هغوئ څهٔ شرکت دے یا مونږ هغوئ ته څهٔ کتاب ورکړے دے

فَهُمْ عَلَىٰ بَيِّنَتٍ مِّنْهُ ۚ بَلْ إِن يَعِدُ الظَّالِمُونَ بَعْضُهُم بَعْضًا

چہ دوی | واضح دلیل لری | له هغے نه | بلکه | وعدهٔ نهٔ ورکوی | ظالمان | یو بل ته

چہ هغوئ دَ هغے کتاب په دلیل تینګ ولاړ دی؟ (نا) بلکه دا ظالمان یو بل سره دَ دروغو وعدے

إِلَّا غُرُورًا (٤٠) إِنَّ اللَّهَ يُمْسِكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ أَن تَزُولَا ۚ

مګر دَ دوکے | بیشکه الله | راتینګ کړی دی | آسمانونه | او زمکه | چہ دوئ وُ (نهٔ) خوزی

کوی ۔ یقیناً الله تعالیٰ آسمانونه او زمکه دواړه راتینګ کړی دی چہ وُ نهٔ خوزی

وَلَئِن زَالَتَا إِنْ أَمْسَكَهُمَا مِنْ أَحَدٍ مِّن بَعْدِهِ ۚ إِنَّهُ كَانَ حَلِيمًا

او که دوئ وُ خوزی | نو نهٔ شی راتینګولے دوئ | هیڅوک | پس له دهٔ نه | بیشکه دے | دے | بُردبار

او که دوئ دَ ځلئے نه بے ځایه شی نو بیا دَ الله تعالیٰ نه سیوا بل هیڅوک ئے راتینګولے نهٔ شی الله تعالیٰ ډیر حلیم

غَفُورًا (٤١) وَأَقْسَمُوا بِاللَّهِ جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ لَئِن جَاءَهُمْ

بخښونکے | او دوئ قسمونه خوړل | په الله | ډیر کلک | قسمونه خپل | که چرے | راغے دوئ ته

بخښونکے دے ۔ او دے کافرانو به په الله تعالیٰ باندے سخت قسمونه خوړل چہ که څوک ویرونکے راته

نَذِيرٌ لَّيَكُونُنَّ أَهْدَىٰ مِنْ إِحْدَى الْأُمَمِ ۖ فَلَمَّا جَاءَهُمْ

څوک ویرونکے (پیغمبر) | نو دوی به ضرور وی | زیات لارہ موندونکی | له هریو | اُمت نه | بیا هر کله چہ | راغے دوی ته

راغے نو مونږ به دَ بل هر یو اُمت نه زیات هدایت قبول کړو خو څهٔ وخت چہ ورته ویرونکے

نَذِيرٌ مَّا زَادَهُمْ إِلَّا نُفُورًا (٤٢) اسْتِكْبَارًا فِي الْأَرْضِ وَمَكْرَ

ویرونکے | (نو) زیات ئے نهٔ کړو دوی کښے | مګر | نفرت | په وجه دَ تکبر | په زمکه کښے | او تدبیر

راغے نو دِ دے سره دَ دوئ نفرت نور زیات شو چہ په دنیا کښے ئے خپل ځان غټ وګڼړلو او خراب خراب

السَّيِّئِ ۚ وَلَا يَحِيقُ الْمَكْرُ السَّيِّئُ إِلَّا بِأَهْلِهِ ۚ فَهَلْ يَنظُرُونَ

بد | او نهٔ پریوزی | تدبیر | بد | مګر | دَ دِ دے په کوونکی | پس دوی انتظار نهٔ کوی

فریبونه ئے جوړ کړل او دَ خرابو چالونو وبال په خپله په چالبازو باندے پریوزی نو آیا دا خلق دَ پخوانو خلقو

إِلَّا سُنَّتَ الْأَوَّلِينَ ۚ فَلَن تَجِدَ لِسُنَّتِ اللَّهِ تَبْدِيلًا ۖ وَ

مګر | دَ دستور | دَ وړاندیتو خلقو | پس هیڅ کله به بیا نهٔ مومے ته | دَ الله په دستور کښے | (څهٔ) تبدیلی | او

غونډِ دا انجام انتظار کوی ۔ نو ته به دَ الله تعالیٰ په دستور کښے څهٔ تبدیلی بیا نهٔ مومے ، او

لَنْ تَجِدَ لِسُنَّتِ اللّٰهِ تَحْوِيلًا ﴿۴۳﴾ اَوَلَمْ يَسِيْرُوْا فِى الْاَرْضِ فَيَنْظُرُوْا

هیڅ کله به ته بیانه مومې | دَ الله په دستورکښې | (څهٔ) تغیر | آیا دوی نهٔ دی گرځیدلی | په زمکه کښې | چه دوی ووینی

او دَ الله دستور به هیڅ کله او ړین وتکے بیانهٔ مومې. آیا دوئ دَ زمکے په مخ تگ راتگ نهٔ کوی چه دا وګوری

كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ وَكَانُوْٓا اَشَدَّ مِنْهُمْ

چه څنګه شو | انجام | دَ هغو خلقو | چه له دوی نه وړاندې وو | او هغوئ وو | ډیر زیات | له دوئ نه

چه دَ پخوانو خلقو انجام څهٔ شو؟ سره دَ دے چه هغوئ دَ دوئ نه زیات

قُوَّةً ۭ وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُعْجِزَهٗ مِنْ شَيْءٍ فِى السَّمٰوٰتِ وَلَا

په طاقت کښې | او نهٔ | دے | الله (داسے) | چه عاجزه کړی ئے | څهٔ څیز | په آسمانونو کښې | او نهٔ

زور آور وُو، او الله تعالیٰ داسے نهٔ دے چه هغه دِ څوک عاجزه کړے شی نهٔ په آسمانونو کښې او نهٔ

فِى الْاَرْضِ ۭ اِنَّهٗ كَانَ عَلِيْمًا قَدِيْرًا ﴿۴۴﴾ وَلَوْ يُؤَاخِذُ اللّٰهُ النَّاسَ

په زمکه کښې | بیشکه دے | دے | پوهه | قدرت والا | او که چرې | نیولے | الله | خلق

په زمکه کښې، هغه په هر څهٔ پوهه او دَ قدرتونو خاوند دے. او که الله تعالیٰ دَ (خرابو) عملونو په سبب دَ خلقو

بِمَا كَسَبُوْا مَا تَرَكَ عَلٰى ظَهْرِهَا مِنْ دَآبَّةٍ وَّلٰكِنْ يُّؤَخِّرُهُمْ

دَ دوئ په عملونو | نو نهٔ به ئے وو پریښودے | په شا دَ زمکے | څهٔ ساه دار څیز | لیکن | دے مهلت ورکوی دوئ ته

نیول شروع کړی نو دَ زمکے په مخ به هیڅ ګرځنده باقی پاتے نهٔ شی خو الله تعالیٰ ورته تر یوے ټاکلې پورے

ع ۸ ۱۷ اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى ۚ فَاِذَا جَآءَ اَجَلُهُمْ فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِعِبَادِهٖ بَصِيْرًا ﴿۴۵﴾

یو وخت مقرر پورے | بیا هر کله چه راشی | دَ دوئ مقرر وخت | نو بیشکه الله | دے | په خپلو بندګانو | بینا

مهلت ورکوی. نو څهٔ وخت چه هغه ټاکلے وخت راشی نو الله تعالیٰ دَ بندګانو عملونه وینی ګوری.

سُوْرَةُ يٰسٓ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ ثَلٰثٌ وَّ ثَمَانُوْنَ اٰيَةً وَّخَمْسُ رُكُوْعَاتٍ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

سوره یٰسٓ په مکه کښې نازل شوه او په دے کښې ۸۳ آیتونه او ۵ رکوع ګانی دی | (شروع) دَ الله په نوم چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے

دَ الله په نامه شروع کوم چه لوئے مهربان دَ ډیر زیات رحم خاوند دے

يٰسٓ ﴿۱﴾ وَالْقُرْاٰنِ الْحَكِيْمِ ﴿۲﴾ اِنَّكَ لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿۳﴾

یٰسٓ | قسم دے دَ قرآن | حکمت والا | بیشکه تهٔ | له پیغمبرانو نه یئے.

یاسین. په قرآن باندِ قسم دے چه دَ حکمتونو نه ډک دے، چه تهٔ په پیغمبرانو کښې یو (پیغمبر) یئے.

عَلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿۴﴾ تَنْزِيْلَ الْعَزِيْزِ الرَّحِيْمِ ﴿۵﴾

په لاره | سمه یئے. | نازل شوے | دَ غالب | مهربان.

(دَ هدایت) په نیغه لاره قائم یئے. (دا قرآن) دَ غالب او مهربان (خدائے) دَ طرف نه نازل شوے دے

لِتُنْذِرَ قَوْمًا مَّآ اُنْذِرَ اٰبَآؤُهُمْ فَهُمْ

دَ پاره دَ دے چه ووېروے ته | هغه قوم | چه نهٔ دی | ویرولی شوی | پلاران دَ دوی | پس دوی

چه تهٔ یرے هغه خلق (دَ عذابه) ووېروے چه دَ هغوئ پلار نیکهٔ چرے ویرولی شوی نهٔ وُو نو څکه بے خبره

غٰفِلُوْنَ ﴿٦﴾ لَقَدْ حَقَّ الْقَوْلُ عَلٰٓی اَکْثَرِهِمْ
غافل دی | بیشکه | ثابته شوه | خبره (دَالله) | په اکثرو دَدوی
پاتے دی ، په دوی کښے په اکثرو خلقو باندِ (دَتقدیر) وینا ثابته شوے ده ، نو

فَهُمْ لَا یُؤْمِنُوْنَ ﴿۷﴾ اِنَّا جَعَلْنَا فِیْٓ اَعْنَاقِهِمْ
پس دوی | ایمان نهٔ راوړی | بیشکه مونږ اچولی دی | دَدوئ په څټونو کښے
اوس دوئ ایمان نهٔ راوړی ۔ مونږ دَدوئ څټونو ته داسے داسے طوقونه اچولی

اَغْلٰلًا فَهِیَ اِلَی الْاَذْقَانِ فَهُمْ مُّقْمَحُوْنَ ﴿۸﴾ وَجَعَلْنَا
طوقونه | بیا هغه | تر زنو پورے دی | پس دوئ | سرونه پورته کړی دی | اومونږ جوړکړو
دی چه تر زنو پورے ئے راختلی دی په دے وجه دَدوئ سرونه بره طرفته اُوچت پاتے شوی دی ۔ اومونږ یو

مِنْۢ بَیْنِ اَیْدِیْهِمْ سَدًّا وَّمِنْ خَلْفِهِمْ سَدًّا فَاَغْشَیْنٰهُمْ
دَدوئ نه مخکښے | یو دیوال | اودَدوئ نه وروستو | یو دیوال | بیا پټ کړی دی مونږ دوئ
دیوال خودَدوئ مخے طرف ته ودرولے دے او بل دیوال دَدوئ دَشا اړخ نه ۔ بیادَ بره نه مو پټ کړی

فَهُمْ لَا یُبْصِرُوْنَ ﴿۹﴾ وَسَوَآءٌ عَلَیْهِمْ ءَاَنْذَرْتَهُمْ اَمْ
پس دوئ | نهٔ وینی | او برابره ده | په دوئ باندِ | که ویروے تهٔ دوی | یا
دی نو (وړاندِ وروستو) هیڅ نهٔ وینی ۔ اودَدوئ په حقله دواړه خبرے برابرے دی که تهٔ ئے وویروے او

لَمْ تُنْذِرْهُمْ لَا یُؤْمِنُوْنَ ﴿۱۰﴾ اِنَّمَا تُنْذِرُ مَنِ اتَّبَعَ
نهٔ | ویروے نهٔ دوئ | ایمان نهٔ راوړی دوی | بیشکه | تهٔ ویروے | هغه څوک | چه پیروی کوی
که ئے نهٔ ویروے خو دوئ ایمان نهٔ راوړی ۔ (اے نبی!) تهٔ خو بس هغه څوک ویرولے شے چه په نصیحت

الذِّکْرَ وَخَشِیَ الرَّحْمٰنَ بِالْغَیْبِ ۚ فَبَشِّرْهُ بِمَغْفِرَةٍ
دَنصیحت | او ویریږی | دَرحمن نه | بے لیدلو | پس زیرے ورکړه هغهٔ ته | دَ بخښنے
پسے روانیږی او دَرحم کوونکی خدائے نه بے لیدلو وکتو ویره کوی ، نو داسے سړی ته دَبخښنے اودَښهٔ

وَّاَجْرٍ کَرِیْمٍ ﴿۱۱﴾ اِنَّا نَحْنُ نُحْیِ الْمَوْتٰی وَنَکْتُبُ مَا
اودَ اجر | چه عزت والا دے | بیشکه مونږ ه | ژوندی کوو | مړی | اومونږ لیکو | هغه څهٔ چه
اجر زیرے ورکړه ۔ مونږ به ټول مړی بیا را ژوندی کوؤ او هغه ټول کارونه لیکو کوم چه دوئ دَځان

قَدَّمُوْا وَاٰثَارَهُمْ ؕ وَکُلَّ شَیْءٍ اَحْصَیْنٰهُ فِیْٓ اِمَامٍ مُّبِیْنٍ ﴿۱۲﴾
وړاندِ لیږلی دی | او نخښے دَ قدمونو دَدوئ | او هر څیز | مونږ محفوظ کړے دے | په کتاب | ښکاره کښے
نه وړاندِ لیږی اوکوم چه وروستو په شا پرېږدی اومونږ هر یو څیز په یو کتاب کښے محفوظ ساتلے دے ۔

ع ۱ / ۱۸

وقف لازم

وقف غفران

وَاضْرِبْ لَهُمْ مَّثَلًا اَصْحٰبَ الْقَرْیَةِ ۘ اِذْ جَآءَهَا
او بیان کړه | دوی دَپاره | یو مثال | دَیو کلی دَخلقو | هر کله چه | راغلل دغه کلی ته
او (اے پیغمبره!) دوئ ته دَیو کلی دَخلقو قصه واوروه ! څهٔ وخت چه هغے کلی ته پیغمبران

الْمُرْسَلُوْنَ ﴿۱۳﴾ اِذْ اَرْسَلْنَآ اِلَيْهِمُ اثْنَيْنِ فَكَذَّبُوْهُمَا

پیغمبران | هر کله چه | ولیږل موږ | دَ دوی طرف ته | دوه سړی | نو دوی هغه دواړه دروغژن وګڼل

ورغلل ، څه وخت چه هغوی ته موږ دوه تنه ولیږل ، نو هغوی هغه دواړه دروغژن وګڼل

فَعَزَّزْنَا بِثَالِثٍ فَقَالُوْٓا اِنَّآ اِلَيْكُمْ مُّرْسَلُوْنَ ﴿۱۴﴾

نو قوت ورکړو موږ | په دریم سړه | نو دوی ووئیل | بیشکه موږ | ستاسو طرف ته | رالیږلے شوی یُو

نو موږ دَ یو دریم تن په ذریعه دغه دواړه مضبوط کړل نو دے نبیانو ووئیل چه بیشکه موږ ستاسو طرف ته رالیږلے شوی یُو

قَالُوْا مَآ اَنْتُمْ اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُنَا ۙ وَمَآ اَنْزَلَ الرَّحْمٰنُ

دوی ووئیل | نهٔ یئی تاسو | مګر | بنیادم | په شان زموږ | او نهٔ دے | رالیږلے | (الله) رحمن

هغه خلقو جواب ورکړو چه تاسو خو زموږ په شان بنیادم یئی ـ او الله تعالیٰ هیڅ هم نهٔ دی نازل

مِنْ شَيْءٍ ۙ اِنْ اَنْتُمْ اِلَّا تَكْذِبُوْنَ ﴿۱۵﴾ قَالُوْا رَبُّنَا يَعْلَمُ

(څهٔ) څیز | نهٔ | یئی تاسو | مګر | دروغ وایئی | دوی ووئیل | زموږ رب | پوهه دے

کړی ـ دا تاسو خو بس سروپ دروغ وایئی ـ هغه نبیانو ووئیل چه زموږ رب ته معلومه ده

اِنَّآ اِلَيْكُمْ لَمُرْسَلُوْنَ ﴿۱۶﴾ وَمَا عَلَيْنَآ اِلَّا الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ ﴿۱۷﴾

چه بیشکه موږ | ستاسو طرف ته | خامخا رالیږلے شوی یُو | او نشته دے | په موږ | مګر | پیغام رسول | ښکاره ـ

چه موږ خاص هم تاسو ته رالیږلے شوی یُو او زموږ نورهٔ ذمه واری نشته خو (تاسو ته) ښکاره حکم رسول دی.

قَالُوْٓا اِنَّا تَطَيَّرْنَا بِكُمْ ۚ لَئِنْ لَّمْ تَنْتَهُوْا لَنَرْجُمَنَّكُمْ وَ

دوی ووئیل | بیشکه موږ | سپیرهٔ ګڼړو تاسو | که چرے | منع نهٔ شوئی تاسو | نو موږ به ضرور تاسو سنګسار کړو | او

هغه خلقو ووئیل چه موږ خو تاسو سپیرهٔ ګڼړو که تاسو (دَ دے تبلیغ نه) منع نهٔ شوئی نو موږ به مو سنګسار کړو ، او

لَيَمَسَّنَّكُمْ مِّنَّا عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۱۸﴾ قَالُوْا طَآئِرُكُمْ مَّعَكُمْ ۭ

ضرور به ورسیږی تاسو ته | زموږ له طرفه | عذاب | دردناک | دوی ووئیل | ستاسو سپیرهٔ توب | تاسو سره دے

زموږ دَ طرف نه به درته ډیر دردناک تکلیف ورسیږی ـ رسولانو ووئیل ستاسو سپیرهٔ توب په خپله په تاسو پورے

اَئِنْ ذُكِّرْتُمْ ۭ بَلْ اَنْتُمْ قَوْمٌ مُّسْرِفُوْنَ ﴿۱۹﴾ وَجَآءَ

آیا که چرے | تاسو ته نصیحت وکړے شی | (نه) بلکه | تاسو یئی | خلق | له حد نه تیریدونکی | او راغے

نښتے دے آیا که تاسو ته نصیحت وکړے شی (نو دا نحوست دے ؟) نا ! بلکه تاسو دَ حد نه تیر شوی خلق یئی ، او دَ دغے ښار دَ

مِنْ اَقْصَا الْمَدِيْنَةِ رَجُلٌ يَّسْعٰى قَالَ يٰقَوْمِ اتَّبِعُوا

دَ بلے غاړے نه | دَ ښار | یو سړے | په منډه منډه | ده ووئیل | اے زما قومه ! | پیروی وکړئ

بلے غاړے نه یو سړے په منډه منډه راغے ورته ئے ووئیل چه اے زما قومه ! تاسو دَ دے

الْمُرْسَلِيْنَ ﴿۲۰﴾ اتَّبِعُوْا مَنْ لَّا يَسْـَٔلُكُمْ اَجْرًا وَّهُمْ مُّهْتَدُوْنَ ﴿۲۱﴾

دَ پیغمبرانو | پیروی وکړئ | دَ هغه چا | چه نهٔ غواړی له تاسو نه | څهٔ اجر | او دوی | په سمه لاره روان دی

پیغمبرانو په لاره روان شئ ـ دَ هغه چا په لاره چه تاسو نه هیڅ بدله نهٔ غواړی او په سمه لاره قائم ولاړ دی

وَمَالِيَ لَآ اَعْبُدُ الَّذِيْ فَطَرَنِيْ وَاِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ﴿۲۲﴾

او څه (عذر) دے ما ته | چه زهٔ عبادت ونهٔ کړم | د هغه چا چه | پیدا ئے کړم زهٔ | او هم د دهٔ طرف ته | به تاسو پسته ورځئ

او څهٔ وجه ده چه زهٔ د هغه (مالک) عبادت ونهٔ کړم چا چه زهٔ پیدا کړم او تاسو ټول به هغهٔ ته پسته ورځئ

ءَاَتَّخِذُ مِنْ دُوْنِهٖٓ اٰلِهَةً اِنْ يُّرِدْنِ الرَّحْمٰنُ بِضُرٍّ لَّا تُغْنِ

آیا زهٔ ونیسم | بے له دهٔ نه (نور) | معبودان | که چرے | اراده وکړی | رحمٰن | ما ته د تکلیف راکولو | نو به کار به رانهٔ شی

آیا زهٔ خدائے پریږدم او ځان له داسے معبودان ونیسم چه که رحمٰن خدائے را ته څهٔ ضرر رارسول وغواړی نو د هغوئ

عَنِّيْ شَفَاعَتُهُمْ شَيْـًٔا وَّلَا يُنْقِذُوْنِ ﴿۲۳﴾ اِنِّيْٓ اِذًا لَّفِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴿۲۴﴾

زما | د دوی سفارش | هیڅ هم | او نهٔ به دوی ما خلاص کړی | بیشکه زهٔ به د غه وخت | په ښکاره ګمراهئ کښے یم

سفارش م هیڅ په کار رانهٔ شی او نهٔ م (ترے نه) خلاصولے شی که زهٔ داسے وکړم نو په څرګنده ګمراهئ کښے به پریوزم

اِنِّيْٓ اٰمَنْتُ بِرَبِّكُمْ فَاسْمَعُوْنِ ﴿۲۵﴾ قِيْلَ ادْخُلِ الْجَنَّةَ ۭ قَالَ

بیشکه ما | ایمان راوړو | ستاسو په رب | پس تاسو زما خبره واورئ | حکم وشو | داخل شه | په جنت کښے | دهٔ ووئیل

ما ستاسو په رب ایمان راوړے دے، پس زما خبره واورئ ـ ځنے سړی ته ووئیلے شول چه ځه نه جنت ته ورننوځه هغهٔ ووئیل

يٰلَيْتَ قَوْمِيْ يَعْلَمُوْنَ ﴿۲۶﴾ بِمَا غَفَرَ لِيْ رَبِّيْ وَجَعَلَنِيْ

اے کاش! | چه قوم زما | پوهه شی | په دے خبره چه | بخښنه وکړه | ما ته | زما رب | او زهٔ ئے کړمه

چه اے کاش! زما قوم ته دا خبره معلومه شوے چه زهٔ خپل رب وبخښلم ، او په درنو خلقو کښے ئے

مِنَ الْمُكْرَمِيْنَ ﴿۲۷﴾ وَمَآ اَنْزَلْنَا عَلٰى قَوْمِهٖ مِنْۢ بَعْدِهٖ مِنْ جُنْدٍ

له عزتمندو نه | او رانهٔ لیږلے مونږه | د دهٔ په قوم | پس له دهٔ نه | څهٔ لښکرے

شامل کړم ـ او مونږ د هغهٔ نه پس د هغهٔ په قوم باندِ د (عذاب پاره) آسمان نه څهٔ لښکر راکوز کړے نهٔ

مِّنَ السَّمَاۗءِ وَمَا كُنَّا مُنْزِلِيْنَ ﴿۲۸﴾ اِنْ كَانَتْ اِلَّا صَيْحَةً وَّاحِدَةً فَاِذَا هُمْ

له آسمان نه | او نهٔ وُو مونږ | رالیږونکی | نهٔ وُو (څهٔ نور) | مګر | یوه چغه | پس ناګهانه دوی

وو او نهٔ لښکر راکوزولو ته زمونږ څهٔ حاجت وو ، هغه (عذاب) خو بس یوه چغه قدر له وه نو ټول په هغه درنګ

خٰمِدُوْنَ ﴿۲۹﴾ يٰحَسْرَةً عَلَى الْعِبَادِ ۚ مَا يَاْتِيْهِمْ مِّنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا كَانُوْا

بشان مړشوی او رشول | افسوس دے | په بندګانو باندِ | نهٔ دے راغلے دوی ته | څوک رسول | مګر دوی وُو

ساړهٔ شول ـ هائے افسوس! د دغه بندګانو په حال! چه کله هم ورته یو رسول ورغلے وو نو دوئ

بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ ﴿۳۰﴾ اَلَمْ يَرَوْا كَمْ اَهْلَكْنَا قَبْلَهُمْ مِّنَ الْقُرُوْنِ

په هغه پورے | به ئے توقے کولے | آیا دوی نهٔ دی کتلی | چه څومره هلاک کړل مونږ | له دوئ نه وړاندِ | قومونه

ورپورے خندا ګانے کړے وے. آیا دوئ دے خبرے ته نهٔ ګوری چه مونږ د دوئ نه وړاندِ څومره امتونه دلسے

اَنَّهُمْ اِلَيْهِمْ لَا يَرْجِعُوْنَ ﴿۳۱﴾ وَاِنْ كُلٌّ لَّمَّا جَمِيْعٌ لَّدَيْنَا مُحْضَرُوْنَ ﴿۳۲﴾

چه هغوئ به | د دوئ طرف ته | (چرے هم) واپس نهٔ راځی | او نهٔ دی څهٔ نور | مګر | ټول به | مونږ ته | حاضر کړے شی

تباه کړل چه پسته به ورته رانهٔ شی ـ او ټول به زمونږ په وړاندِ حاضر کړے شی ـ

وَاٰيَةٌ لَّهُمُ الْاَرْضُ الْمَيْتَةُ ۚ اَحْيَيْنٰهَا وَاَخْرَجْنَا مِنْهَا حَبًّا

اونخښه ده | دَ پاره دَ دوی | زمکه | مُړه | چه ژوندئ کړله مونږ دا | او راوویستله مونږ | له دے نه | دانه

او دوی دَ پاره یوه نخښه مُړه (اُوچه) زمکه هم ده چه مونږ هغه راژوندئ کړه او غلے مو ترے نه راوویستلے، نو دوی

فَمِنْهُ يَاْكُلُوْنَ ۳۳ وَجَعَلْنَا فِيْهَا جَنّٰتٍ مِّنْ نَّخِيْلٍ وَّاَعْنَابٍ

پس له دغه دانه | دوی خوری | او جوړ کړل مونږ | په دے کښے | باغونه | دَ قجورو | او دَ انګورو

دَ هغے نه خوراکونه کوی او مونږ په دے کښے دَ قجورو او دَ انګورو باغونه جوړ کړل، او

وَّفَجَّرْنَا فِيْهَا مِنَ الْعُيُوْنِ ۳۴ لِيَاْكُلُوْا مِنْ ثَمَرِهٖ ۙ وَمَا عَمِلَتْهُ

او روانے کړلے مونږ | په دے (باغونو) کښے | چینے | دَ پاره دَ دے چه دوی وخوری | دَ دے له میوونه | او نهٔ ده جوړ کړے دا

په دے کښے مو چینے جاری کړے ۔ دَ دے دَ پاره چه دوی دَ دغے باغونو میوے وُخوری او دا څیزونه

اَيْدِيْهِمْ ؕ اَفَلَا يَشْكُرُوْنَ ۳۵ سُبْحٰنَ الَّذِيْ خَلَقَ الْاَزْوَاجَ كُلَّهَا

لاسونو دَ دوی | نو آیا دوئ شکر نهٔ کوی؟ | پاک دے | هغه ذات چه | پیدا ئے کړلے | جوړے | ټولے

دَ دوئ لاسونو نهٔ دی جوړ کړی نو بیا دوئ شکر ولے نهٔ کوی؟ الله تعالیٰ هغه ذات دے چا چه دَ دے ټولو څیزونو جوړے پیدا کړے

مِمَّا تُنْۢبِتُ الْاَرْضُ وَمِنْ اَنْفُسِهِمْ وَمِمَّا لَا يَعْلَمُوْنَ ۳۶ وَاٰيَةٌ

له هغه څهٔ نه | چه راټوکوی ئے | زمکه | او خپله دَ دوی له ځانونو نه | او له هغه څهٔ نه | چه دوی ئے نهٔ پیژنی | او نخښه ده

هم دَ زمکے په زرغونه کښے، هم په خپله په دوئ کښے او هم په هغه څیزونو کښے چه دوئ ته هغه معلوم نهٔ دی، او دَ

لَّهُمُ الَّيْلُ ۚ نَسْلَخُ مِنْهُ النَّهَارَ فَاِذَا هُمْ مُّظْلِمُوْنَ ۳۷

دوی دَ پاره | شپه | چه مونږ راکاږو | له هغے نه | ورځ | پس ناګهانه دوی | په تیاره کښے شی

دوئ دَ پاره یوه نخښه شپه ده چه مونږ ترے نه (رڼا) ورځ راکاږو نو دوئ په تیاره کښے پاتے شی

وَالشَّمْسُ تَجْرِيْ لِمُسْتَقَرٍّ لَّهَا ؕ ذٰلِكَ تَقْدِيْرُ الْعَزِيْزِ الْعَلِيْمِ ۳۸

او | نمر | روان وی | په خپله مقرره لاره | دا | اندازه ده | دَ خدائے غالب | پوهه

او (یوه نخښه) نمر دے چه په خپله مقرره لاره روان دے، دا دَ زبردست او پوهه خدائے ټاکلے اندازه ده

وَالْقَمَرَ قَدَّرْنٰهُ مَنَازِلَ حَتّٰى عَادَ كَالْعُرْجُوْنِ الْقَدِيْمِ ۳۹

او سپوږمئ | مقرر کړل مونږ دَ دے | منزلونه | تر دے چه | شی | په شان دَ قجورو دَ شاخ | زوړ

او مونږ سپوږمئ له منزلونه مقرر کړی دی تر دے چه دَ قجورو دَ زړے ښاخکے په شان ورپاتے شی

لَا الشَّمْسُ يَنْۢبَغِيْ لَهَآ اَنْ تُدْرِكَ الْقَمَرَ وَلَا الَّيْلُ سَابِقُ

نهٔ خو نمر | مناسب دی | دهٔ دَ پاره | چه راونیسی | سپوږمئ | او نهٔ شپه | وړاندې کیدونکے ده

نهٔ نمر له دا ممکنه ده چه هغه (وړاندې شی او) سپوږمئ راونیسی، او نهٔ شپه دَ ورځے نه مخکښے

النَّهَارِ ؕ وَكُلٌّ فِيْ فَلَكٍ يَّسْبَحُوْنَ ۴۰ وَاٰيَةٌ لَّهُمْ اَنَّا حَمَلْنَا

له ورځے نه | او هر یو | په (خپله) دائره کښے | روان وی | او نخښه ده | دوی دَ پاره | دا چه مونږ | اُوچت کړه

راتلے شی، او هر یو په خپله خپله دائره کښے (لګیا دے) لامبو وهی ۔ او دَ دوئ دَ پاره یوه نخښه دا ده چه مونږ

ذُرِّيَّتَهُمْ فِي الْفُلْكِ الْمَشْحُونِ ۝۴۱ وَخَلَقْنَا لَهُمْ مِّنْ مِّثْلِهٖ مَا

دَ دوئ نسل | په کشتئ کښے | ډکه کړے شوے | او پیدا کړل مونږ | دوئ دَپاره | پشان دَدے (کشتئ) | هغه څه چه

دوئ اولاد په ډکه کشتئ کښے سوارهٔ بوځو ۔ او مونږ ورله دَ کشتئ غوندے نورے دَ سورلئ سامان هم پیدا

يَرْكَبُوْنَ ۝۴۲ وَاِنْ نَّشَاْ نُغْرِقْهُمْ فَلَا صَرِيْخَ لَهُمْ وَلَا هُمْ

سوریږی دوئ په هغے | او که چرے | مونږ وغواړو | نو غرق به کړو مونږ دوی | بیا به نهٔ څوک فریادرس وی | دَ دوئ دَپاره | او نهٔ به دوئ

کړے دے ۔ او که مونږ وغواړو نو دوئ به ډوب کړو ، بیا به نهٔ دَ دوئ څوک فریاد آورېدونکے وی او نهٔ به دوئ

يُنْقَذُوْنَ ۝۴۳ اِلَّا رَحْمَةً مِّنَّا وَمَتَاعًا اِلٰى حِيْنٍ ۝۴۴ وَاِذَا قِيْلَ لَهُمُ

خلاص کړے شی | مګر په رحمت | زمونږه | او فائده دی | ترڅهٔ موده پورے | او هر کله چه | وویلے شی | دوی ته

څوک خلاص کړے شی ، خو داهو له زمونږه مهربانی ده او (دوئ ته) تر یو مقرر وخته پورے فائده رسول دی او څهٔ وخت چه دوئ ته وویلے

اتَّقُوْا مَا بَيْنَ اَيْدِيْكُمْ وَمَا خَلْفَكُمْ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ ۝۴۵

چه ووېرېږئ | له هغه (عذاب) نه | چه ستاسو په وړاندے | او کوم چه ستاسو وروستو دے | دَپاره دَ دے چه په تاسو | رحم وکړے شی ۔

شی چه دَ هغه عذابه ووېرېږئ چه ستاسو وړاندے هم دے او ستاسو وروستو هم دے چه رحم درباندے وشی (نو دوئ هیڅ پروا نهٔ کوی)

وَمَا تَاْتِيْهِمْ مِّنْ اٰيَةٍ مِّنْ اٰيٰتِ رَبِّهِمْ اِلَّا كَانُوْا عَنْهَا مُعْرِضِيْنَ ۝۴۶

او نهٔ راتله دوی ته | هیڅ نخښه | له نخښو | دَ رب دَ دوی نه | مګر | دوی وُو | له هغے نه | مخ ګرځوونکی ۔

او دوئ ته دَ دوئ دَ رب له طرف نه داسے نخښه نهٔ ده راغلے چه دوئ ترے نه مخ نهٔ وی اړولے ۔

وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ اَنْفِقُوْا مِمَّا رَزَقَكُمُ اللّٰهُ ۙ قَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

او هر کله چه | وویلے شی | دوی ته | چه خرچ وکړئ تاسو | له هغه څه نه | چه رزق درکړو تاسو ته الله | (نو) وائی | کافران

او هر کله چه دوی ته وویلے شی چه دَ هغے رزق نه خرچ کوئ چه الله ستاسو روزی کړے دے ، نو کافران مسلمانانو ته

لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَنُطْعِمُ مَنْ لَّوْ يَشَآءُ اللّٰهُ اَطْعَمَهٗٓ ۖ اِنْ اَنْتُمْ اِلَّا

هغه خلقو ته | چه ایمان ئے راوړے دے | آیا طعام ورکړو مونږ | هغه چا ته | چه که چرے غوښتے الله | نو طعام به ئے ورکړے وو دهٔ ته | نهٔ یئ تاسو | مګر

داسے وائی چه آیا مونږ په هغه چا باندے خوراک وخورو چه که دَ الله مرضی وے نو دَ روزئ خاوندان کړی به ئے وو؟ دا تاسو خو په

فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ۝۴۷ وَيَقُوْلُوْنَ مَتٰى هٰذَا الْوَعْدُ اِنْ كُنْتُمْ

په ګمراهئ کښے | ښکاره | او دوئ وائی | چه کله به (پوره کیږی) | دا وعده | که چرے یئ تاسو

ښکاره ګمراهئ کښے پراته یئ ، او دوئ وائی چه (بندهٔ نو) دا وعده به (آخر) کله پوره کیږی که تاسو

صٰدِقِيْنَ ۝۴۸ مَا يَنْظُرُوْنَ اِلَّا صَيْحَةً وَّاحِدَةً تَاْخُذُهُمْ وَهُمْ

رښتیا ویونکی | دوی انتظار نهٔ کوی | مګر دَ یوے چغے | چه راوُبه نیسی دوی | او دوی به

رښتینی یئ ؟ دا خلق خو بس دَ یوے درنے چغے په انتظار کښے (ناست) دی چه راوُبه ئے نیسی او دوئ به

يَخِصِّمُوْنَ ۝۴۹ فَلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ تَوْصِيَةً وَّلَآ اِلٰٓى اَهْلِهِمْ يَرْجِعُوْنَ ۝۵۰

جګړے کوونکی وی | بیا به دوی نهٔ شی کولے | وصیت | او نهٔ به خپل کورولو طرف ته | واپس تلے شی

لا په خپلو جګړو کښے نښتی وی نو نهٔ به دَ وصیت کولو فرصت بیا موندے شی او نهٔ به دَ کور خلقو ته پسته وُرسیدے شی

وَنُفِخَ فِى الصُّوۡرِ فَاِذَا هُمۡ مِّنَ الۡاَجۡدَاثِ اِلٰى رَبِّهِمۡ يَنۡسِلُوۡنَ ﴿٥١﴾
او پوکے به وُهلے شي | په شپيلئ کښے | پس ناګهانه به دوی | له قبرونو نه | دَخپل رب طرف ته | په منډه ورزغلي
او شپيلئ به پوک وهلے شي نو دوئ تول به دَ قبرونو نه دَخپل رب طرف ته په منډه روان شي
قَالُوۡا يٰوَيۡلَنَا مَنۡۢ بَعَثَنَا مِنۡ مَّرۡقَدِنَا ۜ هٰذَا مَا وَعَدَ الرَّحۡمٰنُ
دوی به وائي | چه هائے افسوس | چا | راپاڅولومونږ | له قبرونو زمونږ نه | هم داده | چه | وعده ئے کړے ده | رحمٰن
دا به وائي چه هائے زمونږ بد نصيبه! دا مونږ چا دَ قبرونو نه راپاڅولو؟ دا هم هغه قيامت دے دَکوم وعده چه الله رحمٰن
وَصَدَقَ الۡمُرۡسَلُوۡنَ ﴿٥٢﴾ اِنۡ كَانَتۡ اِلَّا صَيۡحَةً وَّاحِدَةً فَاِذَا هُمۡ جَمِيۡعٌ
او رښتيا وئيلي دي | پيغمبرانو | نۀ به وی دا (واقعه) | مګر | يوه درنه چغه | پس ناګهانه به دوی | تول
کړے وه او رسولانو واقعي رښتيا وئيلي وو. پس يوه درنه چغه به وی، او فورًا دوئ تول به زمونږ په
لَّدَيۡنَا مُحۡضَرُوۡنَ ﴿٥٣﴾ فَالۡيَوۡمَ لَا تُظۡلَمُ نَفۡسٌ شَيۡـًٔا وَّلَا تُجۡزَوۡنَ
مونږ ته | حاضر کړے شوی وی | پس نن ورځ به | ظلم نۀ کيږي | په هيڅ کس | هيڅ هم | او بل له به نۀ شي درکولے تاسو ته
وړاندې حاضر کړے شي. پس نن (دَ قيامت په) ورځ به په هيچا هيڅ ظلم نۀ کيږي او تاسو ته به دَ هغو عملونو
اِلَّا مَا كُنۡتُمۡ تَعۡمَلُوۡنَ ﴿٥٤﴾ اِنَّ اَصۡحٰبَ الۡجَنَّةِ الۡيَوۡمَ فِىۡ شُغُلٍ فٰكِهُوۡنَ ﴿٥٥﴾
مګر دَ هغه څۀ | چه تاسو به | کول | بيشکه | اهل دَ جنت به | نن ورځ | په مشغلو کښے | خوشحاله وی
بدله ملاويږي چه تاسو به کول. يقينًا جنتيان به په دغه ورځ په خپلو مشغلو کښے مشغول وی.
هُمۡ وَاَزۡوَاجُهُمۡ فِىۡ ظِلٰلٍ عَلَى الۡاَرَآئِكِ مُتَّكِـُٔوۡنَ ﴿٥٦﴾ لَهُمۡ فِيۡهَا
دوئ | او دَ دوئ بيبيانے به | په سورو کښے | په تختونو باندِ | تکيه لګولی ناست وی | دوئ دَپاره به | په دے کښے
دوئ او دَ دوئ بيبيانے به دَ (اونو دَ) سورو لاندِ په تختونو باندِ تکيه لګولی ناست وی، دوئ ته به ميوے ورکولے
فَاكِهَةٌ وَّلَهُمۡ مَّا يَدَّعُوۡنَ ﴿٥٧﴾ سَلٰمٌ قَوۡلًا مِّنۡ رَّبٍّ رَّحِيۡمٍ ﴿٥٨﴾
ميوه وی | او دوی له به وی | هغه څۀ چه دوئ ئے غواړی | سلام | به فرمائيلے شي | دَ مهربان رب له طرف نه
شي او چه څۀ غواړی هغه به بيا مومی، دَ مهربان رب له طرف نه به پرے سلامونه وئيلے شي.
وَامۡتَازُوا الۡيَوۡمَ اَيُّهَا الۡمُجۡرِمُوۡنَ ﴿٥٩﴾ اَلَمۡ اَعۡهَدۡ اِلَيۡكُمۡ يٰبَنِىۡۤ اٰدَمَ
او جدا شئ | نن ورځ | اے مجرمانو! | آيا ما حکم نۀ وو درليږلے | ستاسو طرف ته | اے اولاد دَ آدم
او (مجرمانو ته به وئيلے شي) اے مجرمانو! تاسو (دَ دوئ نه) جدا شئ. اے دَ آدم اولاده! آيا ما تاسو نه دَدِے خبرے وعده نۀ وه
اَنۡ لَّا تَعۡبُدُوا الشَّيۡطٰنَ ۚ اِنَّهٗ لَكُمۡ عَدُوٌّ مُّبِيۡنٌ ﴿٦٠﴾ وَّاَنِ
چه | تاسو عبادت مۀ کوئ | دَ شيطان | بيشکه دے | ستاسو | دښمن دے | ښکاره | او دا چه
اخستے چه دَ شيطان عبادت مۀ کوئ؟ هغه ستاسو ښکاره دښمن دے. او دا چه (صرف)
اعۡبُدُوۡنِىۡ ؕ هٰذَا صِرَاطٌ مُّسۡتَقِيۡمٌ ﴿٦١﴾ وَلَقَدۡ اَضَلَّ مِنۡكُمۡ
عبادت وکړئ زما | دا ده | لاره | سمه | او بيشکه | ګمراه ئے کړو | له تاسو نه
زما عبادت کوئ، هم دا سمه نيغه لاره ده. او هغۀ په تاسو کښے ډير خلق

جِبِلًّا كَثِيْرًا ؕ اَفَلَمْ تَكُوْنُوْا تَعْقِلُوْنَ (٦٢) هٰذِهٖ جَهَنَّمُ الَّتِىْ

مخلوق | ډیر | نو آیا تاسو عقل نهٔ لرئ ؟ | دا دے | (هغه) دوزخ | دَکوم چه

ګمراه کړل ، نو آیا تاسو نهٔ پوهیدل لئ ، دا هغه دوزخ دے چه تاسو سره به

كُنْتُمْ تُوْعَدُوْنَ (٦٣) اِصْلَوْهَا الْيَوْمَ بِمَا كُنْتُمْ تَكْفُرُوْنَ (٦٤) اَلْيَوْمَ

تاسو سره وعده شوے وه | داخل شئ دے ته | نن ورځ | په سبب دَدے چه | تاسو به کفر کولو | نن ورځ به

ئے وعدے کیدلے ، دَدے کفر او انکار په بدله کښے چه تاسو به کولو نن په دے کښے ورننوزئ ، نن به

نَخْتِمُ عَلٰٓى اَفْوَاهِهِمْ وَتُكَلِّمُنَآ اَيْدِيْهِمْ وَتَشْهَدُ اَرْجُلُهُمْ

مونږ مهر ولګوو | دَدوئ په خُلو باندِ | او خبرے به وکړی مونږ سره | لاسونه دَدوی | او ګواهی به ورکړی | ښپے دَدوی

مونږ دَدوئ په خُلو باندِ مهر ولګوو او دَدوی لاسونه به مونږ سره خبرے کوی ، او دَ دوئ ښپے به دَ

بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ (٦٥) وَلَوْ نَشَآءُ لَطَمَسْنَا عَلٰٓى اَعْيُنِهِمْ

په هغه څه | چه دوی به کول | او که چرے | مونږ وغواړو | نو نابوده به کړو مونږ | سترګے دَدوی

دوئ په عملونو ګواهی ورکوی ، او که چرے مونږ غوښتلے نو دَدوئ سترګے به مو په ټپو ړندے کړے وے

فَاسْتَبَقُوا الصِّرَاطَ فَاَنّٰى يُبْصِرُوْنَ (٦٦) وَلَوْ نَشَآءُ لَمَسَخْنٰهُمْ

پس دوی به وړاندِ کیدِی | لارے طرف ته | پس له کوم ځائے نه به | دوی وُوینی | او که چرے وُغواړو مونږ | نو مسخ به کړو مونږ دوی

نو لارے طرف ته به ئے منډے وهلے خو هیڅ به ئے نهٔ لیدل ، او که مونږ غوښتلے نو په دغه ځائے به مو دَدوئ

عَلٰى مَكَانَتِهِمْ فَمَا اسْتَطَاعُوْا مُضِيًّا وَّلَا يَرْجِعُوْنَ (٦٧) وَمَنْ نُّعَمِّرْهُ

دَدوی په ځایو نو | وس به وُنهٔ شی دَدوی | دَ تیریدلو | او نهٔ به دوی بیرته راوُګرځی | او دَ چا چه | مونږ عمر اوږد کړو

شکلونه مسخ کړی وو نو بیا به نهٔ وړاندِ تلے شول او نهٔ به ورستو راګرځیدے شول. او مونږ چه دَ چا عمر زیات

نُنَكِّسْهُ فِى الْخَلْقِ ؕ اَفَلَا يَعْقِلُوْنَ (٦٨) وَمَا عَلَّمْنٰهُ الشِّعْرَ

بیادے ضعیف کړو | په مخلوق کښے | نو آیا دوی عقل نهٔ لری | او نهٔ دی | ښودلی مونږ دهٔ ته | شعر و ټیل

کړو نو (په طبعی طریقے سره) راټیټ ئے کړو ، نو آیا دوئ نهٔ پوهیږی ؟ او مونږ دِے پیغمبر ته نهٔ شاعری ښودلے دهٔ او نهٔ

وَمَا يَنْۢبَغِىْ لَهٗ ؕ اِنْ هُوَ اِلَّا ذِكْرٌ وَّقُرْاٰنٌ مُّبِيْنٌ (٦٩)

او | نهٔ دی مناسب | دهٔ دَ پاره | نهٔ دے دا | مګر | نصیحت | او قرآن | ښکاره

دا دَدهٔ دَ شان سره مناسب دهٔ ، دا کلام خو (یوزبردست) نصیحت او روښانه قرآن دے.

لِّيُنْذِرَ مَنْ كَانَ حَيًّا وَّيَحِقَّ الْقَوْلُ عَلَى الْكٰفِرِيْنَ (٧٠)

چه دے ووېروی | هغه څوک | چه وی | ژوندے | او ثابته شی | خبره (حجّت) | په کافرانو باندِ

چه هغه کسان ووېروی چه (زړونه ئے) ژوندی دی او چه په کافرانو باندِ حجت تمام شی ــــ

اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّا خَلَقْنَا لَهُمْ مِّمَّا عَمِلَتْ اَيْدِيْنَآ اَنْعَامًا

آیا نهٔ دی کتلی دوی | چه هم مونږ | جوړ کړل | دوی دَ پاره | له هغه څه نه | چه جوړ کړل | زمونږ لاسونو | څاروی

آیا دا خلق دِے ته نهٔ ګوری چه مونږ ورله په خپل لاس باندِ دَ جوړو کړو څیزو نه څاروی راپیدا کړل

٣/٤

فَهُمْ لَهَا مٰلِكُوْنَ ﴿۷۱﴾ وَذَلَّلْنٰهَا لَهُمْ فَمِنْهَا رَكُوْبُهُمْ

پس دوی | دَ هغې | مالکان دی | او مونږ تابع کړل دَ هغه څاروی | دَ پاره دَ دوی | پس ځینې له دوی نه | دَ دوی سورلی ده

نو (نن) دوی دَ هغې مالکان شول . او (بیا) مونږ دغه څاروی دَ دوی دَ حکم تابع کړل نو په ځنو باندې سورلۍ کوی

وَمِنْهَا يَأْكُلُوْنَ ﴿۷۲﴾ وَلَهُمْ فِيْهَا مَنَافِعُ وَّ مَشَارِبُ

او ځینې له دوی نه | دوی خوری | او دوی دَ پاره | په دے کښې | فائدے دی | او | دَ څښلو څیزونه

او له ځنو نه خوراکه کوی . او په دغه څاروو کښې ورله نورے ډیرے فائدے او دَ څښلو څیزونه دی

اَفَلَا يَشْكُرُوْنَ ﴿۷۳﴾ وَاتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اٰلِهَةً لَّعَلَّهُمْ يُنْصَرُوْنَ ﴿۷۴﴾

آیا دوی شکر نهٔ کوی | او دوی نیولی دی | بے دَ الله نه | معبودان | چه دوی ته | مدد ورکړے شی.

نو آیا دوی بیا هم شکر نهٔ کوی . او دوی دَ الله تعالیٰ نه بغیر ځان له نور معبودان په دے اُمید جوړ کړی دی چه لږ ډیر امداد به ورسره وکړے

لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ نَصْرَهُمْ ۙ وَهُمْ لَهُمْ جُنْدٌ مُّحْضَرُوْنَ ﴿۷۵﴾

نهٔ | به شی کولے دوی | دَ دوی مدد | او دوی دی | دوی دَ پاره | لښکر | حاضر کړے شوے

شی. دغه معبودان دَ دوی هیڅ امداد نهٔ شی کولے (بلکه) دغه څیزونه خو به دَ دے کافرانو په مقابله کښې دَ فریق په شان راپیش کړے

فَلَا يَحْزُنْكَ قَوْلُهُمْ ۘ اِنَّا نَعْلَمُ مَا يُسِرُّوْنَ وَمَا يُعْلِنُوْنَ ﴿۷۶﴾ وقف لازم

نو غمژن دِ نهٔ کړی تا | دَ دوی خبره | بیشکه مونږ پوهیږو | په هغه څهٔ | چه دوی ئے پټوی | او په هغه څهٔ | چه دوی ئے ښکاره کوی

شی نو ته دِ دَ دوی په خبرو خفگان مهٔ کوه مونږ ته هر څهٔ معلوم دی کوم چه دوی په زړونو کښې پټ ساتی او کوم چه خلقو ته ښکاره کوی

اَوَلَمْ يَرَ الْاِنْسَانُ اَنَّا خَلَقْنٰهُ مِنْ نُّطْفَةٍ فَاِذَا هُوَ خَصِيْمٌ

آیا نهٔ دی کتلی | انسان | چه مونږ پیدا کړو دے | له قطرے نه | پس ناګهانه دے (شو) | جګړه کوونکے

آیا انسان دے ته نهٔ ګوری چه مونږ دے دَ یو څاڅکی نه راپیدا کړو ، بیا دے په ښکاره (دَ خپل رب په باره کښې)

مُّبِيْنٌ ﴿۷۷﴾ وَضَرَبَ لَنَا مَثَلًا وَّنَسِيَ خَلْقَهٗ ؕ قَالَ مَنْ يُّحْيِ

ښکاره | او دهٔ بیان کړو | مونږ دَ پاره | یو مثال | او هیر ئے کړو | خپل پیدائښت | دهٔ ووئیل | څوک به | ژوندی کړی

جګړے کوی ، او دے زمونږ په باره کښې مثالونه بیانوی او خپل حقیقت ئے هیر کړو ، وائی چه څوک به هډوکی

الْعِظَامَ وَهِيَ رَمِيْمٌ ﴿۷۸﴾ قُلْ يُحْيِيْهَا الَّذِيْٓ اَنْشَاَهَآ

هډوکی | هر کله چه هغه | زاړهٔ شوی وی | ووایه | ژوندی به کړی هغه | هغه ذات چه | پیدا ئے کړل هغه

راژوندی کړی هر کله چه هغه به زاړهٔ شوی وی (اے نبی !) نهٔ جواب ورکړه چه هغه ذات به ئے راژوندی کوی چا چه

اَوَّلَ مَرَّةٍ ؕ وَهُوَ بِكُلِّ خَلْقٍ عَلِيْمُ ۨ ﴿۷۹﴾ الَّذِيْ جَعَلَ لَكُمْ

په اول ځل | او دے په هر قسم | پیدا او ښت | ښهٔ پوهه دے | هغه ذات چه | پیدا ئے کړو | تاسو دَ پاره

په اول ځل راپیدا کړی دی او هغه په هر قسم پیدا او ښت ښهٔ پوهه دے . هغه داسے ذات دے چه تاسو له ئے دَ

مِّنَ الشَّجَرِ الْاَخْضَرِ نَارًا فَاِذَآ اَنْتُمْ مِّنْهُ تُوْقِدُوْنَ ﴿۸۰﴾

له اونے | شنے نه | اور | پس ناګهانه | تاسو | له هغې نه | اور بلوئ

شنو اُونو نه اور راپیدا کړے دے ، نو بیا دَ هغې نه تاسو نور اور ونه بلوئ .

اَوَلَیْسَ الَّذِیْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِقٰدِرٍ عَلٰٓی اَنْ

آیا نهٔ دے | هغه ذات چه | پیدا ئے کړل | آسمانونه | او زمکه | قادر | په دے چه

آیا هغه الله تعالیٰ چاچه آسمانونه او زمکه پیدا کړل په دے خبرے قادر نهٔ دے چه هغه به د دوئ

یَّخْلُقَ مِثْلَهُمْ ؕ بَلٰی ق وَهُوَ الْخَلّٰقُ الْعَلِیْمُ ﴿۸۱﴾ اِنَّمَآ اَمْرُهٗٓ اِذَآ

پیدا کړی | په شان د دوی | ولے نه | هم دے هر څهٔ پیدا کوونکے | پوهه دے | د دهٔ حکم خو دا دے | هر کله چه

غوندے نور (خلق) را پیدا کړی ؟ ولے نه ! هم هغه خو پیدا کوونکے او پوهه دے ، د هغه شان دا دے چه څهٔ وخت

اَرَادَ شَیْـًٔا اَنْ یَّقُوْلَ لَهٗ كُنْ فَیَكُوْنُ ﴿۸۲﴾ فَسُبْحٰنَ الَّذِیْ

د اراده وکړی | د څهٔ څیز | نو دے فرمائی | هغه څیز ته | چه شه | پس هغه شی | پس پاک دے | هغه ذات چه

هغه د څهٔ څیز اراده وکړی نو ورته وائی چه شه نو هغه شی ــــ پس پاک دے هغه الله تعالیٰ

بِیَدِهٖ مَلَكُوْتُ كُلِّ شَیْءٍ وَّاِلَیْهِ تُرْجَعُوْنَ ﴿۸۳﴾ ع

په لاس کښے د دهٔ | بادشاهی ده | د هر | څیز | او طرف د دهٔ ته | به تاسو واپس کړے شئ

چه د چا په لاس کښے د هر یو څیز پوره پوره اختیار دے او تاسو ټول به هغهٔ ته پسته ورځئ ۔

سُوْرَۃُ الصّٰٓفّٰتِ مَكِّیَّةٌ وَّهِیَ مِائَةٌ وَّ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ | اِثْنَتَانِ وَّثَمَانُوْنَ اٰیَةً وَّخَمْسُ رُكُوْعَاتٍ

سورهٔ صٰفّٰت په مکه کښے نازل شوا و په | (شروع) د الله په نوم چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے | دے کښے ۱۸۲ آیتونه او ۵ رکوع گانے دی

د الله په نامهٔ شروع کوم چه لوئے مهربان د ډیر زیات رحم خاوند دے

وَالصّٰٓفّٰتِ صَفًّا ﴿۱﴾ فَالزّٰجِرٰتِ زَجْرًا ﴿۲﴾ فَالتّٰلِیٰتِ ذِكْرًا ﴿۳﴾ اِنَّ

قسم دے په صف تړونکو فرښتو باندے | پس قسم دے په هغه ټولی چه شړونکی دی په شړلو سره | بیا تلاوت کوونکو | د قرآن | بیشکه

قسم دے په هغه ټولگو چه په صفونو کښے په قطاروالا ړه دی او په هغه کسانو چه (شیطانان) په کلکه رټی او په هغه کسانو چه د قرآن تلاوت کوی بیشکه

اِلٰهَكُمْ لَوَاحِدٌ ﴿۴﴾ رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَیْنَهُمَا وَرَبُّ

ستاسو معبود | یو دے | چه رب دے | د آسمانونو | او د زمکے | او هغه څهٔ چه | د دوی په مینځ کښے دی | او رب د

ستاسو معبود یو دے ۔ هغه د آسمانونو او د زمکے او د دے ترمینځهٔ د ټولو څیزو نو رب دے او د نمر راختلو

الْمَشَارِقِ ﴿۵﴾ اِنَّا زَیَّنَّا السَّمَآءَ الدُّنْیَا بِزِیْنَةِ نِ الْكَوَاكِبِ ﴿۶﴾

د مشرقونو | بیشکه | مونږ ښائست ورکړو | آسمان | د دنیا ته | په ښائست | د ستورو سره ۔

د ځایونو رب دے ۔ دا مونږ دی یو چه د دنیا آسمان مو په یو عجیبه رونق یعنی په ستورو ښائسته کړے دے ۔

وَحِفْظًا مِّنْ كُلِّ شَیْطٰنٍ مَّارِدٍ ﴿۷﴾ لَا یَسَّمَّعُوْنَ اِلَی الْمَلَاِ الْاَعْلٰی

او بچ مو ساتلو | له هر شیطان | سرکش نه | غوږ نهٔ شی ایښوے | طرف د فرښتو | اعلیٰ ته

او د هر یو سرکش شیطان نه مو د هغے حفاظت کړے دے ۔ (شیطانان) (د فرښتو د) مجلس اعلیٰ هیڅ خبره نهٔ شی

وَیُقْذَفُوْنَ مِنْ كُلِّ جَانِبٍ ﴿۸﴾ دُحُوْرًا وَّلَهُمْ عَذَابٌ

او دوی ویشتلے شی | له هر | طرف نه | د ټینټولو د پاره | او دوی د پاره | عذاب دے

اوریدلے او د هر طرف نه د دوئ د ټینټولو د پاره په دوئ باندے (ستورو نکے) غورځولے شی او د دوئ د پاره دائمی

ع ۳۶۵

المنزل السادس